فسئلوا أهل الذكر إن كنتم لا تعلمون

فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاویٰ فریدیہ

افادات

محدث کبیر فقیہ العصر مفتی اعظم عارف باللہ مولانا مفتی محمد فرید رحمہ اللہ

جامعہ دار العلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک

تخریج و ترتیب

مفتی محمد وہاب منگلوری مدرس دار العلوم صدیقیہ زروبی

مکتبہ رشیدیہ

جی ٹی روڈ سردار پلازہ اکوڑہ خٹک

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

فَاسْئَلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۝

فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوی فریدیه

دریم جلد

افادات: محدث کبیر فقیه العصر مفتی اعظم عارف بالله
مولانا مفتی **محمد فرید** رحمۃ اللہ علیہ
جامعه دار العلوم حقانیه اکوړه خټک

تخریج وترتیب: مفتی محمد وهاب منګلوری
مدرس دار العلوم صدیقیه زروبی

ترجمه وکمپوزنګ: **دار الترجمه وکمپوزنګ سنټر**
عبد الغنی پلازه محله جنګی پشاور

زیر سرپرستی: مولانا حافظ **حسین احمد صدیقی** نقشبندی
مهتمم دار العلوم صدیقیه زروبی ضلع صوابی

ناشر: مکتبه رشیدیه اکوړه خټک

**د کتاب نوم:** فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (دریم جلد)

**افادات:** محدث کبیر فقیه العصر مفتی اعظم عارف بالله مولانا
مفتی محمد فرید مجددی زروبوی رحمه الله
شیخ الحدیث وصدر دار الافتاء جامعه دار العلوم حقانیه اکوړه خټک

**ترتیب و تخریج:** مولانا مفتی محمد وهاب منګلوری نقشبندی
دار الافتاء دار العلوم صدیقیه

**معاون:** مولانا مفتی عصمت الله حقانی

**مترجمین:** مولانا محمد منظر مردانی فاضل جامعه امداد العلوم صدر
برهان الدین صدیقی فاضل جامعه دار العلوم کراچی
ایم اے پشاور یونیورستی (فون: ۰۳۴۴_۹۱۲۹۰۲۳)

**مصحح:** مولانا لطف الرحمن صاحب مدرس ونگران قاسم العلوم شبقدر

**کمپوزنګ:** دار الترجمه وکمپوزنګ سنټر عبدالغنی پلازه محله جنګی پشاور

**ضخامت:** ۵۸۸ صفحات

**رومبی چهاپ:** اکتوبر ۲۰۱۱ء .......... شوال ۱۴۳۲ھ

**زیر سرپرستی:** مولانا حافظ حسین احمد صدیقی نقشبندی
مهتمم دار العلوم صدیقیه زروبی ضلع صوابی (پاکستان)

**ناشر:** مکتبه رشیدیه سردار پلازه اکوړه خټک نوشهره

رابطه نمبر: ۰۳۴۴-۹۰۸۴۶۹۳



# فهرست مضامین

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

## باب صلاة المسافر

### (فصل فی السفر التی تتغیر به الاحکام)

| صفحه | مضمون |
| --- | --- |

## فصل فی قصر الصلوٰة





| صفحه | مضمون |
| --- | --- |



## باب صلاة الجمعة

## فصل فی الخطبة







## باب صلاة العیدین

| صفحه | مضمون |
|---|---|



......



| صفحه | مضمون |
|---|---|

## کتاب احکام الجنائز

### باب صلاة الجنائز

........





........

## فصل فی الحمل والغسل والدفن والتعزیة

## فصل فی زیارة القبور وایصال الثواب وغیرها



.........

........

## باب الزکوٰة فی الاموال







............

مضمون — صفحه





مضمون — صفحه



## باب زکوٰة السوائم



## باب زکوٰة الزروع والثمار (العشر)

## باب صدقة الفطر







## باب صدقة التطوع



## باب مصارف الزکوٰة



.........

بسم الله الرحمن الرحیم

**فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (دریم جلد)**

الحمدلله رب العالمین والصلوة والسلام علی اشرف المرسلین سیدنا محمد وآله واصحابه اجمعین..اما بعد! د الله تعالی خصوصی عنایات او مهربانئ په وجه د بنده زړه او دماغ حمد وشکر اود خوشحالئ نه ډک دي او مخ سرمې د الله رب العزت مخې ته سربجود دي چه د نهه میاشتو په لړه موده کښې د فتاوی فریدیه دریم جلد منظرعام ته راتلونکې دي په دې جلد کښې د کتاب الصلوة آخري ابواب او کتاب الزکوة مکمل شامل دي دغسې ټول دوه زره دوه سوه پنځوس مسئلې تقریباً په اتلس سوه اویا صفحاتو کښې تاسو ته در اورسیدل، د فتاوی په ترتیب او تخریج او تهذیب او تزئین کښې چه څومره عرق ریزئ او مکمل محنت سره تعلق راځی دعلم وفضل خاوندان ددې نه ناخبره نه دی. لیکن دا هرڅه د الله تعالی په خاص رحمت، مدد او توفیق نصیب کیدو باندې موقوف دی، د دار العلوم حقانیه د دیرش کالو غیرمرتب ریکارډ چه دا په سوونو رجسټرونو باندې مشتمل دي دهغې نه ددې خورو ورو مسئلو تخریج او ترتیب په ویخو دماغو سره ددې مسئلو مطالعه اوکړله او بیا دهرمسئلې دپاره د فقهی ذخیرو نه د جزئیاتو استخراج او سره د حوالونه ذکرکول ډیر مشکل او سخت کارو، لیکن د الله تعالی توفیق اود بزرګانو مهربانه استاذانو او مشائخو اود مورپلار د دعاګانو سره دا عظیم علمی خدمت کامیابئ سره سرته رسیږي. ګنی زما په شان ناکاره او ګناهګار دپاره ددې تصور هم محال وو، اود الله تعالی دا هم خصوصی فضل وکرم او مهربانی ده چه سیدی او شیخی اوسندی ومولائی حضرت مفتی صاحب متعنا الله تعالی بطول حیاته وفیوضه د بیمارئ، ضعف او کمزورئ باوجود ددې جلد هم فصل فصل او په باب باب باندې نظرثانی اوکړه او دې ته ئې نورهم اسناد او استحکام ورکړو، او چرته چه په بعضو مسئلو کښې د ضروری حواشی اود بحث وتحقیق تعلق دې په دې کښې حتی الوسع هیڅ کوتاهی نه ده شوې. بیا هم انسان د غلطئ خطایئ نه محفوظ نه دې، د اصلاح دپاره اطلاع راکولو باندې به مونږ شکرګذار یو، دلته بنده دخپل نګران او مشفق استاذ حضرت مولانا مفتی سیف الله حقانی رئیس دارالافتاء جامعه حقانیه په خدمت کښې د امتنان او تشکر هدیه پیش کول خپله فریضه ګنړي، چه دوی د اول نه تر اوسه پورې قدم په قدم رهنمائی او حوصله افزائی کړې ده، دحضرت الشیخ مفتی صاحب دامت برکاتهم شاګردانو، مریدانو، اود متعلقینو په خدمت کښې د عقیدت اومحبت هدیه پیش کوم چه ددوی د اخلاص دعاګانو او حوصله راکونکی کلماتو سره دا ټول جدوجهد جاری دې، امید دې چه حضرات علماء کرام اود علوم نبوی طالبان به د استفادې په وخت خپلو دعاګانو کښې بنده حقیر سراپا تقصیر او رفیقان کار حضرت مولانا حافظ حسین احمد صدیقی، مولانا مفتی عصمت الله حقانی، جناب سلطان فریدی او حافظ ولی الرحمن صدیقی او هغه ټول حضرات چه هغوی په دې کارکښې په څه طریقه هم حصه اخستې ده یاد ساتی، الله تعالی دې دا قبول کړي او مونږ ټولو دپاره دې د آخرت توښه او د فلاح دارین ذریعه جوړه کړي.....آمین.

طالب دعا: محمد وهاب منګلوری عفی عنه
خادم العلم والافتاء بدارالعلوم صدیقیه زروبی (صوابی) ۱۶ رجب ۱۴۲۲ھ



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه دریم جلد

# باب صلوة المسافر



بسم الله الرحمن الرحيم

## قال الله تعالى:

## وَاِذَا ضَرَبْتُمْ فِى الْاَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلٰوةِ ۖ

(النساء)



بسم الله الرحمن الرحيم

# باب صلاة المسافر

## (فصل فى السفر التى تتغير به الاحكام)

### د قصرمونځ د پاره په سفرکښې مشقت کیدل ضروری نه دی

**سوال:** څه فرمائی علمائې کرام ددین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه په دې زمانه کښې سفر دټولو سهولیاتو سره کیږی چه په دې کښې هیڅ قسم مشقت نه وی مثلاً د هوائی جهاز په ذریعه په سفرکښې هیڅ مشقت نه وی نوبیا قصر ولې کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالغنی شیوه ضلع صوابی.....١٩٧٨ء|١٠|١٨

**الجواب:** واضحه دې وی چه د قصر دارومدار په سفرباندې دې په مشقت باندې نه دې ځکه چه سفر دمشقت قائم مقام دې.ویدل علیه مافی شرح التنویر: حتی لو اسرع فوصل فی یومین قصر،فافهم هامش رد المحتار ص٧٣٥ جلد١ ﴿١﴾ فافهم. وهوالموفق

### دائمی سفر یا قیام. شریعت سره متصادم نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء ددین دې مسئلې باره کښې چه یوډرائیوردې چه هغه همیشه په سفرکښې وی یایوبل سړې مثلاً په سفرکښې وی نوآیا په شریعت کښې د دائمی سفرڅه تصورشته؟ چه همیشه دپاره داسړې دوه رکعته مونځ کوی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.......

﴿١﴾ (الدرالمختارعلی هامش رد المحتار ص٥٨٠ جلد١ مطلب فی سجدة الشکر)

متصادم دی اونه
**الجواب:** ټول عمر مقیم کیدل یا مسافر کیدل نه شریعت سره متصادم دی اونه نفس الامر سره، ﴿۱﴾. وهو الموفق

## د بې قراره سړی د اقامت اوسفر مسئله

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه مونږ په جی ټی ایس یعنی د ګورنمنټ ټرانسپورټ سروس ملازمان یو، زمونږ سفر د پیښورنه مختلفو علاقو ته کیږی لاهور، فیصل آباد، سوات وغیره ته، مونږ اوس د نوکرئ په وجه د کرائې په کمرو کښې اوسیږو. مونږ سره بال بچ نشته، نو مونږ به قصر کوو که پوره مونځ؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورعلی شاه جی ټی ایس ډرائیور ګرمنډی پشاور ۱۷ رمضان ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** تاسو به همیشه مسافر یئ ﴿۲﴾ اوقصر به کوئ، د ماسپخین، ماسختن او مازیګر مونځ به دوه دوه رکعته کوئ. البته که تاسو مقیم امام پسې اقتداء اوکړئ نو څلور رکعته به کوئ. ﴿۳﴾ اوکه تاسو ته دا حکم وی چه پنځلس ورځو پورې به ستاسو ډیوټی د ورځې وی اود شپې به پیښور کښې پاتې کیږئ نو تاسو به پیښور کښې اتمام کوئ. ﴿٤﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال الحصكفی: اولم یكن مستقلا برأیه اودخل بلدة ولم ینوها ای مدة الاقامة بل ترقب السفر غداً او بعده ولو بقی علی ذلک سنین.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۸۲ جلد ۱ باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ووطن الاقامة یبطل بوطن الاقامة وبانشاء السفر وبالوطن الاصلی هكذا فی التبیین. (فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۴۲ جلد ۱ الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)

﴿۳﴾ قال العلامة شرنبلالی: وان اقتدیٰ مسافر بمقیم یصلی رباعیة ولو فی التشهد الاخیر فی الوقت صح اقتداؤه واتمها اربعا. (امداد الفتاح شرح نورالایضاح ص ۴۷۱ مطلب فی اقتداء المسافر بالمقیم وعكسه)

﴿۴﴾ قال العلامة ابن نجیم: كوطن الاقامة یبقی ببقاء الثقل وان اقام بموضع آخر.
(البحرالرائق ص ۱۳٦ جلد ۲ باب المسافر)



## وطن اصلی ته په مرور سره هم سفر ختمیږی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زه یو ډرائیور یم روزانه پنځوس شپیته میله سفر کوم، زما کور په کروړ (کالام) کښې دې چه دا د مینګوره نه پنځوس میله لرې دې کله چه کورته ځم نو اتمام کوم لیکن د کور نه بهر د مینګورې په لار کښې یا په مینګوره کښې د سفر مونځ کوم، او په مینګوره کښې شپه د کرائې په بیټك کښې تیروم او خوراك وغیره د هوټل نه کوم، اوس دا غرض کوم چه په لار کښې به زما مونځ سفرانه وی یا پوره؟ دویمه خبره داده چه کله کله زما روانګی د مینګورې نه اویا میله لرې فاصلې باندې کیږی او زما تیریدل په خپل کلی باندې کیږی یعنی د کلی نه شل میله لرې ځم لیکن روانګی د مینګورې نه کیږی آیا په دې مقام کښې به هم قصر کوم؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد افسر کروړ کالام سوات.... ۱۹۷۴ء| ۱۱| ۱۴

**الجواب:** محترم تاسو به د مینګورې نه د تلو په وخت قصر کوئ یعنی سفرانه مونځ به کوئ او د مینګورې نه هغه مقام پورې کوم چه اویا میله دې او ستا د کورنه شل میله لرې دې هغې ته د تلو په حکم کښې تفصیل دې هغه دا چه کور پورې به قصر کوئ او باقی شل میله به اتمام کوئ د غسې د واپسئ په وخت به کور پورې اتمام او باقی پنځوس میله قصر کوئ او په مینګوره کښې به تاسو مسافر شمارلې کیږئ. ماخوذ از شامی، عالمګیری ﴿۱﴾. وهو الموفق

## د ملازمت یاد علم د طلب په سلسله کښې د وطن اقامت اهمه مسئله

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه کوم طلباء او استاذان چه په دارالاقامه کښې یواځې په جدا کور کښې اوسیږی او د پنځلس شپو ورځو نه کم قیام اوکړی نو هغوی به مقیم شمارلې کیږی یا

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: والحاصل ان انشاء السفر یبطل وطن الاقامة اذا كان منه اما لو انشأ من غیره فان لم یكن فیه مرور علی وطن الاقامة او كان ولكن بعد سیر ثلاثة ایام فكذلک ولو قبله لم یبطل الوطن بل یبطل السفر لان قیام الوطن مانع من صحته.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۸٦ جلد ۱ مطلب فی الوطن الاصلی والاقامة)

مسافر، او طالبان دري کاله پورې په تعليم زده کولو کښې پاتې شوې وی، او استاذان کيدې شی چه څو کاله په يو ځائې باندې ملازمت او کړی؟ بينوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.... ۱۹۸۷ء | ۱۰ | ۲۷

**الجواب:** که چرې دې طلباؤ يو ځل د پنځلس ورځو داقامت نيت کړې دې نو ددې نه پس به مقيم شمارلې کيږی په دې شرط چه ددوی د اوسيدو ضروری سامان دوی سره وی. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د ملازمت ځائې چه کله وطن اقامت جوړشی بيا چه نې ترڅو پورې پريخودې نه وی اتمام به کولې شی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دين دشرع متين دې مسئلې باره کښې چه يو سړې دڅه مودې نه دلته اوسيږی او پنځه ورځې پس وطن اصلی ته واپس کيږی، په وطن اصلی کښې يوه يا دوه ورځې پاتې کيږی او واپس راځی او فاصله تقريباً ځلورشپيته ميله ده، سوال دادې چه دا سړې به دلته ټول مونځ کوی يا قصربه کوی؟ بينوا توجروا

المستفتی: مولوی فضل هادی بغداده مردان

**الجواب:** که ددې ملازم دملازت په دې ځائې کښې د اوسيدلو ضروری سامان موجود وی نودا سړې په يو ځل د پنځلس ورځو داقامت په نيت سره په نورځل کښې به دا ځائې د اقامت ځائې شمارلې کيږی. که دلته پنځلس ورځې پاتی شی او که پنځه ورځې، بهرحال وطن داقامت په سفرسره هغه وخت باطليږی

﴿۱﴾ قال ابن نجيم رحمه الله: كوطن الاقامة يبقى ببقاء الثقل وان اقام بموضع آخر. (البحر الرائق ص ۱۳۶ جلد ۲ باب المسافر)

وقال العلامة علاؤالدين الحصكفى رحمه الله: ويبطل بمثله اذالم يبقى له بالاول اهل فلو بقى لم يبطل بل يتم فيها. (الدرالمختار على صدر ردالمحتار ص ۵۸۶ جلد ۱ باب المسافر)

وقال العلامة كاسانى: وينتقض بالسفر ايضا لان توطنه فى هذا المقام ليس للقرار ولكن لحاجة فاذاسافر منه يستدل به على قضاء حاجته فصار معرضا عن التوطن به فصار ناقضاً له دلالة. (بدائع الصنائع ص ۲۸۰ جلد ۱ الكلام فى الاوطان)



کله چه ددې سړی سامان په دې وطن اقامت کښې نه وی.

**يدل عليه مافى البحر ص ۱۳۶ جلد ۲ كوطن الاقامة يبقى ببقاء الثقل وان اقام بموضع آخر انتهىٰ﴿۱﴾. ويدل عليه كلام البدائع ص ۱۰۴ جلد ۱ على ان قصد علم الترک كاف فى بقاء الوطن الاولىٰ وغيره بخلاف ما اذا قصد الترک كالمهاجرين رضى الله عنهم﴿۲﴾. وهوالموفق**

## د ميلونو په اندازې مسافت سره د قصر اعتبار

**سوال:** څه فرمائی علمائې دين د شرع متين دې مسئلې باره کښې چه د قصر دپاره دفاصلې مقدار علمائې ديوبند د ميلونو په اعتبارسره معتبرکړې دې چه دا اتۀ ځلويښت ميله دې، آيا د قصر فاصله ميلونو سره معتبر کيدې شی که دې لره اعتباروی نود ميلونو په حساب سره دقصر فاصله څومره جوړيږی؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالمحی مردانی.... ۱۹۷۲ء | ۹ | ۵

**الجواب:** د ديوبند علمائې کرامو دقصر فاصله اتۀ ځلويښت ميله انگريزی خودلې ده. (کمافی فتاوٰی دارالعلوم ديوبند ص ۴۴۴ جلد ۴) وجه داده چه په ظاهر الروايت کښې اګرچه د مسافت او ميلونو هيڅ اعتبارنشته. (کمافی الهداية و شروحها وجميع كتب الفتاوٰى) ﴿۳﴾ ليکن په موجوده زمانه کښې د پيدل سفر نادر

﴿۱﴾ (البحر الرائق ص ۱۳۶ جلد ۲ باب المسافر)

﴿۲﴾ قال العلامة الكاسانى: واصله ان رسول الله ﷺ والمهاجرين من الصحابة رضى الله عنهم كانوا من اهل مكة، وكان لهم بها اوطان اصلية، ثم لما هاجروا وتوطنوا بالمدينة وجعلوها دارا لانفسهم، انتقض وطنهم الاصلى بمكة حتى كانوا اذا اتوا مكة يصلون صلاة المسافرين حتى قال النبى ﷺ حين صلى بهم اتموا يا اهل مكة صلاتكم فانا قوم سفر...... لان توطنه فى هذا المقام ليس للقرار ولكن لحاجة فاذا سافر منه يستدل به على قضاء حاجته فصار معرضا عن التوطن به فصار ناقضا له دلالة. (بدائع الصنائع ص ۲۸۰ جلد ۱ الكلام فى الاوطان)

﴿۳﴾ قال ابن الهمام: ولا معتبر بالفراسخ هو الصحيح. ...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

مشکل اونه پیښیدلو په وجه د دري ورځو مسافت معلومول او معین کول ډیر مشکل دی، لهٰذا علمائې کرامو دآسانئ دپاره حد مقرر کړې دې یعنی اته ځلوېښت میله ئې مقرر کړې دی او ددې حد مقررکولو دلیل دادې، چه د درمختار او رد المحتار په باب صلاة المسافر کښې لیکلی دی چه د درې ورځو دمسافت نه مراد دادې چه دکال په وړو ورځو کښې دسحرنه واخله تر زوال پورې (په استثناء د استراحات معتاده وغیره مثلاً قضاء حاجت. اودس، مونځ خوراك وغیره معتدل رفتارسره د درې ورځو وی او درې میله د یوې گهنټې په حساب سره روزانه شپاړس میله مزل کولو سره اته ځلوېښت میله جوړیږی.

**فی ردالمحتار: ومجموعه ثلثة ایام فی دمشق عشرون ساعة الاثلث ساعة تقریباً لان من الفجر الی الزوال فی اقصر الایام عندنا ست ساعات وثلثی ساعة الا درجة ونصفا﴿۱﴾ انتهیٰ بقدر الحاجة قلت وهذا هو مقدار الیوم عندنا ایضا لاتحاد السمت فلیراجع الی الخریطة (النقشه) والمعتاد المجرب قطع ثلثة امیال فی ساعة واحدة فاذا استثنیٰ لقضاء الحاجة ،والطهارة والصلاة والاکل وغیره ساعة وثلث ساعة لانه اقل ما یکفی فبقیت خمس ساعات وثلث فافهم وجرب. فقط**

## په ملکی سرحد او محاذ باندې کیمپ لگونکی فوجیان سپاهیان په قصر اواتمام کښې د پورته افسرانو تابع دی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زه په فوج کښې د امامت فرائض اداکوم اوس مونږ په سرحد یعنی محاذ باندې یو، اویوځائې کښې مو کیمپ لگولې دې چه ددې تقریباً درې میاشتې اوشوې، مخکښې خومونږ قصرمونځ کولو ،آیامونږدلته د اقامت نیت کولې شو یانه؟ که مونږته خپل کمانډرحکم راکړی چه دلته به پنځلس ورځې پاتې کیږئ نوآیا مونږد اقامت مونځ کولې شو؟ لیکن داخبره هم د یاد ساتلوده چه د فوج کمانډر د بل جرنیل ماتحت وی اودغه جرنیل خپله دیو دریم جرنیل ماتحت وی. اوس مونږ دپاره به دخپل کمانډر خبره کافی وی یا دهغې دویم لوئې جرنیل؟ دغسې ما دهغوی دحکم نه بغیر داقامت نیت کړې دې ځکه چه زما غالب گمان دې چه مونږ به دلته تقریباً درې میاشتې پاتې کیږو آیا زما دا نیت صحیح دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی سمیع الله بریگیډ هیډ کوارټر ایس پی پی او

**الجواب:** که دا کیمپ په بیابان کښې لگولې شوې وی نو دلته نیت داقامت صحیح نه دې اگرچه د کمانډر وغیره حکم او اجازت موجود وی. اوکه په آبادئ کښې وی نو داقامت نیت د کمانډرد حکم نه پس صحیح دې.

**فی الدرالمختار ولو نوی غیرهم (اهل الاخبیة) الاقامة معهم لم یصح فی الاصح﴿۱﴾ (هامش ردالمحتار ص ۷۳۹ جلد ۱). وفی الهندیة ص۱۴۸ جلد ۱ ونیة الاقامة انما تؤثر بخمس شرائط (الی ان قالوا) وصلاحیة الموضع حتی لو نوی الاقامة فی بر او بحر او جزیرة لم یصح﴿۲﴾ وفیها ایضا ص ۱۴۹ جلد ۱ وکل من کان تبعاً لغیره یلزمه طاعته یصیر مقیما باقامته ومسافراً بنیته وخروجه الی السفر کذافی محیط السرخسی، وفیها ایضاً الاصل ان من یمکنه الاقامة باختیاره یصیر مقیما بنیة نفسه ومن لا یمکنه الاقامة باختیاره لا یصیر مقیما بنیة نفسه حتی ان المرأة اذا کانت مع زوجها فی السفر...... والجندی مع امیره فهٰؤلاء لا یصیرون مقیمین بنیة انفسهم فی ظاهر الروایة کذا فی المحیط﴿۳﴾. وهو الموفق**

---

(بقیه حاشیه) احتراز عن قول عامة المشائخ فان عامة المشائخ قدروها بالفراسخ ایضا ثم اختلفوا فیما بینهم بعضهم قالوا احد وعشرون فرسخا وبعضهم قالوا ثمانیة عشر وبعضهم قالوا خمسة عشر والفتویٰ علی ثمانیة عشر.

(فتح القدیر ص۵ جلد۲ باب صلاة المسافر)

﴿۱﴾ (ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ۵۷۹ جلد ۱ باب صلاة المسافر)

---



﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۸۳ جلد ۱ مطلب سجدة الشکر باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۳۹ جلد ۱ الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)

﴿۳﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۴۱ جلد ۱ الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)

## د ښار یا د ښار د حدودو قیدي به اتمام او د بیابان او صحرا قیدي به قصرکوي

**سوال:** مونږ د جنګي قیدیانو په حیثیت سره هندوستان کښې نظربندیو، مونږ ته د هند حکومت د ټولو مذهبي سهولتونو راکولو سره په دې مسئله کښې مبتلا یو چه مونږ ته د هندوستان په کیمپونو کښې کوم مونځ اداکول پکار دي قصر مونځ یا پوره مونځ؟ تاسو حضراتو چه کومه فتوی رالیږلې ده دا دهغې نه مختلف ده کومه چه د کراچۍ جناب مفتي اعظم مفتي محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه ورکړې ده. هغوی قصر لیکلې دې مولانا مودودي صاحب هم دقصر رائې لیکلې ده. تاسو چه د رد المحتار په حوالې سره نقل کړې دی آیا مونږ اوس د دې مطابق عمل اوکړو یا دهغې اکابر علمائې دین په رائې باندې عمل اوکړو چه دهغوی علمي حیثیت منلې شوې دې، مونږ د یو کیمپ نه بل کیمپ ته نه شو تلې، او نه مونږ ته معلومه ده چه مونږ به کله ازادیږو؟ او کله به بل ځائې ته ځو؟ په دې حالت کښې مونږ د جمعې مونځ هم نه شو اداکولې، مونږ ته هیڅ پته نشته چه مونږ سره به څه معامله کیږی، جواب نه مو خبر کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمٰن جنګي قیدی انډیا

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتکم: السلام علیکم نه پس دې واضحه وی چه په تاسو کښې کوم خلق چهاونړۍ ښار یاد ښار په حدودو کښې قیددی نو هغوی به اتمام کوی. او د جمعې او اخترونو مونځ به هم باقاعده کوی، او په روژه کښې به افطار نه کوی، او سنت به هم باقاعده کوی؟ کما فی الهندیة ص۱۴۹ جلد۱ فیصیر الجندی مقیما فی الفیافی بنیة اقامة الامیر فی المصر کذا فی الکافی انتهٰی. ﴿۱﴾ او کوم خلق چه په بیابان او صحرا کښې قیددی نو هغوی به قصرکوی او سنت اداکول به بهتروی، او د جمعې او اخترونو مونځ به نه کوی، او په رمضان کښې افطارکولې شی. لان المفازة لیست من محل الاقامة فلاتصح فیها نیة الاصل والمتبوع فکیف تصح نیة التابع والاسیر. ﴿۲﴾. فافهم. وهو الموفق

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ص۱۴۱ جلد ۱ الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)

﴿۲﴾ قال العلامة الکاسانی: واما المفازة والجزیرة ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د جنګي قیدیانو د اقامت او قصر نیت معتبر نه دې بلکه هغوی د خپلو افسرانو تابع دی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه په بهارت کښې به د پاکستان جنګي قیدیان قصر مونځ کوی یا د مونځ اتمام؟ بعضې حضرات د قصر په ثبوت کښې دقاضي خان جلد ۱ ص۸۱ حواله ورکوی او بعضې جمهور اهل علم د جواز قائل کیدو اجمالي حواله ورکوی. او د قصر حکم ورکوی. څومره چه ماته علم دې په مذکوره صورت کښې د حنیفه په نزد د اتمام حکم صحیح دې، ځکه چه تقریباً ټولو حنفي فقهاؤ قیدیان دهغې خلقو سره شمارلی دی چه دهغوی د خپلې رائې او نیت هیڅ اعتبار نشته. بلکه هغوی په قصر او اتمام کښې د نورو تابع دی مثلاً ښځه، غلام وغیره. که په دې خلقو باندې دقصر حکم د قیدی کیدو په وجه دې نو دا صحیح نه ده بلکه د اتمام حکم صحیح دې.

(فتح القدیر ص۴۰۶ جلد ۱ مصری)، (در المنتقی شرح الملتقیٰ) او په مجمع الانهر کی داسے منقول دی: لیس مراد المصنف قصر التبع علی هولاء الثلاثة (المرأة والعبد والجندی) بل هو کل من کان تبعاً له وتلزمه طاعته (ص ۱۶۰ جلد ۱)

دغسې په صلوٰة مسعودی کښې هم د دې نه زیات تفصیل دې ص۴۲۴ جلد ۲ مطبع محمدی بمبئ هند.

فتح الله المعین علی شرح الکنز ومن الاتباع الاجیر مع المستأجر والتلمیذ مع استاذه والمکره علی السفر والاسیر آه (فتح الله المعین للعلامة محمد بن المسعود المصری الحنفی ص۳۱۰ جلد ۱)

دغسې د نورو مختلف کتابونو شامی وغیره نه هم ثابت دی.

د مذکوره تصریحاتو نه معلومیږی چه د حنیفهؤ په نزد دقیدی د نیت هیڅ اعتبار نشته، بلکه هغه د خپل متبوع د حکم تابع دې. په دې وجه دقصر حکم د دې تصریحاتو په رڼا کښې صحیح دې او د دې وخت په قیدی

(بقیه حاشیه) والسفینة فلیست موضع الاقامة حتی لو نوی الاقامة فی هذه المواضع خمسة عشر یوما لا یصیر مقیماً.

(بدائع الصنائع ص۲۷۱ جلد ۱ بیان مکان الصالح للاقامة)

کښې او دهغه زماني په قیدی کښې مابه الامتیاز که څۀ وجه د فرق وی نو نشاندهی او کړئ که دا اوونیلې شی چه په مسلح فوجونو کښې چه دهغې تعلق مغربی پاکستان سره دې هغوی په مشرقی حصه کښې دجنګ په وخت مسافرو، او دا حکم د قید په حالت کښې قائم ساتلې شوې دې نو دا بالکل پوهه کښې نه راځی، د شوافعو په نزد په دې صورت کښې دقصرحکم صحیح معلومیږی لکه څنګه چه د نهایة المحتاج ص ۲۵۰ جلد ۲ او د التجوید لنفع العبید ص ۳۹۰ جلد ۱ نه معلومیږی. دحنابله په نزدهم د قیدی اومکره دپاره دقصرحکم دې. کما فی الانصاف ص۳۱۵ جلد ۱ البته د مدونة الکبرٰی نه د امام مالك مذهب داتمام معلومیږی. اوګورئ مدونة الکبرٰی ص۱۲۲ جلد۱ قال مالك صلاة الاسیر فی دارالحرب اربع رکعات الخ، امید دې چه په مذکوره مسئله باندې به کما حقه رڼا اچولو سره مدلل ثابت کړئ او حواله جات به هم رانقل کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدرفیع الله اداره تحقیقات اسلامی اسلام آباد ۲ جولائی ۱۹۷۳ء

**الجواب**: واضحه دې وی چه د اسیر اوقیدی د نیت هیڅ اعتبار نشته بلکه نیت به د قید کونکی افسر معتبروی.

**کمافی الدرالمختار والمعتبر نیة المتبوع لا التابع کامرأة وعبد وجندی واجیر واسیر وغریم وتلمیذ الخ بحذف﴿۱﴾ هامش ردالمحتار ص ۷۴۴، ۷۴۵ جلد ۱ وبمعناه فی جمیع کتب الفقه،**

او واضحه دې وی چه په بیابان او سمندر کښې نیت داقامت صحیح نه دې:

**کمافی الهندیة ص۱۳۸ جلد ۱ ونیة الاقامة انما توثر بخمس شرائط ترک السیر حتی لو نوی الاقامة وهو یسیر لم یصح وصلاحیة الموضع حتی لو نوی الاقامة فی بر او بحر او جزیرة لم یصح انتهیٰ﴿۲﴾ وبمعناه فی سائر کتب الفتاویٰ،**

---

**﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۸۷ جلد ۱ مطلب فی الوطن الاصلی ووطن الاقامة باب صلاة المسافر)**

**﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۳۹ جلد ۱ الباب الخامس عشرفی صلاة المسافر)**



پس ددې قواعدو په بنا باندې ددې قیدیانو حکم دادې چه په دوی کښې کوم خلق په یوه آبادئ کښې ګیروی نوهغوی به اتمام کوی.

**لزیادة مدة اسرهم وحبسهم علی مدة القصر کما لا یخفی علی من راجع الیٰ تاریخ المذاکرات (بین حکومة الهند والباکستان)**

اوکوم خلق چه په بیابانی کیمپونو کښې بندیوان وی او ددوی امیر یعنی هغه افسر کوم چه دحکومت دطرفه د قیدیانو په نقل کولو اود بوتللو مکمل اختیارمند وی دهغوی سره په بیابان کښې وی نودا خلق به قصرکوی. لعدم صحة نیة المتبوع، اوکه دا میر په یوه آبادئ کښې مقیم وی اود انتظام دپاره باقاعده راځی، نوپه دې صورت کښې به اتمام ضروری وی.

**کمافی الهندیة ص ۱۴۹ جلد ۱ فیصیر الجندی مقیما فی الفیافی بنیة اقامة الامیر فی المصر کذافی الکافی انتهی﴿۱﴾ قلت فکذا الاسیر بنیة الامیر،**

خلاصه دا چه که افسر مقیم وی نودا قیدیان به اتمام کوی. وهوالموفق

## د یوسړی په دوه وطنونوکښې د جائیداد وغیره کیدلو په صورت کښې د سفر اوقصر مسئله

**سوال**: څه فرمائی علمائې دین د شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې خپل وطن اصلی یعنی د پلار نیکونو په موروثه جائیداد وغیره کښې دتول اهل وعیال سره مقیم وی. او دهٔ بل رور یا ترهٔ وغیره په بل نوی وطن کښې خپل اهل وعیال سره مقیم دې. او په دواړه وطنونو کښې د مسافت حد اتهٔ څلویښت میله نه زیات دې. اوس وطن اصلی کښې اوسیدونکی نوی وطن ته راځی نو که دا سړې د پنځلس ورځونه کم اوسیږی نودا به مقیم وی یا مسافر؟ حالانکه دلته ددهٔ رور وغیره موجود دی. کور او جائیداد او غیره هم شریك دی اود وطن اصلی والا جائیداد هم شریك دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورسلیم لال ګړهی کوهاټ... ۲۲|۵|۱۹۸۹ء

**الجواب**: هرکله چه دا سړې ددې نوی وطن په زمکه او کورونو کښې حصه داردې

---

﴿۱﴾ (فتاوٰی عالمگیریة ص ۱۴۱ جلد۱، الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)

نود قواعدو په رڼا کښې به دا سړي په دې نوی وطن کښې هم اتمام کوی.
کما یدل علیه مافی الهندیة ص ۱۴۲ جلد ۱ ولو انتقل باهله ومتاعه الی بلد وبقی له دور وعقار فی الاول قیل بقی الاول وطناً لـه والیـه اشار محمد فی الکتاب کذا فی الزاهدی ﴿۱﴾. فافهم قلت یؤیده ماوجه به اتمام عثمان فی حجه من اتخاذه عقاراً بالطائف﴿۲﴾. وهوالموفق

## ښځه به د مورپلار کور اود خاوند دکور د سفرپه لارکښې قصرکوی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه د یوې جینئ واده د اتۀ څلویښت میله نه زیات فاصله باندې شوې دې اوس د مورپلار کورته د راتلو په صورت کښې به قصرکوی یا اتمام؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجی عظیم شاه ایران منزل ټانک ډی آئی خان

**الجواب:** دا ښځه به په لارکښې د تلو راتلو په وخت قصرکوی تردې که په لارکښې یو مونځ قضاء شو نوپه کورکښې به ددې قضاء هم قصرکوی. اود مورپلار په کلی اوپه ښارکښې به پوره مونځ اداکوی. کمـا فی رد المحتار ص ۷۴۲ جلد ۱ الوطن الاصلی هو موطن الاصلی ﴿۳﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۴۲ جلد ۱ الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)

﴿۲﴾ وفی منهاج السنن ان النبی ﷺ قصر فی غزواته وفی فتح مکة وفی حجة الوداع عند الاقامة وعند عدم المشقة وقیل ان عثمان نوی الاقامة وقیل انه تاهل بمکة وقیل انه اتخذ الاموال بالطائف وفیه انه لوکان الاتمام بناء علی هذه الوجوه لما انکر علی عثمان الصحابة رضی الله عنهم. (منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ص ۷۹ جلد ۳ ابواب السفر)

﴿۳﴾ قال الحصکفی: الوطن الاصلی هو موطن ولادته او تاهله او توطنه یبطل بمثله اذالم یبق له بالاول اهل فلو بقی لم یبطل بل یتم فیها، قال ابن عابدین: ولو کان له اهل ببلدتین فایتهما دخلها صار مقیماً فان ماتت زوجته فی احداهما وبقی له فیها دور وعقار قیل لا یبقی وطنا له اذالمعتبر الاهل دون الدار کما لو تاهل ببلدة واستقرت سکناله ولیس له فیها دار وقیل تبقی. (الدر المختار مع ردالمحتار ص ۵۸۲ جلد ۱ مطلب فی الوطن الاصلی والاقامة باب المسافر)



## د قصرمونځ د پاره د سفر د مسافت مقدار

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه حد د سفر دې ورځې دې آیا ددې نه پیدل سفرمراد دې اوکه د ګاډي، جهاز وغیره هم؟ بینوا توجروا

**الجواب:** اتـه څلویښت میله یا اتۀ اویا کلومیټره مسافت معتبردې ﴿۱﴾. وهوالموفق

## کوم ډرائیورچه مستقل په سفرکښې وی د هغه د مونځ حکم

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه کوم ډرائیور اکثر په سفرکښې وی اود لاهورنه پېښورته راځی دهغه دمونځ څه حکم دې قصر به کوی یا اتمام؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبدالودود تیراوی کوهاټ....۱۹۷۶ء|۵|۱۳

**الجواب:** داسې ډرائیور به قصرکوی چه ترڅو پورې وطن داقامت وغیره ته واپس نه وی راغلې. ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د وطن اقامت نه نورو ځایونو ته د تلو په صورت کښې به سفر دکوم ځائې نه حسابیږی؟

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دشرع متین دې مسئلې باره کښې چه یوسړی د

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: اقل مسافة تتغیر فیها الاحکام مسیرة ثلاثة ایام کذافی التبیین......والمعتبر السیر الوسط وهو سیر الابل ومشی الاقدام فی اقصر ایام السنة الخ.
(فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۳۸ جلد ۱ الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)

﴿۲﴾ قال العلامة المرغینانی رحمه الله ولایزال علی حکم السفر حتی ینوی الاقامة فی بلدة او قریة خمسة عشریوما او اکثر وان نوی اقل من ذالک قصر.
(الهدایة علی صدر فتح القدیر ص ۹ جلد ۲ باب صلاة المسافر)

کوټټې اوسیدونکې دې.او په ګډانی (چه د کراچۍ نه تقریباً څلویښت میله فاصله باندې دې) کښې مقیم دې.درې میاشتې ئې هلته د اوسیدلو اراده کړې ده اوهغه کراچۍ ته ځی راځی نو کراچۍ ته د تللو په صورت کښې به د کوټټې یعنی دوطن اصلی اعتباروی یا د ګډانی یعنی دوطن اقامت اعتبار به وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ محمد قاسم حقانی کوټټه شهر... ۴جمادی الثانی ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** داسړې به د کراچۍ دغسې په نورو هغه ځایونو کښې چه د دې ځائې نه دسفر په مقدار (اته څلویښت میله اته اویا کلو میټره) نه کم لرې وی اتمام به کوی. (شامیه ص۷۴۳ جلد۱) ﴿۱﴾.وهوالموفق

## د ښځې د مورپلار اود خاوند د خواښې سخر د کورو په مینځ کښې دسفر د مسافت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دشرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی داسې ځائې کښې نکاح کړې ده چه هغه دسفر په مسافت باندې دې.اوس چه کله دا ښځه دمورپلار کورته پنځه شپږ ورځو دپاره ځی نو پوره مونځ به اداکوی یا قصر به کوی؟ دغسې خاوند به دخواښې سخر کورته تللو سره اتمام کوی یا قصر؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ عبدالمالك نریاب ضلع هنګو

**الجواب:** دا خاوند به دخواښې سخر په کلی کښې قصر کوی.ځکه ښځه دخاوند سره اوسیږی دمورپلار سره نه اوسیږی،نو دخواښې سخر کور د تاهل مقام نه دې.

**کما یشیر الیه ماذکره العلامة الشامی عن شرح المنیة ولو کان له اهل ببلدتین فایتهما دخلها صار مقیماً ، فان ماتت زوجته فی**

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: والحاصل ان انشاء السفر یبطل وطن الاقامة اذا کان منه اما لو انشأه من غیره فان لم یکن فیه مرور علی وطن الاقامة او کان ولکن بعد سیر ثلاثة ایام فکذلک ولو قبله لم یبطل الوطن بل یبطل السفر لان [illegible] الوطن مانع من صحته والله اعلم.
[illegible] المحتار ص۵۸۶جلد۱ مطلب فی الوطن الاصلی ووطن الاقامة باب صلاة المسافر)



**احداهما وبقی له فیها دور وعقار قیل لا یبقی وطناً له اذا المعتبر الاهل دون الدار کما لو تاهل ببلدة واستقرت سکناله، ولیس له فیها دار. فافهم﴿۱﴾.**

اوښځه به اتمام کوی ځکه چه هغې دا وطن اصلی نه دې پریخودې.لکه څنګه چه مهاجرینو پریخې وو. ﴿۲﴾.وهوالموفق

## دسرکارحکم د پنځلس ورځونه د زیات پاتې کیدودې اوملازم کم قیام کوی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې سرکاری ملازم دې اود ملازمت ځائې اته څلویښت میل نه زیات دې سرکاری حکم دادې چه داملازم به دخپل ملازمت په ځائې کښې د پنځلس ورځونه زیات قیام کوی،لیکن دکار دکمی په وجه یا هسې ملازم دپنځلس ورځونه کم قیام کوی،په دې ملازمانو کښې بعضې دخپل نیت په اعتبارسره قصرکوی اوبعضې وائی چه زمونږ د نیتونو اعتبارنشته دسرکاردحکم په وجه به مونږ پوره مونځ اداکوو.په دې کښې کوم قول معتبردې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا شیرخان دارالعلوم ایوبیه تجوړی بنوں

**الجواب:** په مسئوله صورت کښې د ملازمت په دې مقام باندې نه سرکارپه ډیوټۍ شته اونه اوچت افسر.نودا معروفه قاعده ﴿۲﴾ په دې صورت کښې جاری کول ناپوهی ده. ﴿٤﴾.وهوالموفق

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۵۸۶جلد۱ مطلب فی الوطن الاصلی ووطن الاقامة)
﴿۲﴾ قال العلامة الکاسانی: واصله ان رسول الله صلی الله علیه وسلم والمهاجرین من الصحابة رضی الله عنهم کانوا من اهل مکة وکان لهم بها اوطان اصلیة ثم لما هاجروا وتوطنوا بالمدینة وجعلوها داراً لانفسهم انتقض وطنهم الاصلی بمکة حتی کانوا اذا اتوا مکة یصلون صلاة المسافرین. (بدائع الصنائع ۲۸۰ جلد۱ الکلام فی الاوطان)
﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: والمعتبر نیة المتبوع لانه الاصل لا لتابع کامرأة وفاها مهرها المعجل وعبد غیر مکاتب وجندی اذا کان یرتزق من الامیر او بیت المال واجیر واسیر وغریم وتلمیذ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۸۷جلد۱ مطلب فی الوطن الاصلی ووطن الاقامة باب صلاة المسافر)
﴿۴﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله واجیر) ای مشاهرة...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د ۴۸ میله یا ۷۸ کلومیټرنه کم د سفرمسافت کښې به قصرنه کوی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زهٔ دخپل کلی نه ۴۲ کلومیټره لرې په کالج کښې لیکچرار یم. اوپه هر زیارت کورته واپس راځم بالفرض که دوه هفتې ہم هلته قیام اوکړم بیاهم پنځلس ورځې نه پوره کیږی اوس به زهٔ قصرکوم یا پوره مونځ به کوم؟ بینوا توجروا

المستفتی: لعل دادخان بابوزئ ضلع مردان... ۱۹۸۹ء|۱|۲۹

**الجواب:** ته په دې کالج کښې مسافرنه یې د قصرد مسافت مقدار اتهٔ څلویښت میله یا اتهٔ اویا کلومیټره دې. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په مختلفو ځایونوکښې د کور او مورپلار وغیره د کیدلو په صورت کښې د سفر اواقامت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دشرع متین دې مسئلې باره کښې چه شپږ ځایونه دی: (۱) دوکی (۲) سنجاوی (۳) لورالائی (۴) پوئی (۵) کچ (۶) جرړه. په دې شپږو ځایونوکښې دهر یو سره زما څه نه څه طریقې سره تعلق دې هغه داچه (۱) دوکی د بنده وطن اقامت دې (۲) په سنجاوی کښې زما دپلار کور دې (۳) پوئی زما وطن ولادت دې اودلته مې څه حصه زمکه هم ده. (۴) جرړه زما د پلار د اوسیدو وطن دې. په دې وجه زهٔ جرړه ته په دوه لاروځم کله په یوه لار چه هغه ۵۹ میله جوړیږی کله په دویمه لار چه هغه ۵۷ میله جوړیږی ړومبئ لار د لورالائی سنجاوی اوکچ لاره ده. او دویمه لار د سنجاوی او پوئی په لار جرړه ته ځی، اوس که زهٔ د دوکی نه سنجاوی ته لاړشم چه هلته مې دمورپلار قلعه ده اود سنجاوی نه پوئی ته ځم چه هلته مې پیدائش شوې دې اودهغه ځائې نه جرړه ته ځم چه دامې دمورپلار د اوسیدوځائې دې. نوآیا زهٔ به سنجاوی، پوئی

(بقیه حاشیه) او مسانهة کما فی التتارخانیة اما لو کان میاومة بان استأجره کل یوم بکذا فان له فسخها اذا فرغ النهار فالعبرة لنیته. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۱ :۵۸۷ قبیل باب الجمعة)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: (قوله من جاوز بیوت مصره) مریدا سیرا وسطا ثلاثة ایام فی بر و بحر او جبل قصر الفرض الرباعی الخ. (البحر الرائق باب المسافر ص ۱۲۸ جلد ۲)



اوجرړه درې واړوځایونوکښې قصرکوم یا اتمام؟ اوکله چه د دوکی نه جرړه ته د لورالائی او کچ په لارې ځم نو لورالائی اوکچ سره زما هیڅ تعلق نشته نوقصر په کوم یا اتمام؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی بختیارفاضل حقانیه دوکی ضلع لورالائی ۱۹ جنوری ۱۹۸۴ء

**الجواب:** وبالله التوفیق: چونکه ته دپلار د تبعیت او عیالت نه خارج شوې یې لهٰذا ته به مقام نمبر ۲ اومقام نمبر ۴ خپل وطن نه شمارې. اوکه په مقام نمبر ۳ کښې ستا اهل وعیال نه وی صرف زمکه دې وی نودا به د قول راجح په بنا باندې وطن شمارلې شی.

**لان هٰذا وان کان فیه قولان کما فی البحر ص ۱۳۶ جلد ۲ ﴿۱﴾ عن المجتبیٰ لاکن یوید کونها وطناله ماوجه به اتمام عثمان بن عفان رضی الله عنه انه اتخذ فی الطائف الاموال فافهم ﴿۲﴾.**

پس که ته ددریم مقام لورالائی په لاره پلار ته ورځې نوقصرکوه. په دویمه لار باندې دتللوپه وخت اتمام کوه. ﴿۳﴾. وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: وفی المحیط ولو کان له اهل بالکوفة واهل بالبصرة فمات اهله بالبصرة وبقی له دور وعقار بالبصرة قیل البصرة لا تبقی وطنا له لانها انما کانت وطنا بالاهل لا بالعقار الا تری انه لو تاهل ببلدة لم یکن له فیها عقار صارت وطنا له وقیل تبقی وطنا له لانها کانت وطناله بالاهل والدار جمیعا فبزوال احدهما لا یرتفع الوطن کوطن الاقامة یبقی ببقاء الثقل وان اقام بموضع آخر وفی المجتبیٰ نقل القولین فیما اذا نقل اهله ومتاعه وبقی له دورو عقار الخ. (بحر الرائق ص ۱۳۶ جلد ۲ باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: وروی عن عثمان وعائشة الاتمام کما فی حدیث متفق علیه ...... وقیل ان عثمان رضی الله عنه نوی الاقامة وقیل انه تاهل بمکة وقیل انه اتخذ الاموال بالطائف. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۷۹ جلد ۳ باب التقصیر فی السفر ابواب السفر)

﴿۳﴾ قال فی الهندیة: وتعتبر المدة من ای طریق اخذ فیه...... فاذا قصد بلدة والی مقصده طریقان احدهما مسیرة ثلاثة ایام ولیالیها والآخر دونها فسلک.........

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د ملازمت په ځائې کښې د پنځلس ورځو نه کم قیام والا به قصرکوی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین د شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زه په پاړه چنار کښې ملازم یم، او د بنوڼ او سیدونکې یم، او په پاړه چنار کښې د پنځلس ورځو نه کم پاتې کیږم یعنی هفته په هفته واپس راځم آیا زه به قصرکوم یا اتمام؟ بینوا توجروا

المستفتی: امیرالله لیکچرر ډگری کالج پاړه چنار

**الجواب:** په ظاهره ته مسافرېې پاړه چنار نه ستا وطن اصلی دې او نه دې وطن اقامت دې ته قصرکوه. ﴿۱﴾.وهوالموفق

## د ملازمت په ځائې کښې یوځل د اقامت کولونه پس تردې ځائې پریخودلو پورې به اتمام کوې

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زما ملازمت د کلی نه تقریباً شپیته میله فاصله باندې دې او زه په هره دویمه جمعه کورته ځم چه دا تقریباً دیارلس ورځې جوړیږی نو په دې حالت کښې به اتمام کوم یا قصر؟ او که یوځل پنځلس ورځې پوره کړم ددې نه پس په هره دویمه جمعه ځم نو په دې صورت کښې به اتمام کوم یا قصر؟ دقرآن او حدیث او د فقه حنفی په رڼا کښې تسلی بخش جواب راکړئ .عندالله ثواب حاصل کړئ او عندنا مشکور شئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: ماسټر معراج الدین خیروخیل لکی مروت... ۱۹۹۰ء|۱۱|۷

---

(بقیه حاشیه) الطریق الابعد کان مسافرا عندنا...... وان سلک الاقصر یتم کذا فی البحر. (فتاوٰی عالمگیریة ص۱۳۸ جلد۱ الباب الخامس عشرفی صلاة المسافر)

﴿۱﴾ قال المرغینانی: ولا یزال علی حکم السفر حتی ینوی الاقامة فی بلدة او قریة خمسة عشر یوما او اکثر وان نوی اقل من ذلک قصر.

(هدایة علی صدرفتح القدیر ص ۹ جلد۲ باب صلاة المسافر)



**الجواب:** ته یوځل دلته مقیم شه نوددې نه پس به ستا دا وطن اقامت په سفرسره نه باطلیږی بیاچه ترڅو پورې ستا ملازمت دلته وی ته به اتمام کوې.(ماخوذ از بحر والبدائع) ﴿۱﴾.وهوالموفق

## د افغان مهاجرینو په افغانستان کښې د جهاد په دوران کښې د قصر او اتمام مسئله

**سوال:** محترم مفتی صاحب! عرض میداریم اینکه مایاں مہاجرین به افغانستان از برائے جہاد میرویم و در آں جامدت چہار ماه بود وباش میکنم درکوه یا درقریٔ که سکان آں ہجرت کرده است ومایاں ازیں مراکز بر دشمن حملہا میکنم وامکان دارد اگر دشمن بالائی مایاں جدی نماید، مایاں قرار خواہم کرد ایا مایاں مقیم گردیم ویانه، افغانستان دارحرب است یانه باقی از شما خواہش میکنم که جواب رابرائے مایاں وضع نمائید بعیداز لطف تان نخواہد بود۔ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالنصیر مہاجرافغانستان دارالعلوم حقانیه......۱۹۸۸ء/۳/۲۲

**جواب:** چونکه مہاجرین افغانستان اراده ترک مؤبدنه کرده اند، ومثل مہاجرین مکه نه ہستند لہٰذا این مہاجرین درمسکن خویش اتمام خواہند کرد، واگر درمسکن خود داخل نه شده باشند ودر صحاری وکوه باشد قصر خواہد کرد ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: کوطن الاقامة یبقی ببقاء الثقل وان اقام بموضع آخر. (البحر الرائق ص ۱۳٦ جلد۲ باب صلاة المسافر)

وقال العلامة کاسانی: وینتقض بالسفر ایضا لان توطنه فی هذا المقام لیس للقرار ولکن لحاجة فاذا سافر منه یستدل به علی قضاء حاجته فصار معرضا عن التوطن به فصار ناقضا له دلالة ، انتهیٰ. (بدائع الصنائع ص ۲۸۰ جلد۱ باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: والخلاصة ثم نیة الاقامة لا تصح الا فی موضع الاقامة ممن یتمکن من الاقامة وموضع الاقامة العمران والبیوت المتخذة من الحجر والمدر والخشب لاالخیام والاخبیة والوبر. (البحر الرائق ص ۱۳۱ جلد۲ باب المسافر)

اوراگر درقریٔ داخل شده باشند ونیت پانزده روز نه کرده باشند قصر خواهند کرد ﴿۱﴾۔ وهو الموفق

## په سفرکښې د درې ورځو مسافت معتبردې فرسخونه معتبرنه دی

سوال: دفقهې په کتابونوکښې لیکلی دی چه د قصردپاره د فرسخونو اعتبار نشته حالانکه علماء اته څلوېښت میله معتبرکوی آیا دا تضادنه دې؟ مدلل جواب راکړئ.واجرکم علی الله

المستفتي: عبدالودود مسجد روډ کوئټه شهر.....۳۰|صفر ۱۴۰۲ھ

الجواب: په شامی اوبحر وغیره کښې لیکلی دی چه زمونږ په نزد د فرسخونو اعتبارنه دې او اعتبار دمسافت درې ورځې دی اوهغه درې ورځې چه د یخنئ د موسم ورځې وی او لنډې وی. ﴿۲﴾ اوپه دې حساب سره شپاړس میله مسافت ماسپخین پورې روزانه پوره کول متوسط رفتارسره ثابت دی.(۱۶ + ۳= ۴۸) پس په دې وجه زمونږ علماء په اتهٔ څلوېښت میله انګریزی باندې فتویٰ ورکوی.وهو الموفق

## مسافرچه په کوم لار باندې ځی د هغې مسافت به معتبروی

سوال: څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه د یوعظیم کلی نه خانخیل کلې شل میله فاصله باندې واقع دې اودویمه لار ۴۵ میله جوړیږی او په دریمه لار باندې ۶۲ میله جوړیږی.اوهغه ملازمین چه خانخیل ته ځی

﴿۱﴾ قال العلامة المرغینانی: ولا یزال علی حکم السفر حتی ینوی الاقامة فی بلدة او قریة خمسة عشر یوما او اکثر وان نوی اقل من ذلک قصر.
(هدایة علی صدرفتح القدیر ص۹ جلد۲ باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: مسیرة ثلاثة ایام ولیالیها من اقصر ایام السنة ولا یشترط سفر کل یوم الی اللیل بل الی الزوال ولا اعتبار بالفراسخ علی المذهب بالسیر الوسط مع الاستراحات المعتادة.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۷۹ جلد۱ باب صلاة المسافر)



اوپه قصد باندې په دغه ۲۲ میله والا لاره باندې ځی نو آیا دوی به مسافر شمارلې کیږی.او قصر به کوي؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوی ولی داد تجوړی لکی مروت.....۱۲۷|رمضان ۱۴۰۵ھ

الجواب: چه کله په عرف کښې دې درې واړو ته د خانخیل لارې وائی نو ۶۲ میله لارې باندې تللو سره به مسافر جوړیږی اوقصربه کوی.اګرکه په دغه لاره باندې تللو سره ئې څه صحیح مقصد وی یا نه وي؟

کمافی الهندیة فاذا قصد بلدة والیٰ مقصده طریقتان واحدهما مسیرة ثلاثة ایام ولیالیها والاخر دونها فسلک الطریق الا بعد کان مسافراً عندنا ﴿۱﴾.

نوټ: ......لان رعایة قواعد الفقه اولیٰ مما سواه بخلاف اذاخرج من موضعه قاصداً موضعاً آخردون مسافة السفر وقصد المشی بالتدویرات فانه یتم لعلم کونها من طریقة . وهو الموفق

## د اقامت د پاره عارضی نیت معتبر نه دې

سوال: علمائې دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو صاحب ۵۴ میله سفر اوکړو یو کلی ته ئې د تقریر دپاره تشریف لاړو. مولوی صاحب د ظهر مونځ پخپله باندې څلور رکعتو نه اوکړل. نو هغه صاحب جواب ورکړو چه ما د عارضی اقامت نیت کړې حال دا چه د جلسې دعوت کونکی سره دا وعده شوې وه چه د تقریر نه پس به فوراً واپسی وی.او د عصر مونځ ئې هم څلور رکعته اوکړل او تشریف ئې یوړلو او دائې هم اووئیل چه دا مسئله په هدایه کښې موجود ده او حال چه دا په هدایه کښې داسې الفاظ دی.

ولایزال علی حکم السفر حتی ینوی الاقامة فی بلدة او قریة خمسة عشریوماً او اکثر وان نویٰ اقل من ذلک قصر.

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۳۸ جلد ۱ الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)

اوس دتپوس مسئله داده چه آیا زمونږ داقتداء کونکومونځ شوي دي که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد الدین ماهنامه الحق خریداری نمبر ۱۶۳۲...۱۹۷۳ء/۴/۱۰

**جواب:** چونکه دانیت تحقیقی نه دي صرف تحیلی (دحیله سازئ دپاره) دي لهذا ددې مقتدیانو مونځ به فاسد او واجب الاعاده وي.

فی الدرالمختار ولو نوی الاقامة لا لتحقیقها بل لیتم صلوة المقمین لم یصر مقیماً وفی ردالمحتار ص ۲۱ جلد ۱ (قوله یصر مقیما) فلو اتم المقیمون صلاتهم معه فسدت لانه اقتداء المفترض بالمتنفل (ظهیریه) ای اذا قصد وامتا بعته اما لو نووا مفارقته ووافقوه صورة فلا فساد افاده الخیر الرملی ﴿۱﴾. وهوالموفق

## که په آبائی وطن کښې صرف جائیداد وی نوپه هغې کښې راجح قصر دې

**سوال:** محترم مفتی صاحب! ګزارش دې چه ځما والدین د دیر اوسیدونکی دی او اوس وفات شوې دی. البته هلته د هغوی جائیداد هم وو چه د هغې اوس ځه مالک یم لیکن ځما مستقل اوسیدل په مردان کښې دي. په مردان کښې ځما اهل وعیال هم دې نو په دې صورت کښې که زه ضلع دیر ته لاړشم نو آیا هلته به ځه قصر کوم یا پوره مونځ به کوم؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی نذر ګل بازار شهیدان هوتی مردان..... ۱۹۷۲ء۱۰۱۱۴

**الجواب:** راجح دا دې چه ته به دیر کښې قصر کوې.

فی الدرالمختار مع ردالمحتار ویبطل بمثله اذ لم یبق له بالاول اهل ای وان بقی له فیه عقار انتهیٰ ﴿۲﴾ ویؤیده ان النبی ﷺ قال انا قوم سفر ﴿۳﴾ ولم یخص منه احداً من المهاجرین. فقط

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۵۸۴ جلد ۱ قبیل مطلب فی الوطن الاصلی ووطن الاقامة باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۵۸۶ جلد ۱ مطلب فی الوطن الاصلی ووطن الاقامة باب الصلاة المسافر)

﴿۳﴾ عن عمران بن حصین قال غزوت مع النبی ﷺ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## په کور او جائداد کښې د مشترکو دوه رونړو په مختلفو ځایونو کښې د اوسیدلو په صورت کښ د اقامت او قصر مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دوه رونړو دی د هغوی دوه وطنو نه دی زمکه یا جائیداد او کورونه وغیره ئې مشترک دی مثلاً یو د اهل وعیال سره په پیښور کښې او بل په لاهور کښې اوسیږی یو چه د بل خواته ځی نو قصر به کوی یا تمام؟ بینوا تو جروا

المستفتی: نامعلوم............ ۲۹۱۱۱۱۹۹۰

**الجواب:** چه د یو سړی په دوه ځایونو کښې کور او زمکه موجود وی او په دواړو ځایونو کښې (په ګرمئ یا یخنئ کښې) اوسیږی. نو په دواړو ځایونو کښې به اتمام کوی (بحر) ﴿۱﴾ او چه کله صرف په یو ځائې کښې اوسیږی نو صرف د کور او زمکې په وجه باندې اتمام کول مختلف فیه دی.﴿۲﴾ لاکن تعلیل اتمام

(بقیه حاشیه) وشهدت معه الفتح فاقام بمکة ثمانی عشر قلیلة لایصلی الارکعتین یقول یا اهل البلد صلوا اربعا فانا سفر، رواه ابو داؤد (۱:۱۸) باب متی یتم المسافر. وفی روایة لابی داؤد سبع عشرة وفی اخریٰ خمس عشرة وعن عمران بن حصین ثمانی عشرة، وفی سنده علی بن زید بن جدعان قال ابن عدی فی الکامل احادیثه صالحة، وقال یعقوب بن شیبة ثقة صالح الحدیث وقال العجلی یکتب حدیثه، واما هذا الحدیث فصححه وحسنه الترمذی لشواهده کما فی التلخیص.

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: وفی المجتبیٰ نقل القولین فیما اذا نقل اهله ومتاعه وبقی له دور وعقار ثم قال وهذا جواب واقعة ابتلینا بها وکثیر من المسلمین المتوطنین فی البلاد ولهم دور وعقار فی القری البعیده منها یصیفون بها باهلهم ومتاعهم فلا بد من حفظها انهما وطنان له لا یبطل احدهما بالاخر. (البحر الرائق ص ۱۳۶ جلد ۱ باب المسافر)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن الهمام: وفی المحیط ولو انتقل باهله ومتاعه الی بلد وبقی له دور وعقار فی الاول قیل بقی الاول وطناله والیه اشار محمد رحمه الله فی الکتاب...... الا ان ابا یوسف کان یتم بها لکنه یحمل علی انه لم ینو ترک وطنه. (فتح القدیر شرح هدایه ص ۱۸ جلد ۱ باب صلاة المسافر)

عثمان بن عفان رضی الله عنه بشراء العقار بالطائف یؤید الاتمام ﴿١﴾ فافهم. وهوالموفق

## مسافر ډرائیور به وطن اصلی یا اقامتی ته د واپس کیدلو نه مخکښې قصر کوي

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید ګاډې چلوی او روزانه ئې د پیښور نه لاهور ته او د لاهور نه پیښور ته تله را تله وی. اوس تپوس دادې چه دا ډرائیور به قصر کوی یا اتمام؟ په حوالې سره اولیکئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: نثار احمد متعلم جامعه حقانیه اکوړه خټک...۳۱۱۵۱۱۹۸۹

**جواب**: دا ډرائیور یقیناً مسافر دې او وطن اصل یا اقامتی ته د واپس کیدلو نه مخکښې به قصر کوی.

الا اذا اقتدی بمقیم ودلیل اصل المسئله ما فی شرح التنویر حتی لو اسرع فوصل فی یومین قصر ﴿۲﴾. وهوالموفق

## د تاهل او تزوج والا ځائې کښې به قصر کولې شی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه څما پیدا ئش د ضلع دیر دې اوس په مردان کښې ما یو کور په کرایه اخستې دې او د څو کالو راسې په لنډ یکوتل کښې کار کووم او د یوې شپې د پاره مردان ته راځم نو اوس څه چرته مقیم یم؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم............۲۳۱۳۱،۱۹۷۲

﴿۱﴾ وفی منهاج السنن: وروی عن عثمان وعائشة الاتمام کما فی حدیث متفق علیه ......وقیل ان عثمان رضی الله عنه نوی الاقامة وقیل انه تاهل بمکة وقیل انه اتخذا الاموال بالطائف.

...نهاج السنن شرح جامع السنن ص ۷۹ جلد ۳ ابواب السفر باب التقصیر فی السفر)

﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۸۰ جلد ۱ مطلب فی وطن الاصلی والاقامة)



**الجواب**: ته به په مردان کښې د تاهل او تزوج په وجه اتمام کوې ﴿١﴾ او په لنډی کوتل کښې (او تللو راتللو دوران کښې) به قصر کوې. ځکه چه دا ځائې (لنډی کوتل) نه ستا وطن اصلی دې او نه وطن اقامتی. نه تا دلته په یو ځائې د پنځلسو ورځو د قیام نیت کړې او نه دې دلته واده کړې. ﴿٢﴾

## د تجارت سامان د پاره ئې کور په کرایه واخستلو او ځې په بانډو کښې ئې خرڅوی لیکن اقامت نیت ئې نه دې نو قصر به کوی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه یو سړې د خپل وطن اصلی نه لرې چرته سامان کپړې وغیره د خرڅولو د پاره راوړی او دلته ئې چرته په یو کمره کښې خپل سامان کیخودۀ، او د سامان ایخودلو په وخت ئې هم په دې نیت سره کمره واخستله چه لس ۱۰ پنځلس ۱۵ میله لرې ګیر چاپیره بانډو کښې به دا سامان خرڅوم بیا به واپس راځم. کله کله دوه درې ورځې بهر وی او د اقامت نیت ئې نه دې کړې په دې کښې میاشت یا ډیرې ورځې تیریږی نو قصر به کوی که اتمام به کوي؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد المنان متعلم جامعه حقانیه اکوړه خټک

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله او تأهله) ای تزوجه قال فی شرح المنیة ولو تزوج المسافر ببلد ولم ینو الاقامة به فقیل لا یصیر مقیما وقیل یصیر مقیما وهو الاوجه ولو کان له اهل ببلدتین فایتهما دخلها صار مقیما فان ماتت زوجته فی احداهما وبقی له فیها دور وعقار قیل لایبقی وطناً له اذالمعتبر الاهل دون الدار کما لوتأهل ببلدة واستقرت سکنا له ولیس له فیها دار وقیل تبقی.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۸۶ جلد ۱ مطلب فی الوطن الاصلی والاقامة)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ولایزال علی حکم السفر حتی ینوی الاقامة فی بلدة او قریة خمسة عشر یوما او اکثر کذافی الهدایه.

(فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۳۹ جلد ۱ الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)

**الجواب:** دا سړي به قصر کوي. لعدم عزمه على اقامة خمسة عشريوماً ﴿۱﴾ وهو الموفق

## په باندو کښې د اقامت نيت صحيح دې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې په باندو کښې د اقامت نيت صحيح دې يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: حاکم ګل مدرسه مفتاح العلوم ضلع هنګو

**الجواب:** که دا باندہ صحرا نه وی بلکه د کټو ختو ابادې پکښې موجود وی نو په دې کښې د اقامت نيت صحيح دې ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د پنځلسو ورځو نه کم اقامت کولو واله به قصر کوي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه څه په به ديواليه ضلع بهکر کښې د (سيکر ټری بلديه) په طور مقرريم او ځما کور په سرګودها کښې دې چه کله څه کور ته راشم نو ځما يقينی اراده دلته داوسيدلو نه وی يعنی د ورځو تعين نه وی چه څومره ورځې پس به راځم بعضې وختونو کښې د پنځلسو ورځو نه مخکښې او کله د پنځلسو ورځو نه پس کور ته ځم. ديواليه علاقه ځما د کور نه ۱۲۰ ميله لرې ده. بيا دلته ديواليه نه په هره دريمه او څلورمه د بهکر نه کلور کوټ ته تلل وی د دوارو ځايونه د ديواليه نه تقريباً ديرش يا پنځه ديرش ميله فاصلې باندې دې. اوس دا اوښايئ چه څه به

﴿۱﴾ قال العلامة ابن الهمام: ولايزال على حكم السفر حتى ينوى الاقامة فى بلدة او قرية خمسة عشر يوما او اكثر وان نوى اقل من ذلک قصر.
(فتح القدير ص ۹ جلد۲ باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجيم رحمه الله: والخلاصة ثم نية الاقامة لا تصح الا فى موضع الاقامة ممن يتمكن من الاقامة وموضع الاقامة العمران والبيوت المتخذة من الحجر والمدر والخشب لا الخيام والاخبية والوبر. (البحر الرائق ص ۱۳۱ جلد۲ باب المسافر)



په ديواليه کښې پوره مونځ کوم يا قصر به کوم چه ځما place of Resting دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: چوهدری مولا بخش ټاؤن کميټی ديواليه ضلع بهکر ۱۱۱۲۱۱۹۸۲

**الجواب:** که ديواليه ته راتلو وخت کښې ستا اراده د پنځلسو ورځو د اوسيدلو نه وی بلکه د کمو ورځو وی او يا څه خاص اراده نه وی نو ته به په ديواليه کښې پوره مونځ نه کوې. ﴿۱﴾

**نوټ:** که ددې ملازمت په ځائې کښې ټول ضروری سامان تا سره وی نو بيو ځل د مقيم کيدلو نه پس به په دغه ځائې کښې د تبادلې پورې ته اتمام کوې ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د اهل وعيال وطن اقامت ته چه متاهل کله کله راځی نو قصر به کوی

**سوال:** ان رجلا رحل مع اهله الى وطن فاقام اهله فيه لشهر او شهرين ولم ينو الرجل الاقامة فسافر الى وطن آخر ثم رجع الى اهله لمدة يوم او يومين ايقصر الصلاة ام لا؟ بينواتوجروا جزاكم الله خير الجزاء

المستفتی: فضل عمر افغانستان .....۱۴/ اگست ۱۹۸۳ء

**جواب** هذا الرجل يقصر فى هذه القرية لانها ليست وطنا اصليا له ولاتأهل فيها، لان اهله لم يتخذوها وطنا لايريدون الرحلة عنها، ولا اقام فيها مدة الاقامة ﴿۳﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة المرغيناني: ولا يزال على حكم السفر حتى ينوى الاقامة فى بلدة او قرية خمسة عشر يوما او اكثر وان نوى اقل من ذلک قصر.
(هداية على صدرفتح القدير ص۹ جلد۲ باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجيم رحمه الله: کوطن الاقامة يبقى ببقاء الثقل وان اقام بموضع آخر.
(البحر الرائق ص ۱۳۶ جلد۲ باب صلاة المسافر)

﴿۳﴾ قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالى: ولاتصح...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## د بحری جهاز د ملازمینو قصر او اتمام

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ د بحری جهاز ملازمین په جهاز کښې اوسیږو بعضې کسان پوره مونځ کوی او وائې چه جهاز څمونږ د پاره د کورحکم لری.او بعضې کسان قصرکوی.د مسئلې پوره وضاحت راولیږئ او څمونږ د وهم ازاله اوکړئ. بینوا توجروا

المستفتی:شیرا میر خان.........۱۳رجب ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که تاسو په یو بندرګاه باندې د پنځلس ورځو د قیام نیت نه وی کړې نو ته به قصر کوې او که نیت دې نه وی کړې او پوره کال هم تیر شی نو ته به قصر کوې.(ماخوذ ازشرح التنویر) ﴿۱﴾ وهوالموفق

---

**(بقیه حاشیه) نیة الاقامة ببلدتین لم یعین المبیت باحدیهما لان الاقامة لا یکون فی مکانین اذلو جازت فیها لجازت فی اما کن فیؤدی الی عدم تحقق السفر، واذا عین المبیت باحدی البلدتین کان مقیماً لان اقامة المرء تضاف الی مبیته.**

**(امداد الفتاح شرح نورالایضاح ص ۴۶۹ مطلب فیما یشترط لصحة نیة السفر)**

**﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: او دخل بلدة ولم ینوها ای مدة الاقامة بل ترقب السفر غدا او بعده ولوبقی علی ذلک سنین الا ان یعلم تأخر القافلة نصف شهر کما مر وکذا یصلی رکعتین. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۸۲ جلد ۱ مطلب فی سجدة الشکر باب صلاة المسافر)**

خوپه پورتې باندې به داقامت نیت هله صحیح وی چه په بندرګاه کښې څه آباد کورونه موجود وی،په هندیه کښې دی ولا یزال علی حکم السفر حتی ینوی الاقامة فی بلدة او قریة خمسة عشر او اکثر (ص۱۳۹ جلد۱) اوکوم جهاز وغیره چه په سمندرکښې وی په هغې کښې هم داقامت نیت معتبر نه دې:

**قال ابن النجیم: وقید بالبلد والقریة لان نیة الاقامة لا تصح فی غیرهما فلا تصح فی مفازة ولا جزیرة ولا بحر ولا سفینة الخ (البحر الرائق ۲ : ۱۳۱ صلاة المسافر) وهکذا فی الهندیة ۱ : ۱۳۹ الباب الخامس عشر)...... (از مرتب)**



## د سرکاری مدرسو او مدارس عربیه د ملازمینو خپل نیت معتبر دې د متبوع نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه سرکاری ملازمین چه د هغوی تقرری د سرکار د قانون مطابق په یو ښار کښې د درې کالو دپاره په یوښارکښې کیږی.په دغه موده کښې به ملازمین د سفر او قصرپه معامله کښې دخپل نیت پابند وی اوکه د سرکار د مزدور کیدلو په وجه به ددوی خپل نیت معتبر نه وی. او مقیم به وی څلور رکعته به ادا کوی. دغه شان د مدارس عربیه مدرسین که د تعلیم په دوران کښې دسفر مطابق مدرسوته راشی او د پنځلسو ورځو پورې د پاتې کیدلو اراده ئې نه وی نو آیا دې به د مقیم مهتمم تابع وی او بغیر د نیت اقامت نه به پوره مونځ کوی او که نه د خپل نیت په اعتبار سره به قصر کوی.؟ بینوا توجروا

المستفتی: عطاءالله غفرله مدرس دارالعلوم نعمانیه ډی آئی خان ۱۸رمضان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دسرکاری مدارسود ملازمینواود اسلامی مدرسو د مدرسینو خپل نیت معتبر دې ځکه چه د ډیوټئ دوخت نه علاوه په نورو وختونوکښې حسب العرف اوحسب الاصول داخلق هرځائې کښې اوسیدلې شی کور ته هم راتللې شی څنګه چه ددوی متبوعینو ته هم دا اختیار حاصل دې.﴿۱﴾ وهوالموفق

## دافسربالا یا امیرپه حکم باندې د سفرپه اندازې نیت کولو والابه قصر کوي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د فوج امیر په هیډ کواټر کښې مقیم دې چه د هغه ما تحت څلور ونګونه وی او د هر ونګ جدا جدا میجر وی لیکن د ټولې کاروایئ دارومدار په کرنل باندې وی حال دا چه کرنل مقیم وی او دا کرنل خپل ماتحت دکشتو د پاره لیږئ. کله ۴۵ میله

---

**﴿۱﴾ قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالی: وتعتبر نیة الاقامة والسفر من الاصل کالزوج والمولیٰ والامیر دون التبع کالمرأة والعبد والجندی ان علم التبع بنیة المتبوع فی الاصح فلایلزمه الاتمام بنیة الاصل الاقامة حتی یعلم کمافی توجه الخطاب الشرعی الخ.**

**(امداد الفتاح شرح نورالایضاح ص ۴۶۸ جلد ۱ مطلب فی مایشترط لصحة نیة السفر)**

کله ۲۰ میله او کله سل میله. اوس بعضې مشران وائي چه دا فوجیان چه کله د سرکاری کار د پاره ځی نو اتمام به کوی ځکه چه ددوی امیر مقیم وی او حواله دا ورکوی.

**وکل من کان تبعاً لغیره یلزمه طاعته یصیر مقیما باقامته ومسافرا بنیته وخروجه الی السفر (هندیة ص ۱۴۱ جلد ۱)**

دمسئلې وضاحت اوکړئ د شکریه موقعه راکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی قادر بخش خطیب مسجد دالبندین چاغی بلوچستان ۵ رمضان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په صحرا کښې د اقامت نیت صحیح نه دې البته که په دې صحرا کښې د راتلونکو امیر صاحب په آبادئ کښې مقیم وی نو په دې صحرا کښې راتلونکې به مقیم شمارلې کیږی لکه چه په استفتاء کښې حواله ذکر ده. لیکن که ده دغه صحرا والا دامیر په حکم باندې د پنځوس میله تللو نیت اوکړی نو دا خلق بغیر شک شبهې نه مسافر دی ﴿۱﴾ فقهاؤ دا نه دی لیکلې چه امیر مقیم وی نو مامورین به هم خامخا مقیم وی.

## وطن اقامت چه ئې ځوپورې پریخودې نه وی هغې کښې به اتمام کوی

**سوال:** محترم ومکرم استاد حضرت مفتی صاحب. د امت برکاتکم، مونږ دلته ابوظهبې کښې اوسیږو. چرته چه زمونږ ځائې دې هلته نه مونږ اکثر سفر کوو. بیا په هغه ورځ یا دوه درې ورځې د اقامت ځائې ته واپس راتللو باندې به داخلق قصرکوی که اتمام؟ که په عربئ کښې جواب راکړې نو ډیره مهربانی به وي؟ بینوا توجروا

المستفتی: ستاسو شاګرد سالم جان حقانی موسسه ابن نصیب ابوظهبی ۱۹۸۳

---

**﴿۱﴾ قال العلامة شرنبلالی: اقل مدة سفر تتغیر به الاحکام...... مسیرة ثلاثة ایام بسیره ثلاثة ایام من اقصر ایام السنة کمافی الجوهرة والبرهان واشرنا بتقدیره بالایام الی انه لا یقدر بالفراسخ وهو الاصح لقوله ﷺ یمسح المقیم یوماً ولیلة والمسافر ثلاثة ایام ولیالیها الخ. (امداد الفتاح شرح نورالایضاح ص ۴۶۴ جلد ۱ باب صلاة المسافر)**



**جواب:** من خرج من وطن الاقامة مسافراً غیر معرض عن التوطن به فهو یصلی اربعا اذا رجع الیه وبقاء ثقله دلیل ظاهر علی عدم اعراضه عن التوطن به وهذالم اجده صریحاً لاکنه مأخوذ من کلام البدائع والبحر، قال صاحب البدائع ص ۱۰۴ جلد ۱ وینتقض بالسفر ایضاً لان توطنه فی هذا المقام لیس للقرار ولکن لحاجة فاذا سافر منه یستدل به علی قضاء حاجته فصار معرضا عن التوطن به فصار ناقضاً له دلالة انتهیٰ ﴿۱﴾ وفی البحر ص ۱۳۶ جلد ۲ کوطن الاقامة یبقی ببقاء الثقل وان اقام بموضع آخر، انتهیٰ ای لعدم قصد ترک الاول ﴿۲﴾. فافهم، وهوالموفق

## وطن ته ځنګل نه هره هفته تللو راتللو کښې دقصر او اتمام مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زه په عربستان کښې کار کوم په ښار کښې مې د اوسیدلو دپاره یو کور په کرایه اخستې دې او د ښار نه یو سل اویا ۱۷۰ کلومیتره لرې په ځنګل کښې شپږ ورځې کارکووم او د جمعې په ورځ ښار ته راځم د کرایه په کورکښې د ژوند ټول ضرویات شته او دغه شان په ځنګل کښې هم څمونږ سره ټول ضرویات موجود دی. په ځنګل کې د لرګو مکانات مونږ جوړ کړی دی. په دې کیمپ کښې څلویښت پنځوس کسان موجود وی. نه مونږ په ځنګل مستقل طور سره مقیم یو او نه په ښار کښې ددوبئ علماء وائی چه په ښار کښې به قصرکوئ او په ځنګل کښې اتمام کوئ بعضې وائی چه په لار کښې به قصرکوې. د مسئلې وضاحت اوکړئ. او مونږ ته ئې را اولیږئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی سیدولی شاه ملاخیل هنګو کوهاټ ۱۲ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** تاسو به په دغه ښار کښې اتمام کوئ په دې شرط که تاسو د اقامت په

---

**﴿۱﴾ (بدائع الصنائع ص ۲۸۰ جلد ۱ الکلام فی الاوطان کتاب الصلاة)**

**﴿۲﴾ (البحر الرائق ص ۱۳۶ جلد ۲ باب صلاة المسافر)**

پنځلس ورځې متواتر تيرې کړې وي. ﴿۱﴾ او دا پنځلس نيت دغه ښار کښې پنځلس ورځې متواتر تيرې کړې هم وي ددينه پس چه کله تاسو د کار ورځې مو په دغه ښار کښې تيرې کړې هم وي ددينه پس چه کله تاسو د کار دپاره ځنګل ته ځئ او شپې ورځې تيروئ نو ځنګل خو چونکه ستاسو محل اقامت نه دې نو تاسو به په ځنګل کښې قصر کوئ البته که ستاسو مستاجر په يو ښار کښې مقيم وي نو تاسو به هم مقيم شمارلې کيږئ (کمافی الهندية ص ۱۴۱ جلد۱) ﴿۲﴾ او چه کله تاسو د جمعې په ورځ ښار ته واپس راشئ نو اتمام کوئ دا ستاسو وطن اقامت دې، ددې ښار او سيدل تاسو پريخې نه دی ېدل عليه ماف البحر ص ۱۳۲ جلد۱ ﴿۳﴾ خصوصاً چه کله مستاجر مقيم وي وهو الموفق

## د مهاجرين افغانستان د اقامت نيت

**سوال:** چه مے فرمايند علماء دين درين مسئله که از افغانستان مهاجرين بسيار امده است (۱) بعض در آں در کمپ ہائے حکومت مسکن گرفته است وحکومت بايشان گندم وغيره ميدهد (۲) وبعضے در قريها مقيم است وگندم وروپيه از حکومت ميخواند (۳) وبعضے در آن در قريها مقيم است گزاره خود بخود ميکند از حکومت چيزے نه خواهد بعض از علماء مهاجر از قسم دوم وثالث در قريها مايان امامت گرفته هست نماز قصر نميکند بعض ازاں علماء بران

﴿۱﴾ وفي الهندية: ولا يزال حكم السفر حتى ينوى الاقامة فى بلدة او قرية خمسة عشر يوما او اكثر كذا فى الهداية.

(عالمگيريه ص ۱۳۹ جلد ۱ الباب الخامس عشر فى صلاة المسافر)

﴿۲﴾ وفى الهندية: وكل من كان تبعا لغيره يلزمه طاعته يصير مقيما باقامته ومسافراً بنيته وخروجه الى السفر كذافى محيط السرخسي.

(فتاوىٰ عالمگيرية ص ۱۴۱ جلد ۱ الباب الخامس عشر فى صلاة المسافر)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجيم: لو جمعت كانت خمسة عشر يوما او اكثر الا اذا نوى ان يقيم بالليل فى احدهما فيصير مقيما بدخوله فيه لان اقامة المرء تضاف الى مبيته يقال فلان يسكن فى حارة كذا وان كان بالنهار فى الاسواق ثم بالخروج الى الموضع الآخر يصير مسافرا. (البحر الرائق ص ۱۳۲ جلد ۲ باب صلاة المسافر)



فتویٰ داده است که اقتداء بجنس اامامان دروقت ظهر وعصر وعشاء صحیح نیست ازشما مبارک عرض میدارم که حکم اقسام ثلاثه یک باشد یانه، اگرنه باشد حکم ہر قسم جدا جدا ارسال بکن؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالرؤف کچلاك سرکلر روډ کوئټه

**جواب:** واضح باد که ابن عابدین شامی رحمه الله وغیره درباب المسافر تصریح کرده اند که صحرا مقام اقامت نیست ﴿۱﴾ یعنی نیت اقامت درصحرا درست نیست الا اذا كان امير الجند مقيما فى المصر فيصير الجندى مقيما بتبع الامير كما فى الهندية ﴿۲﴾ پس این مهاجرین (ماسوائے مقیم درصحرا وخیمها) تمام اتمام خواهند کردند زیراچه بعد از امادگی مخالفین برائے مذاکرات چند ماه بر مذاکرات صرف خواهند شد۔ وهو الموفق

## که افغان مجاهدينوپه آبادئ کښې د اقامت نيت نه وی کړې نوقصربه کوي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه ځمونږ مجاهدين په دو قسمه دی. يو هغه چه داخلی وی يعنی په ښار کښې وی ليکن فی الحال په کيمپ کښې اوسيږی. او دويم هغه چه د بهرنه راځی يعنی چه د هغوی ښار سره واسطه نه وی نو هغوی به د سفر مونځ کوی يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالمجيد افغان مهاجر پشاور... ۹ ربيع الثانی ۱۴۰۲ھ.

**الجواب:** کومو مجاهدينوچه په آبادئ کښې داقامت نيت نه وی کړې نو هغوی

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله: والحاصل ان شروط الاتمام ستة النية والمدة واستقلال الرأى وترک السير واتحاد الموضع وصلاحيته قهستانى (قوله وصلاحيته) اى صلاحية الموضع للاقامة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۸۳ جلد ۱ مطلب فى سجدة الشكر باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ وفى الهندية فيصير الجندى مقيما فى الفيافى بنيه اقامة الامير فى المصر كذا فى الكافى. (فتاوىٰ عالمگيرية ص ۱۴۱ جلد ۱ الباب الخامس عشر فى صلاة المسافر)

به قصر کوی برابرخبره ده چه داخلی وی او که خارجی وی. (شامیه، هندیه) ﴿۱﴾

## د بهشتی زیور د یو عبارت وضاحت

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې د کور نه دریو منزلونو تللو په ارادې سره اوزی د کورنه وتلو وخت کښې ئې نیت دادې چه په منزلِ مقصود کښې به پنځلس ورځې یا څه زیاتې تیروم اوس چه دا سړې په لاره کښې کوم مونځ ادا کوی نو قصر به کوی که اتمام؟ په بهشتی زیور کښې لیکلی شوی دی. (بهشتي زیور دویمه حصه صفحه ۳۵ مسئله نمبر ۱۰ یو زنانه درې منزله تللو اردې سره د کور نه اووتله او د کور نه ئې دا نیت هم دې چه فلانکی کلی کښې به پنځلس ورځې ایساریږم. نو مسافره نه شوه. په ټوله لاره کښې به پوره مونځ کوی. بیا که کلی ته اورسیده او پوره پنځلس ورځې ایساره نه شوه نو بیا به هم مسافره نه جوړیږی. حالانکه په جوهرة النیره ص ۸۲ جلد ۱ کښې دی.

ومن خرج مسافر اصلی رکعتین اذا فارق بیوت المصر ولا یزال علی حکم المسافر حتی ینوی الاقامة فی بلدة خمسة عشر یوم فصاعداً فیلزمه الاتمام فان نوی الاقامة اقل من ذلک لم یتم انتهیٰ

دا عبارت د قدوری دې پس د مسئلې وضاحت اوکړئ ډیره مهربانی به وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: شیر محمد خان محسود جنوبی وزیرستان

**الجواب:** محترم المقام په دې عبارت کښې هیڅ اشکال نشته. او د بهشتي زیور په مسئله کښې ددې کلي نه مراد یو درمیانی (پنځمې) کلي دې. چه د تللو د ځائې نه درې منزله کم مقدار باندې واقع وی. (کما لا یخفی فافهم. وهو الموفق

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولایزال علی حکم السفر حتی ینوی الاقامة فی بلدة او قریة خمسة عشر یوما او اکثر کذافی الهدایة.

(فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۳۹ جلد ۱ الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)



# فصل فی قصر الصلوٰة

## د یو مسافر مقیم امام پسې د نیت کولو مسئله

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مسافر به د مقیم امام پسې د سفرانه دوه رکعتونو نیت کوی که د څلورو رکعتونو؟ بینوا توجروا

المستفتی: زاهد حسین نور کلاتهه هاؤس بټ خیله

**الجواب:** په دې مسئله کښې توسع ده. بر جندی صرف د فرضو نیت کول لیکلې دي، او په جامع الرموز کښې دی چه دوه رکعتو نیت به کوی. ﴿۱﴾ او د تحقیق په رڼرا کښې د څلورو رکعتو نیت کول راجح دی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## که مسافر مقتدی په مسافر امام باندې د مقیم خیال اوکړو او د څلورو رکعتو نیت ئې اوکړو نو اوس به څه کوی

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) مسافرسړې دا

﴿۱﴾ علامه عبدالحیٔ لکهنوی رحمه الله فرمائی بهتره داده چه د تعین نه بغیر دې صرف د فرضو نیت اوکړی لکه چه په برجندی کښې دی او که نیت کوی نود دوه رکعتو نیت دې اوکړی په جامع الرموزکښې دی: لو اراد نیة العدد نوی رکعتین، او که د رکعاتو د تعداد نیت کول غواړی نود دوه رکعتونیت دې اوکړی. مجموعة الفتاوی ص۳۱۴ جلد۱ رقم: ۱۴۰ کتاب الصلوٰة)

﴿۲﴾ حضرت شیخ مفتی اعظم محمد فرید دامت برکاتهم په یو مجلس کښې اوفرمائیل چه څلور رکعته نیت کول راجح دی. زمونږه شیخ امین الله فی الارض محدث کبیر مولانا نصیرالدین الغرغشتوی النقشبندی المجددی (المتوفی ۱۳۸۸هـ) به فرمائیل چه څلور رکعته نیت دې اوکړی.

لان نیة الامامة قبل التکبیر التحریمة صحیحة لانه بشرف ان یکون اماما فنیة الاربعة ایضا صحیحة لانه بشرف ان تکون صلاته اربعاً. (ازملفوظات حضرت مفتی اعظم شیخ الحدیث دامت برکاتهم ـ ازمرتب)

خیال اوکړو چه امام مقیم دې او د څلور رکعتو نیت ئې اوکړو اوس د مقتدی مونځ اوشو یا نه؟ او څلور رکعتو نه به پوره کوی که دوه.(۲) اوکه د امام پته نه وی چه مقیم دې که مسافر نو د مقتدی نیت به څنګه وي؟ بینوا توجروا

المستفتی: زاهد حسین نور کلاتهٔ هاؤس بټ خیله ملاکنډ ایجنسی ۱۳/۹/۱۹۸۹ع

**الجواب**: (۱) چه کله د امام حالت د غائب کیدلو نه مخکښې معلوم شی نو د مقتدی مونځ به صحیح وی او په دوه رکعتو به اکتفا کول ضروری وی. ﴿۱﴾ (۲) د وخت د فرضو مطلق نیت به ضروری وی خو بیا هم د رکعتونو په ذکر کولو کښې به کمې زیاتې نقصان والا نه وی. ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د مسافر مقتدی مقیم امام پسې د رکعتونو د نیت مسئله

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه امام مقیم دې او مقتدی مسافر دی نو دا مسافر مقتدی به د مقیم امام پسې کوم نیت کوی ددوی رکعتو نیت به کوی یا د څلورو رکعتو. ځکه چه د مسافر دپاره دوه رکعتو نه کول دی او د امام دپاره څلور رکعتونه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سبزعلی سپاهی باجوړ ایجنسی..... ۲۱\۱ اکتوبر ۱۹۷۵

**الجواب**: ټولو فقهاؤ لیکلي دی چه د مونځ د صحیح والی د پاره د رکعتونو

---

**﴿۱﴾ قال العلائی: وندب للامام هذا یخالف الخانیة وغیرها ان العلم بحال الامام شرط لکن فی حاشیة الهدایه للهندی الشرط العلم بحاله فی الجملة لا فی حال الابتداء وفی شرح الارشاد ینبغی ان یخبرهم قبل شروعه والا فبعد سلامه.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۸۴ جلد ۱ باب صلاة المسافر)**

**﴿۲﴾ قال الحصکفی: دون تعین عدد رکعاته لحصولها ضمنا فلا یضر الخطا فی عددها وینوی المقتدی المتابعة لم یقل ایضا لانه نوی الاقتداء بالامام اوالشروع فی صلاة الامام ولم یعین الصلاة صح فی الاصح وان لم یعلم بها لجعله نفسه تبعاً لصلاة الامام. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۳۰۹ جلد ۱ بحث النیة باب شروط الصلاة)**



تعداد ذکر کول ضروری نه دی. ﴿۱﴾ لهذا که دا مسافر څه تعداد ذکر نه کړی نو دیکښې هیڅ خبره نشته. او که دا مسافر تعین کول غواړی نو بعضې فقهاؤ د دوه عدد ته راجح وئیلې ﴿۲﴾ او بعضې اکابرینو د څلورو عدد ته راجح وئیلې دی.

**وهو الاوجه لان المقتدی جازله نیة الاقتداء قبل تحریمة الامام لکونه اماماً فیمایؤل الیه فکذا نیة الاربع لان صلاته تصیر اربعا فیما یؤل الیه امرا لله ﴿۳﴾ فافهم. وهوالموفق**

## شرعی مسافر د قصر په نه کولو سره ګنهګاریږی

**سوال**: علمائې دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې په شرعی سفر کښې دې او قصر نه کوی بلکه څلور واړه رکعتونه اوکړی نو دهغه څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محبت خان ایران بندر جمهوریه ایران... ۲۲\۲\۱۴۰۱ه

**جواب**: ګنهګاردې ځکه چه شرعی مسافر باندې په ظهر، عصر او عشاء کښې قصر واجب دې او دوه رکعتونه به ادا کوي، البته که د دوه، رکعتو د قصر نه پس دریم او څلورم رکعت اوکړی نو اعاده پرې فرض نه ده بلکه واجب ده. (شامي) ﴿٤﴾ وهوالموفق

---

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: لان نیة عدد الرکعات لیست بشرط فی الفرض والواجب لان قصد التعین مغن عنه ولو نوی الظهر ثلاثا والفجر اربعاً جاز. (البحر الرائق ص ۲۸۲ جلد ۱ باب شروط الصلوة)(ومثله فی الدرالمختار علی صدر ردالمحتار ص ۳۱۸ جلد ۱ باب شروط الصلاة)**

﴿۲﴾ علامه عبدالحی لکهنوی فرمائی بهتره داده چه بغیر د تعین د رکعتونو نه صرف د فرض نیت اوکړی لکه چه په برجندی کښې دی. او که نیت کوی نو د دوه رکعتونو نیت دې اوکړی. په جامع الرموز کښې دی. (لواراد نیة العدد نوٰی رکعتین)

**(مجموعة الفتاویٰ ص ۳۱۴ جلد ۱ کتاب الصلوة رقم مسئله: ۱۳۹)**

**﴿۳﴾ (من افاضات الشیخ زینة المحدثین مولانا نصیر الدین الغرغشتوی رحمه الله)**

**﴿۴﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: فلو اتم مسافر ان قعد فی القعدة الاولی تم فرضه ولکنه اساء لو عامد التاخیر السلام وترک واجب القصر.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۸۳ جلد ۱ مطلب فی سجدة الشکر باب صلاة المسافر)**

**په سفر کښې جمع بین الصلاتین صورةً جائز دی.**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې خلق وائی چه د سفر په حالت کښې جمع بین الصلاتین یعنی د مغرب او عشاء مونځونه په یو وخت کښې کول جائز دی آیا دا صحیح دی؟ بینوا توجروا

المستفتی:نا معلوم..........

**الجواب:** د دوه مونځونو په یو وخت کښې ادا کول که صورةً وی (یعنی چه یو روستو کړې په آخر وخت کښې اوبل په اولنی وخت کښې کول) نو د ضرورت په وخت کښې جائز دی. د عرفات او مزدلفه نه علاوه د احنافو په نزد جمع بین الصلاتین حقیقتاً جائز نه دی.

**مسافر چه د مقیم امام د مونځ په آخره**

**کښې شامل شی نو پوره مونځ به کوی**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو مسافر په مقیم امام

﴿۱﴾ قال العلامة حصکفی رحمه الله: ولاجمع بین فرضین فی وقت بعذر سفر ومطر خلافا للشافعی وما رواه محمول علی الجمع فعلا لا وقتا فان جمع فسد لو قدم الفرض علی وقته وحرم لو عکس ای اخره عنه وان صح بطریق القضاء الا لحاج بعرفة ومزدلفة. قال ابن عابدین رحمه الله:(قوله محمول) ای مارواه ممایدل علی التأخیر محمول، علی الجمع فعلا لا وقتا ای فعل الاولیٰ فی آخر وقتها والثانیة فی اول وقتها ویحمل تصریح الراوی بخروج وقت الاولیٰ علی التجوز کقوله تعالیٰ فاذ بلغن اجلهن ای قاربن بلوغ الاجل او علی انه ذلک ویدل علی هذا التأویل ما صح عن ابن عمر انه نزل فی آخر الشفق فصلی المغرب ثم اقام العشاء وقد تواری الشفق ثم قال ان رسول الله ﷺ کان اذا عجل به السیر صنع هکذا وفی روایة ثم انتظر حتی غاب الشفق وصلی العشاء.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۲۸۱ جلد ۱ قبیل باب الاذان کتاب الصلاة)



پسې اقتداء اوکړه او د اهله چه امام آخری قعده کښې وو. نو آیا د مونځ په آخره کښې هم د اقتداء په صورت کښې به دامسافر مقتدی اتمام کوي؟

بینوا توجروا المستفتی: نامعلوم.....

**الجواب:** دا مسافر مقتدی چه کله د مقیم امام اقتداء اوکړی نو د اتباع امام په وجه باندې به پوره مونځ کوی. اګر که بالکل په آخره کښې شامل شوې وی.

**کمافی ردالمحتار فیدخل فیه مالو اقتدیٰ به فی القعدة الاخیرة ﴿۱﴾. وهوالموفق**

**په سفر کښې د سنن رواتب په ادا کولو**

**او نه کولو کښې د فقهاؤ راجح قول**

**سوال:** علمائې کرام و مفتیان عظام په دې مسئلې باره کښې څه فرمائی! چه په اعلاء السنن کښې د سفر په حالت کښې درسول الله ﷺ نه د سنتو د اداکولو ثبوت وارد دې. او یو عالم دین اووئیل چه پیغمبر علیه السلام نه د فجر د سنتو اداکول هم د سفر په حالت کښې ثابت نه دی. دا تر کومې پورې صحیح ده. (۲) د صفر په حالت قرار او فرار کښې په کوم کوم حالت کښې د کولواو نه کولو افضلیت دې. بعضې علماء په حالت سفر کښې د سنتو د پریخو دلو په افضلیت کښې د کبیری حواله ورکوی کوم قول راجح دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: بدر منیر مهتمم دارالعلوم مدنیه امانده بټ خیله ملاکنډ ایجنسی..۱۹۸۹ء/۲۱/۱۲/۱۶

**الجواب:** محترم المقام مولانا بدرمنیر صاحب (زادالله معالیکم السلام علیکم اما بعد! جوابات په ترتیب د سوالونو سره اوګورئ.

(الف) په (ابو داؤدشریف ص ۶۳ جلد ۱ باب من نام عن صلوٰة اونسیها) کښې مروی دی (قال رسول الله ﷺ من کان منکم یرکع رکعتی الفجر فلیرکعهما

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: فیدخل فیه ما لو اقتدیٰ به فی القعدة الاخیرة انه لا یصح لان تحریمته اشتملت علی نفلیة القعدة الاولیٰ والقراءة بخلاف الامام وهذا معنی قول السراج لانه تحریمة المأموم اشتملت علی الفرض لاغیر. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۸۵ جلد ۱ قبیل مطلب فی الوطن الاصلی ووطن الاقامة باب صلاة المسافر)

فقام من کان یرکعهما ومن لم یکن یرکعهما فرکعهما ﴿۱﴾.
دغه شان د ترمذی شریف په ابواب السفر کښې د ابن عمر رضی الله عنه د
سنت بعد الظهر ادا کول موقوفاً او مرفوعاً مروی دی. ﴿۲﴾ د فقهائې کرامو.
نه په سفر کښې چه روان مسافر د مونځ دپاره اودرېږي نو سنت دې پرېږدي.
او چه کله د هغې لسو ورځو د پاره چرته ایسار شي نو سنت دې ادا کوي.
وهو مختار الامام الحلی فلیراجع الی ردالمحتار ص ۵۵۵ جلد ۱ باب المسافر ﴿۳﴾ وهو الموفق

**په سفر کښې د سنتو د پرېښودلو او نه پرېښودلو مسئله**

**سوال:** چه مے فرمایند علماء کرام دریں مسئله که سنن موکده در حالت سفر شرعی کردن درست است یا نه؟ بینوا توجروا
المستفتی: حسن خان افغانی افغانستان......۱۹۸۸ء/۱/۷

**جواب:** برمسافر شرعی در سنت موکده خواندن توسع است البته راجح این ست که در وقت قرار و نزول

﴿۱﴾ (سنن ابی داؤد ص ۷۰ جلد ۱ باب من نام عن صلوٰة او نسیها)
﴿۲﴾ عن ابن عمر قال صلیت مع النبی ﷺ الظهر فی السفر رکعتین وبعدها رکعتین الخ.
عن ابن عمر قال صلیت مع النبی ﷺ فی الحضر والسفر فصلیت معه فی الحضر الظهر اربعاً وبعدها رکعتین وصلیت معه فی السفر الظهر رکعتین وبعدها رکعتین الخ.
(سنن ترمذی ص ۷۲ جلد ۱ ابواب صلاة السفر باب ماجاء فی کم تقصر الصلاة)
﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (هو المختار) وقیل الافضل الترک ترخیصا وقیل الفعل تقربا وقال الهندوانی الفعل حال النزول والترک حال السیر وقیل یصلی سنة الفجر خاصة وقیل سنة المغرب ایضا بحر قال فی شرح المنیة والاعدل ما قاله الهندوانی قلت والظاهر ان مافی المتن هو هذا وان المراد بالامن والقرار النزول وبالخوف والفرار السیر لکن قدمنا فی فصل القراءة انه عبر عن الفرار بالعجلة لانها فی السفر تکون غالباً من الخوف تأمل.
(ردالمحتار ص ۵۸۵ جلد ۱ مطلب فی الوطن الاصلی ووطن الاقامة)



ایں را خوانده در وقت سیر و فرار و خوف نه خواند، ردالمحتار ص ۵۵۵ جلد ۱ باب المسافر ﴿۱﴾. پس اگر سائر باشد و برائے نماز توقف کند سنن را ترک خواهد کرد، واگر برائے قرار نزول کرده باشد یعنی کم از مقدار اقامت ادا خواهد کرد۔ وهو الموفق

**د سفر د بعضې احکاماتو باره کښې تپوس**

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) فوجی د خپلې ارادې مالک نه وی بلکه تابع وی د اقامت نیت کولې شی یا نه؟ (۲) کوم فوج چه په هندستان علاقه کښې دې د هغې څه حکم دې؟ او چه کوم په پاکستانی علاقه کښې دې د هغې څه حکم دې؟ (۳) د بانډې یا کلی او ښار حکم او تعریف څه دې او د ځنګل میدانونو او غرونو څه حکم دې (۴) که یقینی طور سره د اقامت موده معلومه وی نو د اقامت نیت صحیح دې؟ (۵) د کومو افسرانو په وئیلو باندې د اقامت نیت صحیح دې؟ (۶) د سفر او حضر تعلق د سهولت سره دې یا نه؟ بعضې خلق وائی چه مونږ ته څه تکلیف دې هر څیز په آسانئ سره ملاوېږی؟ (۷) بانډو او ښارونو ته نزدې چه کوم فوج اوسېږی د هغې حکم د بانډې او ښار او سیدونکو پشان دې؟ (۸) په ماضی کښې چه کوم مجاهدین اسلام د جهاد دپاره په سفر روانېدل هغوی ترڅو پورې دوه رکعته کول په تاریخ کښې که د قصر د مونځ تفصیلی واقعه وی نو اولیکئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبد الصمد امام مسجد ۱۱۲۷
انفنټری ورکشاپ EME ډیو پاک آرمی ۱۹۷۲ء/۱۰/۲ ۷

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (هو المختار) وقیل الافضل الترک ترخیصا وقیل الفعل تقربا وقال الهندوانی الفعل حال النزول والترک حال السیر وقیل یصلی سنة الفجر خاصة وقیل سنة المغرب ایضا بحر قال فی شرح المنیة والاعدل ماقاله الهندوانی، قلت والظاهر ان مافی المتن هو هذا وان المراد بالامن والقرار النزول وبالخوف والفرار السیر. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۸۵ جلد ۱ مطلب فی الوطن الاصلی ووطن الاقامة باب صلاة المسافر)

سپاهی یا افسر د امام یا څوک کښې که تاسو وی دي واضحه (الف) **الجواب:**

هغه چاونړو نه راغلي دی چه د محاذ او کیمپ نه ۴۸ میله فاصله باندې دی نو هغوی به قصر کوی. او چه کوم کسان د نزدې چاونړو نه راغلي دی نو هغوی به اتمام کوی. ﴿۱﴾ په ډزبندئ سره دې حکم باندې هیڅ فرق نه پریوځی. لیکن په ځنګل یا ﴿۲﴾ (ب) په ښار او د ښار په فناء کښې جمعه کولې شی. بیابآن وغیره کښې د جمعې مونځ کول صحیح نه دې، ددې نه پس په ترتیب سره جوابونه دادی. (۱) نشی کولې. ﴿۳﴾ (۲) هیڅ فرق نشته دې کما مرفی الف (۳) په کوم ځائې کښې چه ډیرجماتونه محلې او بازارونه وی او د بانډو نه د ضروریاتو دپاره دلته خلق راځی نو دا ځائې ښار، او غټ کلې دې په دې کښې دجمعې مونځ صحیح دې ګنې نوصحیح نه دې. (۴) ﴿٤﴾ نیت او اراده معتبرده اندازه معتبره نه ده ﴿۵﴾. (۵) د پورته افسرانو حکم معتبر دې ﴿٦﴾. (٦) په شرعی احکاماتو کښې فطرت او مصلحتِ عامهُ باندې نظر وي، په

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: اقل مسافة تتغیر فیها الاحکام مسیرة ثلاثة ایام کذافی التبیین.
(فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۳۸ جلد ۱ الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ویشترط لصحتها سبعة اشیاء الاول المصر (او فناؤه). (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۹۰، ۵۹۱ جلد ۱ مطلب فی صحة الجمعة بمسجد المرجة والصالحیة فی دمشق باب الجمعة)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: والمعتبر نیة المتبوع لانه الاصل لاالتابع کامرأة وفاها مهرها المعجل وعبد غیر مکاتب وجندی اذا کان یرتزق من الامیر. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۸۷ جلد ۱ مطلب فی الوطن الاصلی ووطن الاقامة باب صلاة المسافر)

﴿۴﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: عن ابی حنیفة انه بلده کبیرة فیها سکک واسواق ولها رساتیق. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۹۰ جلد ۱ باب الجمعة)

﴿۵﴾ قال العلامة شرنبلالی: وقصر ان نوی اقل منه ای من نصف شهر لما قدمناه اولم ینو شیئًا وبقی علی ذلک سنین وهو ینوی انه غداً یخرج او بعده لما روی البیهقی باسناد صحیح ان ابن عمر قال ارتج علینا الثلج ونحن باذر بیجان ستة اشهر فی غزاة فکنا نصلی رکعتین.
(امداد الفتاح شرح نور الایضاح ص ۴۶۹ مطلب فیما یشترط لصحةنیة السفر)

﴿٦﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ولا بد من علم التابع (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



خصوصیت باندې نه وي ﴿۱﴾. (۷) هم دغه شان حکم ئې دې ﴿۲﴾ (۸) چه کله به د خپل ځائې او کلی نه بهر کیدل نو دوه رکعته به ئې کول. ﴿۳﴾ فقط

## په شرعی سفر کښې مسافر باندې قصر واجب او اتمام ممنوع دې او روژه نیول بهتر دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) په شرعی سفر کښې قصر دې که تکلیف او مشقت نه کیدلو په صورت کښې اتمام اوکړی نو آیا دابه جائز وی. (۲) که په شرعی سفر کښې مشقت نه وی په ریل ګاډي، جهاز وغیره کښې سفر وی نو روژه نیول اولٰی دی یا نه نیول؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد عبدالله خوشاب پنجاب.... ۱۲۰ رمضان ۱۴۰۸ھ

---

(بقیه حاشیه) بنیة المتبوع فلو نوی المتبوع الاقامة ولم یعلم التابع فهو مسافر حتی یعلم علی الاصح وفی الفیض وبه یفتیٰ کما فی المحیط وغیره.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۹۹ جلد ۱ مطلب فی الوطن الاصلی ووطن الاقامة باب صلاة المسافر)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: حتی لو اسرع فوصل فی یومین قصر.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۸۰ جلد ۱ باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ قال الشرنبلالی: ولایزال یقصر حتی یدخل مصره او ینوی اقامته نصف شهر ببلد او قریة. (امداد الفتاح شرح نورالایضاح ص ۴۶۸ باب صلاة المسافر)

﴿۳﴾ عن انس قال خرجنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم من المدینة الی مکة فکان یصلی رکعتین رکعتین حتی رجعنا الی المدینة قیل له اقمتم بمکة شیئًا قال اقمنا بها عشراً متفق علیه، وعن ابن عباس قال سافر النبی صلی الله علیه وسلم سفراً فاقام تسعة عشر یوماً یصلی رکعتین رکعتین قال ابن عباس فنحن نصلی فیما بیننا وبین مکة تسعة عشر رکعتین رکعتین فاذا اقمنا اکثر من ذلک صلینا اربعاً رواه البخاری.
(مشکواة المصابیح ص ۱۱۸ جلد ۱ باب صلاة المسافر)

**الجواب**: د مسافر د پاره قصر کول واجب دی او اتمام ممنوع دې. ﴿۱﴾ او د عدم مشقت په وخت کښې افطار جائز دې او روژه نیول بهتر دی. ﴿۲﴾
(بحرص ۲۸۲ و شامي) وهوالموفق

## د چا دوه وطنه کیدلو صورت کښې د قصر د مونځ مسئله

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید په دوه وطنونو کښې رهائش اختیار کړې دې. یو د یخنئ د رهائش د پاره او بل د ګرمئ د پاره اوس د ګرمئ والا وطن نه یخنئ والا وطن ته د څه ضرورت د پاره راغې نو آیا دې به مسافر وی یا نه؟ او قصر به کوی یا اتمام؟ بینوا توجروا
سائل: محمود الحسن کوټکی ډی آئی خان

**الجواب**: دا دواړه وطنو نه به پخپل حالت باندې وي، دسفرپه وجه به نه باطلیږي.
کمافی البحرص ۱۳۶ جلد۲ وکثیر من المسلمین المتوطنین فی البلاد ولهم دور وعقار فی القریٰ البعیدة منها یصیفون بها باهلهم ومتاعهم فلا بد من حفظها انهما وطنان له لا یبطل احدهما بالآخر﴿۳﴾ . وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة حصکفی: صلی الفرض الرباعی رکعتین وجوبا لقول ابن عباس ان الله فرض علی لسان نبیکم صلاة المقیم اربعا والمسافر رکعتین ، قال ابن عابدین( قوله وجوباً فیکره الاتمام عندناحتی روی عن ابی حنیفة انه قال من اتم الصلاة فقد اساء وخالف السنة.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۵۸۰ جلد۱ باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: (قوله وللمسافر وصومه احب ان لم یضره) ای جاز للمسافر الفطر لان السفر لا یعری عن المشقة فجعل نفسه عذرا بخلاف المرض لانه قد یخف بالصوم فشرط کونه مفضیا الی الحرج وانما کان الصوم افضل ان لم یضره لقوله تعالیٰ وان تصوموا خیرلکم ولان رمضان افضل الوقتین فکان فیه الاداء اولی ولا یرد علینا القصر فی الصلوٰت فانه واجب حتی یأثم بالاتمام. (بحرالرائق ص ۲۸۲ جلد۲ فصل فی العوارض)

﴿۳﴾ (البحر الرائق ص ۱۳۶ جلد۲ باب المسافر)



## د مسافر سړی د مونځ په حالت کښې د مقیم کیدو دپاره د نیت مسئله.

**سوال**: جناب مفتی دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک جناب عالي! که د لاندې عبارت پوره مطلب واضحه کړې نو ډیره مهربانی به وی.
(الف) که یو مسافر دمونځ په حالت کښې د اقامت نیت اوکړی برابر خبره ده چه په اول کښې وی یا په مینځ کښې یا په آخر کښې لیکن د سجده سهو یا سلام نه مخکښې وی نو هغه د پاره دغه مونځ پوره کول پکار دی قصر پکښې جائز نه دې. (بهشتی زیور)
(ب) آؤ که د مونځ وخت تیریدلو نه پس نیت اوکړی یا د لاحق کیدلو په حالت کښې نیت اوکړی نو دهغه د نیت اثر به په دې مونځ کښې نه ښکاره کیږی. او که دا مونځ د څلور رکعتو والا وی نو دده دپاره به پکښې قصر واجب وی.
**مثال. نمبر۱**: یو مسافر د ظهر مونځ شروع کړو د یو رکعت کولو نه پس ئې د اقامت نیت او کړو نو دا نیت به په دې مونځ کښې اثر نه کوی. او دا مونځ قصر سره کول پکار دی.
**مثال نمبر ۲**: یو مسافر د بل مسافر مقتدی شو او لاحق شو بیا ئې خپل پاتې شوې رکعتونه اوکړل او د اقامت نیت ئې اوکړو نو ددې نیت اثر به په دې مونځ باندې بالکل نه پریوځی. او که دا مونځ د څلورو رکعتونو والا وی نو دا به قصر سره کوی؟ بینوا توجروا
المستفتی: عبدالحمید شهر لوئې جنوبی وزیرستان.... ۳۰\ ۱جنوري ۱۹۷۵

**الجواب**: داعبارتونه بالکل واضح دی تاسو یو مقامی عالم ته رجوع اوکړئ. وهوالموفق

## مسافر به د مقیم په اقتداء کښې څلور رکعته کوی

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام ددین شرع متین په دې مسئلې باره کښې چه مسافر کله دمقیم امام اقتداء اوکړی نو څو رکعته به اداکوی؟ بینوا توجروا
المستفتی: محمد اسماعیل ملاکنډ ایجنسی

**جواب**: دامسافر به د مقیم په شان مونځ کوی(۱) داقتداء په وجه به دده مونځ د دوؤ په ځائې څلور رکعته وی.

**ونظیره نیة الاقتداء قبل التحریمه فافهم(۲). وهوالموفق**

## په هندوستان کښې د قید پاکستانی قیدیانو د مونځ مسئله

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ دلته په هندوستان کښې دقید کیدلو د ورځې قصر کوو چه دهغې فتوی مونږ ته د مکتبه دیوبند سهارنپور نه سید احمد صاحب راکړې وه. یو څو ورځې اوشوې چه د پاکستان نه یو مولانا صاحب په خط کښې د پوره مونځ کولو تلقین کړې چه په هغې کښې څه علمی یا عقلی دلیل نشته نو زمونږ په ذهنونو کښې شکونه پیدا شوی دی. او زمونږ پوزیشن دادې چه مونږ د تارونو په مینځ کښې اوسیږو چه په هغې باندې څلور واړو طرفونو ته د وسلې نه ډک فوجیان ولاړ دي، د ورځې مونږ په خپله احاطه کښې ګرزو راګرزو. چه تقریباً ۴۰۰ ګزه اوږده او ۱۵۰ ګزه پلنه احاطه ده لیکن د شپې په هر قسم حرکت باندې پابندی ده تر دې چه متیازې وغیره هم مونږ د پارک سره یو مخصوص ځائې کښې کوو. چه هغه صرف د شپې دپاره جوړ کړې شوې دي. ددینه علاوه د خوراک څښاک آزادی ده. د اوسیدلو دپاره خیمې دي، د لامبلو د پاره ښه مزیدار انتظام دي داټول خیزونه په مخه کښې ساتی او زر تر زره مو د خپلې رائې نه خبر کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحیم جنګی قیدی انډیا...اګست ۱۹۷۳

---

**(۱) قال العلامة الحصکفی رحمه الله: واما اقتداء المسافر بالمقیم فیصح فی الوقت ویتم. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۸۴ جلد ۱ باب صلاة المسافر)**

**(۲) قال العلامة محمد امین: قوله(نیة المؤتم) ای الاقتداء بالامام او الاقتداء به فی صلاته اوالشروع فیها او الدخول فیها بخلاف نیة صلاة الامام وشرط النیة ان تکون مقارنة للتحریمة او متقدمة علیها بشرط ان لا یفصل بینها وبین التحریمة فاصل اجنبی. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۰۷ جلد ۱ باب الامامة)**



**الجواب**: واضحه دې وی چه تاسو کښې کوم کسان چرته په آبادئ کښې په جیل کښې وی نو هغوی دې څلور رکعته ادا کوی.

**لانهم محبوسون لمدة زائدة علی الاسبوعین فی ارادة الهنود کما لا یخفیٰ علی من راجع الیٰ تاریخ المذاکرات(۱)**

او چه کوم کسان صحرائی کیمپونو کښې ګیر دی او دهغوی په هغه افسر چه د هندوستانی حکومت د طرفنه دصحرائی قیدیانو په نقل و تحویل باندې مقرر وی چرته په آبادئ کښې مقیم وی نو بیا به هم څلور رکعته کول ضروری وی. او که افسر ددوی سره په صحرا کښې اوسیږی او مسافروی نو په دې صورت کښې به دوه رکعته کول ضروری وی.

**ویدل علیه مافی الهندیة ص ۱۴۹ جلد ۱ فیصیر الجندی مقیما فی الفیافی بنیة اقامة الامیر فی المصر کذا فی الکافی(۲). وهوالموفق**

## د وطن اقامت نه د سفر شروع کولو په صورت کښې به قصر کوي

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یوې لارئې ډرائیور دې دا ډرائیور چه د کوم کلې نه لارئی چلوی. هغه د ډرائیور خپل کلی هم نه دې بلکه د دې لارئی دکلی او د ډرائیور د کلی په مینځ کښې د سفر هومره مزل دې، اوس دا ډرائیور کله کله کلی ته هم راځی نو دا ډرائیور به ددغې لارئ والا په ځائې کښې قصر کوی که اتمام؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالله مدرس مفتاح العلوم هنګو........۲۱۱۲۱۱۹۷۳

**الجواب**: واضحه دې وی چه دا مقام ددې ډرائیور دپاره وطن داقامت دې په دې شرط چه په دې کښې دهٔ داقامت په نیت پنځلس ورځې تیرې کړې وی نو لکه څنګه چه د وطنِ اصلی نه د سفرپه مقدار(اتهٔ څلویښت میله) نیت سره سرې

---

**(۱) قال العلامة شرنبلالی: ولا تصح نیة الاقامة لعسکرنا بدارالحرب...... ولا تصح نیة الاقامة لعسکرنا بدارنا فی حال محاصرة عسکرنا اهل البغی لان حالهم یخالف عزیمتهم للتردد بین القرار والفرار...... فافاد مفهومه انه اذا کانت المحاصرة بمصر صحت نیة الاقامة . انتهیٰ. (امداد الفتاح شرح نورالایضاح ص ۴۷۰ جلد ۱ قبیل مطلب فی اقتداء المسافر بالمقیم)**

**(۲) (فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۴۱ جلد ۱ الباب الخامس عشر فی صلاة المسافر)**

مسافر جوړیږي نو دغه شان به د وطن اقامت نه هم د دومره مقدار په نیت سره مسافر ګرځي.

ولايضر قطع المسافة فى اقل من ثلثه ايام فى الهنديه ص ۱۴۸ جلد ۱ ولو كانت المسافة بالسير المعتاد فسار اليها على الفرس جريا حثيثا فوصل فى يومين او اقل قصر كذا فى جوهرة النيره ﴿۱﴾. وهو الموفق

**په اباډئ کښې به مقیم قیدیان اتمام کوي.**

**سوال:** محترم مفتي! جامعه دار العلوم حقانیه اکوړه خټک پاکستان د سلام نه پس ستاسو حضراتو یوه فتوی مونږ ته ملاؤ شوه لیکن اختلاف پکښې راغلي ځکه چه تاسو پکښې د (یا) لفظ لګولي دی. منو په لاندینی حالاتو کښې اوسیږو. تاسو ددې مطابق فتوی ورکړئ، دخپلې رائې یا داخبارې خبرونو وغیره په بنا باندې فتوی مه ورکوئ یعنی ځما مطلب دادې چه شاید تاسو به سوچ اوکړئ چه پته نشته چه د هغوی به څه حال وي؟ نو حالت دادې چه مونږ د چاونئ سره یو ځائې اوسیږو. د رڼا انتظام موجود دې لکه ځنګه چه په اسلام آباد کښې دي یعني تر سحره پورې مونږ موجود دي لکه څګه چه په اسلام آباد کښې دي. یعنی تر سحره پورې مونږ په څپله بستره کښې قرآن پاک لوستلې شو. او د اوبو دومره انتظام موجود دې، چه یو سړې د پنځو مونځونو د پاره غسل کولې شي. بازار نه د کینټین په ذریعې سره د ژوند ضروریات د خوراک ځښاک نه واخلې تر د قرآن پاک جائې نماز او لوټه وغیره راغوښتلو پورې عام اجازت دې د مونځ په وختونو کښې مونږ سره د چاهیڅ کار نه وی بلکه سحر او ماښام صرف لس منټونو دپاره انډیا والا زمونږ تالاشی اخلی. باقی ټوله ورځ مو د قرآن لوستلو نه بغیر بل څه کار نه وی دغه شان ځما پنځلس ورځې هم نشته ځکه چه ځما خلاصې یوه میاشت پس ممکن دې ما په صفا الفاظو کښې تاته حالات اوخودل نو ماته هم په صفا الفاظو کښې اوښایئ چه قصر مونځ کووم یا پوره مونځ دغه شان د روژې یا اخترونو او جمعې وغیره څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: کلرک محمد نثار جنګی قیدی انډیا.....۱۵۱۳۱۱۹۷۳

﴿۱﴾(فتاوئ عالمگیریة ص ۱۳۹ جلد ۱ الباب الخامس عشر فى صلاة المسافر)



**الجواب:** محترم المقام السلام علیکم نه پس دې دا خبره واضحه وی چه ته یعنی هغه قیدی چه د چاونئ سره نزدې اوسیږې څلور رکعتونه به کوی. او جمعه او اخترونه به هم کوي، او روژه به هم نیسې به تا باندې به د مقیم احکام جاری کیږي. ﴿۱﴾ فقط سلام

**د مسافر امام د مقیمینو د پاره څلور رکعته مونځ کول**

**سوال:** حضرت الشیخ مولانا مفتی محمد فرید صاحب مدظله العالی بنده د دعاګانو طلب کونکې دې، هغه خاص مسئله کښې هم دعاګانې کوئ د لاندینئ مسئلې متعلق جواب مطلوب دې.

مسئله داده چه مسافر امام د مقیمینوته د څلورو رکعتونو والا مونځ اوکړو او په دوو رکعتونو باندې د سلام په ځائې ئې څلور اوکړل نو سوال دادې چه د مقیمینو مونځ اوشو یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ عبد المالک نریاب متنی کوهاټ...۱۱۷ جولائی ۱۹۷۹

**الجواب:** محترم المقام جناب حافظ عبد المالک سلمه الرحمٰن السلام علیکم! دا خبره دې واضحه وی چه دعا ګو د الله په فضل سره په خیریت دی الله کریم دې تاسو هم په خیریت سره ساتی. او خاص او نیک اولاد نعمتونه دې الله درکړې، آمین، دمسئلې متعلق جواب دادې که چرته دریم رکعت ته د اودریدلو په وخت کښې دغې مقیمینو د انفراد نیت نه وی کړې نو اعاده پرې واجب ده. ﴿۲﴾. وهو الموفق

**په مسجد الحرام اومسجد نبوی کښې مقیم امام پسې به پوره مونځ کولې شي**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ په سعودی عرب

﴿۱﴾وفى الهندية: فيصير الجندى مقيما فى الفيافى بنية اقامة الامير فى المصر كذافى الكافى. (فتاوئ عالمگیرية ص ۱۴۱ جلد ۱ الباب الخامس عشر فى صلاة المسافر)

﴿۲﴾قال ابن عابدين: (لم يصر مقيماً) فلو اتم المقيمون صلوتهم معه فسدت لانه اقتداء المفترض بالمتنفل ظهيريه اى اذا قصدوا متابعته اما لو نووا مفارقته و وافقوه صورة فلا فساد افاده الخير الرملى. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۵۸۴ جلد ۱ باب صلاة المسافر)

كنبې ملازمت كوو. د مكې معظمې او مسجد نبوى نه مونږ د سفر شرعى په مقدار نه ډيرلرې يو. مكه مكرمه پنځه سوه كلو ميټره او مدينه منوره زر ميله لرې ده. چه كله مونږ عمرې د پاره ځو نو د امام سره پوره مونځ كوو. آيا دا صحيح دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: افضل خان بيشه سعوديه عربيه...... ٦/١١/١٩٨٥

**الجواب:** كه تاسو مسافرين نو د مقيم امام پسې به پوره مونځ كوئ او خاتنه مونځ كولو كنبې به قصر كوئ (١) وهو الموفق

## په جيل كنبې به قيديان اتمام كوى كه قصر

**سوال:** محترمى ومكرمى جناب حضرت مفتى صاحب زيد مجد كم دارالعلوم حقانيه اكوړه خټك. علمائي دين دې مسئلې باره كنبې څه فرمائى چې په جيل كنبې قيد بعضې خلق هغه وى چه هغوى ته با قاعده د عدالت د طرفنه د سياسى يا اخلاقى دفعاتو مطابق قيد سزا اوروليې شوې وى. داسې كسانو ته قيديان وئيلې شى او بعضې خلق هغه وى چه هغوى ته حوالاتيان وئيلې شى. يعنى د هغوى مقدمات اوريدل شروع وى. (يعنى زير سماعت وي) او بعضې د انتظاميې د طرفه د معينې او غير معينې مودې د پاره نظر بند وى. د سياسى دفعاتو په وجه د نيولې شوو كسانو خلاصيدل يا بل جيل ته د بدليدلو دارومدار اكثر په حكومتى پاليسو باندې وى نو چه كوم نيولې شوى كسان د سفر مطابق مزل اوكړى او راوستلې شى د هغوى د اقامت نيت به صحيح وى يا نه؟ حال دا چه جيل نه د اقامت د اختيارولو ځائې د ې او نه چاته په جيل كنبې د معينې مودې څه اختيار وى نو د شريعت په رنړا كنبې به په دې صورت كنبې د سفر نيت وى كه د اقامت نيت به وي؟ بينوا توجروا

المستفتي: صاحبزاده عبدالبارى جان ناظم اعلى جې يو آئى سرحد سنټرجيل هرى پور ايبټ آباد. ٣/٨/١٠/١٩٨٣

(١) قال العلامة مرغينانى: (وان اقتدى المسافر بالمقيم فى الوقت اتم اربعا) لانه يتغير فرضه الى اربع للتبعية كما يتغير بنية الاقامة لاتصال المغير بالسبب وهو الوقت. (الهداية على صدرفتح القدير ص ١٢ جلد ٢ باب صلاة المسافر)



**الجواب** دا نيولې شوى كسان د چا متعلق چه استفتاء كړې شوې ده دوى به اتمام كوى ځكه چه د جيل هغه لوئې افسر چه د يو جيل نه بل جيل ته د بدلولو اختيار لرى هغه مقيم وى. وقالوا المعتبرنية المتبوع دون التابع كالاسير والغريم(١) البته كه د دغې افسر نيت نا معلومه وى نو د صحيح ترين قول مطابق به دا نيولې شوې كسان قصر كوى

كمافى شرح التنوير على هامش الشامية ص ٥٥٨ جلد ١ ولا بد من علم التابع بنية المتبوع فلونوى المتبوع الاقامة ولم يعلم التابع فهو مسافر حتى يعلم وهو الاصح وبه يفتى(٢). وهو الموفق

## د مونځ په حالت كنبې د اقامت د نيت مسئله

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره كنبې څه فرمائى چه (١) كه يو مسافر د مونځ په حالت كنبې د اقامت نيت اوكړى خواه هغه په اول كنبې وى يا مينځ كنبې يا آخر كنبې. ليكن سجده سهو يا سلام نه مخكنبې نو ده له هغه مونځ پوره كول پكار دى په هغې كنبې قصر جائز نه دې؟ (٢) اوكه د مونځ وخت تيريدلو نه پس نيت اوكړى يا د لاحق كيدلو په صورت كنبې نيت اوكړى نو د هغه د نيت اثر به په دې مونځ كنبې نه ښكاره كيږى او كه دا مونځ د څلورو ركعتونو والا وى نو ده د پاره به پكنبې قصر واجب وى

**مثال نمبر١:** يو مسافر د ظهر مونځ شروع كړو د يو ركعت كولو نه پس وخت تيرشو او د هغې نه پس ده د اقامت نيت اوكړو نو د ا نيت به په دې نومونځ كنبې اثر نه كوى او دا مونځ ورله په قصر سره كول پكار دى

**مثال نمبر٢:** يو مسافر د بل مسافرمقتدى شو او لاحق شو بيائې خپل شوې ركعتونه اوكړل او د اقامت نيت ئې اوكړو نو د دې نيت اثر به په دې مونځ باندې بالكل نه پريوځى اوكه دا مونځ د څلورو ركعتونو والا وى نو دا به قصركوى دا مسئلې د بهشتې زيور نه اخستې شوې دى په دې كنبې دويم مثال د اولنى مثال سره متعارض معلوميږى نو په دې نقطې باندې مونږ پوهه كړئ؟ بينوا توجروا

المستفتي عبدالحميد وزيرستانى...... ١٩/٥/١٩٧٥

(١) (الدرالمختار ص ٥٨٧ جلد ١ مطلب فى الوطن الاصلى ووطن الاقامة)

(٢) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ٥٨٨ جلد ١ قبيل باب الجمعة)

نه پس جواباً عرض دي

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتکم د السلام علیکم نه پس جواباً عرض دي چه تاد بهشتي زیور په عبارت غور نه دي کړې په دې وجه ته په پریشانۍ کښې مبتلا ئې په دې عبارت کښې دي چه د مثال نمبر ۲ او نمبر ۱ د هغه مسافر په حق کښې دي چه یو رکعت کولو نه پس نیت اوکړی لیکن د وخت تیریدلو نه پس به دا نیت غیر موثر (بې اثره) وی ځکه چه کله دا سړې د ظهر د آخری لمحو پورې مسافرپاتې شو نودده فریضه د دوه رکعتو ثابته مستحکمه شوې ده.باقی مونږ کوم چه د عصر په وخت کښې ادا کولې په هغې کښې د اقامت نیت په ماضی کښې مؤثر نه شی ګرزیدلې. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د حنبلی مسافر اقتداء کښې د حنفی مسافر اتمام کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د عربو تبلیغی جماعت زمونږ ښار ته راغلې وو.بیا دوه ورځو دپاره د اهل حدیثو جمات ته لاړلو، اهلِ حدیث والو د اکرام او عزت په طور یوکس امامت ته وړاندې کړو او د مسافر کیدو باوجود ئې اتمام اوکړو..آیا زمونږ حنفی مسلک والو باندې قصر واجب دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد سرور کهلول ډیره غازی خان ۱۲/۸/۱۹۸۹

**الجواب:** صرف د احنافو په نزد په مسافر باندې قصر واجب دې (لدلائل قد فصلت فی موضعها)﴿۲﴾ او د نورو امامانو په نزد اتمام هم جائز دې لهٰذا په تاسو

---

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: واقتداء المسافر بالمقیم یجوز فی الوقت ولا یجوز فی خارج الوقت عندنا لان فرض المسافر قد تقرر رکعتین علی وجه لا یحتمل التغیر بالاقتداء بالمقیم فکانت القعدة الاولیٰ فرضا فی حقه فیکون هذا اقتداء المفترض بالمتنفل فی حق القعدة وهذا لا یجوز علی اصل اصحابنا. (بدائع الصنائع ص ۲۶۰ جلد ۱ احکام المسافر)

﴿۲﴾ وفی المنهاج : والقصر واجب عندنا وهو روایة عن مالک واحدی روایتی احمد وهو مذهب جمهور الصحابة والتابعین، ویقال له قصر اسقاط وقال ابن القیم انه لم یثبت عنه ﷺ انه اتم الرباعیة فی سفره البتة، انتهیٰ ومارواه الشافعی...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



باندې اعاده ضروری نه ده. وجه داده چه د امذ هبونه د خلفائې راشدینو په زمانه کښې هم موجود وو او په مخالفت کونکی باندې انکار مروی دې لیکن اعاده مروی نه ده.

**کما انکروا علی امیر المؤمنین عثمان بن عفان رضی الله عنه اتمامه ولم یرو عن المنکرین الاعادة ﴿۱﴾ . وهوالموفق**

---

(بقیه حاشیه ) انه علیه السلام اتم ففی سنده طلحة بن عمرو وهو متروک ، وکذلک ماروی فی شرح السنة ففی سنده ابراهیم بن یحیٰ وهو لین الحدیث. والقصر والاتمام کلاهما جائزان وهو مذهب مالک وهو قول احمد الاخر وهو مذهب الشافعی والقصر افضل فی مواضع الخ. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۷۹ جلد ۳ ابواب السفر)

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: وروی ان عثمان رضی الله عنه اتم الصلاة بمنیٰ فانکر علیه اصحاب رسول الله ﷺ حتی قال لهم انی تأهلت بمکة وقد سمعت رسول الله ﷺ یقول: من تاهل بقوم فهم منهم، فدل انکار الصحابة واعتذار عثمان ان الفرض ما قلنا اذ لو کان الاربع عزیمة لما انکرت الصحابة علیه ولما اعتذرهو اذ لایلام علی العزائم ولا یعتذر عنها. (بدائع الصنائع ص ۲۵۹ جلد ۱ الکلام فی صلاة المسافر)

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه دریم جلد

# باب صلوة الجمعة



.........................



بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## قال الله تعالیٰ

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ
يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ۭ
ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ⑨

(النساء)

...

# باب صلاة الجمعة

## د جمعې مونځ فرض عین دې او ددې د فرضیت نه منکر کافر دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې د جمعې په مونځ کښې اختلاف دې چه آیا د جمعې مونځ فرض دې یا واجب دې؟ که فرض وی نو ددې منکر کافر دې یا نه؟ او که واجب وې نو د واجبو نیت ولې نشی کولې؟ بینوا توجروا

المستفتی: فیض الله متعلم دار العلوم حقانیه.........۱۹۲۹/۲/۱۷

**الجواب:** د جمعې مونځ فرضِ عین دې ددې دفرضیت نه منکر کافر دې. فی الدر المختار: هی فرض عین یکفر جاحدها بالدلیل القطعی کما حققه الکمال﴿۱﴾. وهو الموفق

## د جمعې په ورځ د نیکو اعمالو فضلیت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې آیا د جمعې په ورځ د نیکو اعمالو ثواب د نورو ورځو په نسبت سره ډیر وي؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الحق ابو سوات.........رمضان ۹ ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** اجمالی طور دا مسئله مروی ده. ﴿۲﴾ البته تخصیص ﴿۲﴾ بلامخصص مکروه دي. (وکم من فرق...

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۸۹ جلد ۱ باب الجمعة)

﴿۲﴾ عن اوس بن اوس قال قال رسول الله ﷺ ان من افضل ایاکم یوم الجمعة فیه خلق آدم وفیه قبض وفیه النفخة وفیه الصعقة فاکثروا علی من الصلوٰة فیه فان صلوتکم معروضة علی قالوا یا رسول الله وکیف تعرض صلاتنا علیک وقدارمت قال یقولون بلیت قال ان الله حرم علی الارض اجساد الانبیاء رواه ابوداؤد والنسائی وابن ماجة والدارمی والبیهقی.

(مشکواة المصابیح ص ۱۲۰ جلد ۱ باب الجمعة) ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



بین الفضیلة والتخصیص﴿۱﴾ وهو الموفق

## د جمعې په ورځ د بعضې عملونو په کولو کښې د ثواب زیاتوالې او د جمعة الوداع مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) چه آیا د جمعې په ورځ داعمالو ثواب د نورو ورځو نه زیات وی. (۲) آیا جمعه الوداع ته په نورو جمعو باندې داسې فضیلت حاصل دې لکه څنګه چه ته د هفتې په نورو ورځو باندې؟ بینوا توجروا

المستقتی: عبد الحق ابوها سوات.....۱۷/ رمضان/ ۱۳۹۹ھ

(بقیه حاشیه) وفی المنهاج: اعلم ان الحدیث یدل علی ان افضل الایام یوم الجمعة وبه قال احمد وبه جزم ابن العربی، وقیل یوم عرفة افضل لحدیث ابن حبان عن جابر قال قال رسول الله ﷺ ما من یوم افضل عند الله من یوم عرفة وبه اخذت الحنفیة وهو اصح الوجهین عند الشافعیة، وثمرة الاختلاف فی النذر فی افضل الایام والطلاق فیه، وحدیثنا نص علی المرام من حدیث الباب، وکذا من حدیث عبد الله بن قرط عند ابن حبان ان النبی ﷺ قال افضل الایام عند الله تعالیٰ یوم النحر، وقد جمع الحافظ العراقی بینها فقال المراد تفضیل الجمعة بالنسبة الی ایام الجمعة، وتفضیل یوم عرفة او یوم النحر بالنسبة الی یام السنة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۴۰ جلد ۳ باب فضل یوم الجمعة)

﴿۱﴾ وفی المنهاج: قال صاحب البحر فی اثناء الرد علی من جوز التکبیر سرا یوم الفطر، ولان ذکر الله اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشیٔ دون شیٔ لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف الموضوع، وقال ناقلا عن الغایة ولا یکبر فی طریق المصلی عند ابی حنیفة ای حکما للعید ولکن لو کبر لانه ذکر الله تعالیٰ یجوز ویستحب انتهیٰ، فلا بد من ابداء الفرق بین الاتیان بعبادة فی یوم الجمعة ولیلتها حکما لهما وبین الاتیان بها فیهما لا حکما لهما فان مالا یدرک کله لا یترک کله، وائمة مساجد هذا العصر مبتلون بالاولیٰ فالی الله المشتکیٰ.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۴۴ جلد ۴ باب ماجاء فی صوم یوم الجمعة)

**الجواب**: (۱) بعضې اعمال چه هغه ابن القیم په زاد المعاد کښې ذکر کړې دي، ثواب ئې زیات دي لکه درود شریف وغیره. ﴿۱﴾ (۲) جمعة الوداع یو عوامی نوم دي اسلامی نوم نه دې. ﴿۲﴾ ، وهوالموفق

## د جمعې دمونځ نه پس جهری ذکر کول بدعت نه دي البته په بعضې صورتونو کښې مکروه دي

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه د جمعې دمونځ نه پس د کلمه طیبه ذکر په اوچت آواز سره کول بدعت دي یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عزیز قریشی کهوټه............ ۱۲/۱۱/۱۹۷۲

**الجواب**: واضحه دې وی چه بدعت احداث فی الدین ته وائی یعنی غیردین ته

**﴿۱﴾ قال ابو عبد الله ابن القیم الجوزیة: وکان من هدیه ﷺ تعظیم هذا الیوم وتشریفه وتخصیصه بعبادات یختص بها عن غیره...... وکان ﷺ یقرأ فی فجره بسورتی الٓم تنزیل وهل اتی علی الانسان ...... الخاصة الثانیة استحباب کثرة الصلاة فیه علی النبی ﷺ وفی لیلته لقوله ﷺ اکثروا من الصلاة علی یوم الجمعة ولیلة الجمعة ورسول الله ﷺ سید الانام ویوم الجمعة سید الایام فللصلاة علیه فی هذاالیوم مزیة لیست لغیره...... فاعظم کرامة تحصل لهم فانما تحصل یوم الجمعة فان فیه بعثهم الی منازلهم وقصورهم فی الجنة وهو یوم المزید لهم اذا دخلوا الجنة وهو عید لهم فی الدنیا.**

**(زاد المعاد فی هدی خیر العباد ص ۱۲۶ جلد ۱ فصل فی تعظیم یوم الجمعة)**

**حاشیه نمبر۲ ص۱۰۲**: علامه عبدالحئ لکهنوی رحمه الله فرمائی د خطبه وداع اهتمام کول لکه چه په دې زمانه کښې مروج دې او دا د التزام حد ته رسول د ابتداع نه خالی نه ده. معتمدین علماؤ باندې لازم دی چه ددې طریقې التزام پریږدی. چه عوام ددې د مستحب او سنت بلکه ضروری ګڼړلو د عقیدې نه خلاص شی.

**(مجموعة الفتاویٰ ص ۱۷۹ جلد۲ کتاب الحظر والاباحة)**

**﴿۳﴾ قال العلامة ابن رجب الحنبلی: والمراد بالبدعة ما احدث مما لا اصل له فی الشریعة یدل علیه واما ما کان له اصل من الشرع یدل فلیس ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)**



دین وئیل، او د جهری ذکر غیر دین کیدل نه مُبرهَن او نه مُسلم بلکه ذکر بالجهر مستحب دې.

**کما فی ردالمحتار ص۶۱۸ جلد۱ وفی حاشیه الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفا وخلفا علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغیرها الا ان یشوش جهرهم**

**(بقیه حاشیه) ببدعة شرعا وان کان بدعة لغة (جامع العلوم والحکم ص ۲۳۳) وقال القرطبی: کل بدعة صدرت من مخلوق فلا یخلوا ان یکون لها اصل فی الشرع اولا فان کان لها اصل کانت واقعة تحت ما ندب الله الیه وحفن رسوله الیه فهی فی حیزالمدح وان لم یکن مثاله الخ(احکام القرآن للقرطبی ص۸۷ جلد۱ بقرة) قال الملا علی قاری: قال النووی البدعة کل شئ عمل علی غیر مثال سبق وفی الشرع احداث ما لم یکن فی عهد رسول الله ﷺ (مرقاة ص ۲۱۶ جلد۲) قال الامام الغزالی: اذا لم یرد فیه نهی فلا ینبغی ان یسمی بدعة ومکروها ولکنه ترک الاحب وقال الشافعی ما خالف الکتاب والسنة او الاثر او الاجماع فهو ضلالة وما احدث من الخیر مما لا یخالف شیئاً من ذلک فلیس بمذموم (الاحیاء لعلوم الدین ص ۳۳۱ جلد۲) قال العزبن عبد السلام الشافعی: البدعة فعل مالم یعهد فی عصر رسول الله ﷺ وهی منقسمة الی بدعة واجبة وبدعة محرمة وبدعة مندوبة وبدعة مکروهة وبدعة مباحة الخ( قواعد الاحکام ص ۱۷۲، ۱۷۴ جلد۲) قال الشیخ محمد فرید: اعلم ان البدعة هی اعتقاد ما لیس من الدین دینا وهی قسمان مکفرة ومفسقة (فتح المنعم شرح مقدمه مسلم ص ۲۹) وفی مختار الصحاح: البدعة الحدث فی الدین بعد الاکمال ، وفی عمدة القاری: البدعة فی الاصل احداث امر لم یکن فی زمن رسول الله ﷺ ، وفی شرح المقاصد: ان البدعة المذمومة هو المحدث فی الدین من غیر ان یکون فی عهد الصحابة والتابعین ولا دل علیه دلیل شرعی (ضروری مسائل ص ۱۱)وقال العلامة ابن حجر العسقلانی: والتحقیق انها ان کانت مما تندرج تحت مستحسن فی الشرع فهی حسنة وان کانت من ما تندرج تحت مستقبح فی الشرع فهی مستقبحة والا فهی من قسم المباح وقد تنقسم الی الا حکام الخمسة(فتح الباری ص ۲۱۹ جلد۴) قال العلامة ابن عابدین: بدعة ای محرمة والا فقد تکون واجبة ...... ومندوبة...... وکل احسان لم یکن فی الصدر الاول ومکروهة...... ومباحة الخ (ردالمحتار ص ۴۱۴ جلد۱).**

علی نائم او مصل او قارئ ﴿۱﴾ لهذا دیته بدعت وئیل صحیح نه دی البته د ایذا او تکلیف رسولو په وخت کښې مکروه دي. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## ښځو د پاره جمعې له جماتونو ته تلل مکروه دی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه نن صبا ښځې هم د جمعې مونځ کولو د پاره راځی ددې څه حکم دی آیا دا جائز دي؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی کرم الهی عثمانی اسلام پوره سرګودها... ۱۲۹/رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** زنانه له جماتونو ته د مونځ د پاره تلل مکروه او ممنوع دی. ﴿۳﴾

وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸۸ جلد ۱ مطلب فی رفع الصوت بالذکر)

﴿۲﴾ قال العلامة جلال الدين السيوطي: انه لا كراهة فى شئ من ذلك وقد وردت احاديث تقتضى استحباب الجهر بالذكر، واحاديث تقتضى استحباب الاسرار به، والجمع بينهما ان ذلك يختلف باختلاف الاحوال والاشخاص كما جمع النووى بمثل ذلك بين الاحاديث الواردة باستحباب الجهر بقراءة القرآن والاحاديث الواردة باستحباب الاسرار بها...... بعد ذكر احاديث خمس وعشرون قال: اذا تأملت ما اوردنا من الاحاديث عرفت من مجموعها انه لا كراهة البتة فى الجهر بالذكر بل فيه ما يدل على استحبابه اما صريحا او التزاما كما اشرنا اليه واما معارضته بحديث "خير الذكر الخفى" فهو نظير معارضة احاديث الجهر بالقرآن بحديث المسر بالقرآن كالمسر بالصدقة وقد جمع النووى بينهما بان الاخفاء افضل حيث خاف الرياء او تأذى به مصلون او نيام والجهر افضل فى غير ذلك. (الحاوى للفتاوى ۱: ۳۷۵، ۳۷۹ نتيجة الفكر فى الجهر فى الذكر)

(ومثله فى سباحة الفكر فى الجهر بالذكر للشيخ عبد الحئ فرنجى محلى لكهنوى)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله: ويكره حضورهن الجماعة ولو جمعة وعيد ووعظ مطلقا ولو عجوز ليلا على المذهب.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص۴۱۸ جلد ۱ باب الامامة)



## د جمعې او اختر مونځ به په یوه ورځ باندې ادا کولې شي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې دې کال په انګلینډ کښې او خاص کر زمونږ درهائش په اطرافو کښې عیدالاضحی د جمعې په ورځ اوشو اوس بعضې خلق وائی چه د اختر خطبه او د جمعې خطبه په یوه روځ کول نه دی پکار ځکه چه په دی کښې تنګی او حرج دي چه د قربانئ نه به لاوزګار شوې نه وی چه د جمعې مونځ شروع شی په دې وجه اختر یوه ورځ مخکښې یا روستو کول پکار دی غرض دادې چه ددې مسئلې وضاحت او حقیقت څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد اعظم بولټن انګلینډ... ۷/۱۵/۱۹۲۹ء

**الجواب:** زمونږ احنافو په نزد د اخترونو او جمعې مونځو نه به دواړه کولې شی او دا د جمهورو مذهب دې. (خلافاً لعطاء) ځکه چه په کومو دلیلونو سره د اختر د مونځ واجب کیدل او د جمعې د مونځ فرض کیدل ثابت دی په هغې کښې هیڅ قید او تخصیص نشته او کوم احادیث چه د جمعې په پریخودلو باندې دلالت کونکې دی هغه رخصت د بانډچیانو خلقو د پاره وه. ﴿۱﴾ بقرينة ما رواه ابو داؤد وانا مجمعون وللتفصيل موضع آخر ﴿۲﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: اما مذهبنا فلزوم كل منهما قال فى الهداية ناقلا عن الجامع الصغير عيدان اجتمعا فى يوم واحد فالاول سنة والثانى فريضة ولا يترك واحد منهما، قال فى المعراج احترز به عن قول عطاء تجزى صلاة العيد عن الجمعة ومثله عن على وابن الزبير قال ابن عبد البر سقوط الجمعة بالعيد مهجور وعن على ان ذلك فى اهل البادية ومن لا تجب عليهم الجمعة. (ردالمحتار ص ۶۱۰ جلد ۱ مطلب فى الفال والطيرة باب العيدين)

﴿۲﴾ وفى المنهاج: (قوله وربما اجتمعا فى يوم واحد فيقرأبهما) فيه رد لزعم الجهال ان اجتماع الخطبتين يكون منحوسا، وفيه حجة على من قال بتداخل صلاة الجمعة صلاة العيد وهو عطاء، بدليل ما رواه ابو داؤد من حديث زيد بن ارقم ......

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

فتواه ، فكتبنا اليكم هذا الملفوف لتضح علينا الامر ما هو المحقق عندكم فيها نحن منتظرون جوابكم المفصل المدلل واجركم على الله.

المستفتی: محمد زرين تيراه پاړه چنار... ٣/ اپريل ١٩٧٥ء

**جواب:** قال صاحب الهداية لا تصح الجمعة الا فی مصر جامع او مصلی المصر ولا تجوز فی القریٰ لقوله عليه السلام لا جمعة ولا تشريق ولا فطر ولا اضحی الا فی مصر جامع (ص١٤٨) ﴿١﴾ قلت قال فی الدراية لم اجده وروی عبد الرزاق عن علی موقوفا لا تشريق ولا جمعة الا فی مصر جامع واسناده صحيح ورواه ابن ابی شيبة مثله انتهیٰ ما فی الدراية ﴿٢﴾ قلت ويؤيده حديث تناوب اهل القریٰ (رواه البخاری) ﴿٣﴾ وجه التائيد ان اهل القریٰ لم يجمعوا فی قراهم بدليل حديث جواثی وكذا يؤيدنا حديث جواثی (رواه البخاری) ﴿٤﴾ لان التجميع فی جواثا وترك

﴿١﴾ (هداية ص ١٥٠ جلد ١ باب صلوٰة الجمعة)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن الهمام: وانما رواه ابن ابی شيبة موقوفا علی علی رضی الله عنه لا جمعة ولا تشريق ولا صلاة فطر ولا اضحی الا فی مصر جامع او فی مدينة عظيمة صححه ابن حزم. (فتح القدير ص ٢٢ جلد ٢ باب صلاة الجمعة)

﴿٣﴾ عن عائشة زوج النبی ﷺ كان الناس ينتابون الجمعة من منازلهم والعوالی فيأتون فی الغبار يصيبهم الغبار والعرق فيخرج منهم العرق فاتی رسول الله ﷺ انسان منهم وهو عندی فقال النبی ﷺ لو انكم تطهر تم ليومكم هذا.

(الصحيح البخاری ص ١٢٣ جلد ١ باب من اين تؤتی الجمعة وعلی من تجب كتاب الجمعة)

﴿٤﴾ عن ابن عباس قال ان اول جمعة جمعت بعد جمعة فی مسجد رسول الله ﷺ فی مسجد عبد القيس بجواثی من البحرين.

(الصحيح البخاری ص ١٢٢ جلد ١ باب الجمعة فی القریٰ والمدن كتاب الجمعة)



التجميع فی قریٰ كثيرة دليل واضح علی علم الصحة فلا يكون حديث جواثی حجة للمخالف وكيف يكون حجة مع انه موقوف معارض بالمحرم وكذا محتمل لان القرية فی سنة القرآن والحديث تطلق علی المصر ايضا فافهم وتدبر ﴿١﴾. وهو الموفق

## د جمعې او اخترونو دواړو د پاره مصر شرعی شرط دې.

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائی چه په كلې كښې د اخترونو مونځ كيږی او د جمعې مونځ نه كيږي، اخترونو كولو والا يو سكول ماستر دې، مولانا صاحب وائی چه كوم ځائې كښې جمعه نه كيږی هلته اخترونه هم نشی كيدلې شرعی حكم څه دې؟ او كوم صاحب په حقه باندې دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: محمد اقبال دهم بیٔ صابر آباد كرك..١٧مئ ١٩٨٣

**الجواب:** دا دويم مولانا په حقه باندې دې

كما فی شرح التنوير علی هامش الشامية ص ٧٧٥ جلد ١ صلاة العيد فی القریٰ تكره تحريماً ای لانه اشتغال بما لا يصح لان المصر شرط الصحة ﴿٢﴾. وهو الموفق

## د سني، شيعه او مرزائی وغيره مشترك كلې كښې د جُمعې د مونځ حكم

**سوال:** يو كلې چه دهغې د آبادی تناسب تقريباً ٦٥ فيصد سنی، ٢ فيصد شيعه او ٢ فيصد مرزايان دي، په كلی كښې د كريانې صرف يو دكان دې، دوه جماتونه دی په هغې كښې مونځ خو څه كوې اذان هم پكښې نه كيږي، په دواړو جماتونو كښې د قرآن كريم د تعليم هيڅ انتظام نشته، د دوه كالونه يو جمات والؤ جُمعه كول شروع كړې ده، اوس دويم جمات والو هم جُمعه شروع

﴿١﴾ (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ٥١، ٥٢ جلد ٣ باب ماجاء منكم يؤتی الی الجمعة)

﴿٢﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ٦١١ جلد ١ باب العيدين)

کړه. حال دا چه په هر جمات کښې درې څلور مونځ گذار وي. اوس سوال دادې چه آيا دلته د جُمعې مونځ کول صحیح دي؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالحکيم راهی راولپنډی

**الجواب:** که ددې ځائې مردم شماری تر دوه زرو پورې وی نو دا ځائې قریه کبیره ده. په دې کښې د جُمعې قائمول صحیح دی. (فتاوٰی دارالعلوم دیوبند)﴿۱﴾ وهوالموفق

## په جیل کښې د جمعې مونځ صحیح دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې آيا په جیل کښې د جُمعې مونځ کول جائز دي؟ ځکه چه بعضې علماء فرمائی چه د جمعې د پاره یو شرط اذنِ عام هم دې او په جیل کښې پابندی وی او اذنِ عام پکښې نه وي؟ بينوا توجروا

المستفتی: محمد شریف جامع مسجد گندوال جهلم

**الجواب:** د مفتیٰ بهٖ قول په بنا باندې په متعدد مقاماتو کښې د جُمعې مونځ اداکول جائز دی

**کما فی شرح التنویر وتؤدی فی مصر واحد بمواضع کثیرة مطلقا علی المذهب وعلیه الفتویٰ(هامش ردالمحتار ص ۷۵۵ جلد ۱)﴿۲﴾**

لهذا د اذنِ عام ضرورت په دې تقدیر سره باقی پاتې نه شو.

**کما یشیر الیه ما فی ردالمحتار ص ۷۶۲ جلد ۱ قلت وینبغی ان یکون محل النزاع ما اذا کانت لا تقام الا فی محل واحد اما لو تعددت فلا لانه لا یتحقق التفویت کما افاده التعلیل ﴿۳﴾ فلیتامل. وهوالموفق**

﴿۱﴾ (فتاوٰی دارالعلوم دیوبند ص ۵۶ جلد ۵ الباب الخامس عشر فی صلاة الجمعة)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۹۵ جلد ۱ باب الجمعة)

﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۷۰۱ جلد ۱ مطلب فی شروط الجمعة)



## د جُمعې د اقامت د پاره د قاضی او گورنر (والي) د اجازت مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ کلې په درې نیم سوه یا څلور سوه کورونو باندې مشتمل دې په کلی کښې د دیهی ترقیاتی پروگرام یو ډویژنل دفتر هم دې. چه په هغې کښې تقریباً د اتیا محکمو اعلیٰ افسران هر وخت موجود وي، دغه شان هائی سکول موجود دې، د کالج تعمیر هم شروع دې، هر قسم کاریگر هم شته. دلته تر اوسه پورې د جمعې مونځ نه دې شروع شوې، اوس دعلاقې بعضې معتمد علمائې کرام زبانی طور سره د جُمعې د مونځ کولو حکم ورکړې دې، آیا په دې کلی کښې د جمعې مونږ اداکیږی یا نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: حافظ محمد امین لکی مروت.....۱۹۷۴/۱۲/۴

**الجواب:** که په دې مقام کښې خومحلې او بازارونه یا یو لوئې بازار وی نو دا مقام به مصر شرعی او قریه کبیره وی دې کښې به د جُمعې او اخترونو مونځونه اداکول جائز وی.

**کما فی البدائع وروی عن ابی حنیفة انه بلدة کبیرة فیها سکک واسواق ولها رساتیق وفیها وال وهو الاصح ص ۲۶۰ جلد ۱ ﴿۱﴾ قلت وجود الوالی قید واقعی لان الصحابة رضی الله عنهم صلوا الجمعة فی المدینة قبل هجرة النبی ﷺ والظاهر انه لم یکن ثمه وال وکذا فی جواثی (اسم قریة) ولم یفتح بعد بل فتحها الصدیق الاکبر ﴿۲﴾ ویدل علیه ایضا ما فی ردالمحتار ص ۷۵۴ جلد ۱ فلو**

﴿۱﴾ (بدائع الصنائع ص ۵۸۵ جلد ۱ فصل فی بیان شرائط الجمعة)

﴿۲﴾ قال العلامة خلیل احمد السهارنفوری: وروی ابوداؤد بسنده عن کعب بن مالک انه کان اذا سمع النداء یوم الجمعة ترحم لا سعد بن زرارة فقلت له اذا سمعت النداء ترحمت لا سعد بن زرارة قال لانه اول من جمع بنا فی هزم النبیت من حرة بنی بیاضة فی نقیع یقال له نقیع الخضمات قلت کم کنتم یومئذ قال اربعون وفی المعرفة قال الزهری لما بعث النبی ﷺ مصعب بن عمیر الی المدینة لیقرئهم القرآن جمع بهم وهم اثنا عشر رجلا فکان مصعب اول من جمع الجمعة بالمدینة بالمسلمین قبل...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

الولاة کفاراً یجوز للمسلمین اقامة الجمعة ویصیر القاضی قاضیا بتراضی المسلمین ﴿۱﴾ فافهم ویدل علی اصل المسئلة ما فی القهستانی وتقع فرضا فی القصبات والقریٰ الکبیرة التی فیها اسواق (ردالمحتار ص۷۴۸ جلد ۱) ﴿۲﴾. وهوالموفق

## د جُمعې د مونځ د پاره د جمات کیدل شرط نه دی

**سوال:** علمائي دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ د جمات سره یو کور دې د جُمعې دمونځ په وخت د هغې کور په چهت باندې خلق او دریږی د جُمعې مونځ ادا کولې شي، آیا دا صحیح دي؟ دکور په چهت باندې د جمعې مونځ اداکیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی:محمد فرید نائب خطیب میډیم رجمنټ ارټلری سیاکوټ کینټ ۲۰ رمضان ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** د جُمعې او با جماعت مونځ کولو دپاره جمات شرط نه دي. ﴿۳﴾ بخلاف الاعتکاف ﴿۴﴾ البته په دې اقدام کښې د ډیرو مصالح شرعیه د فوت کیدلو خطره موجود ده. وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) ان یقدمها رسول الله ﷺ، وفی صفحه ۱۲۹ وقال صاحب معجم البلدان جواثی بالضم وبین الالفین ثاء مثلثة یمد ویقصر وهو علم مرتجل حصن لعبد القیس بالبحرین فتحه العلاء بن الحضرمی فی ایام ابی بکر الصدیق رضی الله عنه سنه ۱۲ھ عنوة.

(بذل المجهود فی حل ابی داؤد ص ۱۶۹، ۱۷۰ جلد ۲ باب الجمعة فی القریٰ)

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۵۹۵ جلد ۱ باب الجمعة)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۵۹۰ جلد ۱ باب الجمعة)

﴿۳﴾ قال العلامه ابن نجیم رحمه الله: وشرط ادائها المصر...... او مصلاه ای مصلی المصر لانه من توابعه فکان فی حکمه والحکم غیر مقصور علی المصلی بل یجوز فی جمیع افنیة المصر. (البحر الرائق ص ۱۴۰ جلد ۲ باب صلاة الجمعة)

﴿۴﴾ قال العلامة حصکفی: والاعتکاف ......هو...... لبث...... ذکر فی مسجد جماعة...... او لبث امرأة فی مسجد بیتها. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۴۰ جلد ۲ باب الاعتکاف)



## په بانډو کښې د جُمعې د اقامت د پاره د مذهب نه اوړیدل غیر مستحسن کار دې

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د احنافو په نزد په بانډو کښې جُمعه نه کیږي، حال دا چه بعضې نورو امامانو جائز کړې هم ده. مولانا مودودی صاحب په خپل کتاب کښې لیکلې دی چه د جمعې د مونځ د پاره د ښار او اسلامی بادشاه ضرورت نشته. په دې کتاب کښې ئې دا هم لیکلی دی. (صحیح ده چه مونږ مقلدین یو لیکن د جُمعې په مونځ کښې مونږ په هغې شرطونو کښې ترمیم کوو) بهرحال د مودودی صاحب په نظر کښې په بانډو کښې د جُمعې مونځ کول بهتر دی. او دا وجه بیانوی چه که مونږ په کلو کښې د جمعې مونځ اونه کړو نو خلق به د وعظ او نصیحت نه محروم پاتې شی. آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی:عبدالله اوبړو کلې... ۱۰\۱فروري ۱۹۷۵

**الجواب:** دا خبره دې واضحه وی چه عندالاحناف د جُمعې دصحت دپاره مصر اوفنادمصرشرط دې ﴿۱﴾ (صرحوابه فی جمیع کتب الفقه) اودتحقیق هم دا تقاضا ده، لهٰذا بغیر د ضرورت نه د مذهب نه اوړیدل یو غیرمستحسن کار دې، ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د کمیټۍ په حدودو کښې داخلې بانډې په فنا د مصر یا مضافاتو کښې داخلې بانډې دی

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دلته څه بانډې د صوابۍ نه دوه میله لرې موجودې وې، ګلو ډهیرۍ، ملیانوبانډه شیخ باز بانډه. عثمان شاه بانډه، سیرئی بانډه، عبدالله خان بانډه وغیره او ددې

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ویشترط لصحتها سبعة اشیاء المصر او فناؤه الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۹۰ جلد ۱ باب الجمعة)

﴿۲﴾ فی البشریٰ: اعلم انه لا یجوز الحکم والافتاء بالقول المرجوح وبمذهب سائر الائمة الا فی ثلاثة مواضع الاول عند الضرورة دون التشهی والتلهی فانه حرام الخ. (البشری لارباب الفتویٰ ص ۴۵ الفصل السادس)

د افرادو تعداد د شلو کورونو نه تر سلو کورونو وو. او دا بانډې د چونګی نه بهر وې لیکن اوس ټولې د صوابئ کمیټئ لاندې داخلې دي، اوس ئې آبادی هم تقریباً د سړک په غاړه رسیدلې ده، چونګې هم بدل شوې دې دا ټولې بانډې په چونګی کښې دننه راغلې، په ګلو ډهیرئ کښې خو د مخکښې نه د جُمعې او اخترونو مونځ کیدلو او دهغوی دلیل داوؤ چه دا د صوابئ په مضافاتو کښې ده او په فِنا د مصر کښې داخله ده، لیکن مونږ به د جُمعې د مونځ په ځائې احتیاطاً د ظهر مونځ کولو. صرف په ګلو ډهیرئ. او شیر باز کورونو کښې به د جُمعه کیدله. اوس دتحقیق دپاره خبره داده چه په کمیټئ او چونګی کښې د داخلیدلو په وجه به په دې بانډو کښې دجُمعې مونځ جائز وی یا، نه؟ او آیا دا بانډې به په فنا د مصر کښې داخلې وی، یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالغنی صوابی..... ۱۹۱۲\۱۹۹۱

**الجواب**: د کمیټئ په حدودو کښې دننه بانډو کښې د جُمعې اقامت جائز دې. ځکه چه دا بانډې د ښار محلې جوړې شوې.

کما یشیر الیه ما فی جمعة عمدة القاری ان التمصیر للامام فای موضع مصر مصر ﴿۱﴾ او یا د فِنا داخلی بانډې دی. وهوواضح، وهوالموفق

## په دارالحرب کښې جمعه کول صحیح دي

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه آیا په دارالحرب کښې د جُمعې مونځ کول صحیح دي؟ (علم الفقه) چه د مولانا عبدالشکور صاحب تصنیف دې هغې کښې دی چه دجُمعې دپاره دارالاسلام شرط دې او لیکلې ئې دی چه په دارالحرب کښې جُمعه کول صحیح نه دی. آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم..... ۱۵\دسمبر ۱۹۷۴

﴿۱﴾ وفی المنهاج: والجواب عن اثر عمر ای جمعوا حیث ما کنتم، ان معناه حیث ما کنتم من الامصار الاتری انها لا تجوز فی البراری کما فی عمدة القاری، قلت ولا بد عن هذا التاویل لئلا یعارض بالاحادیث المرفوعة، او یقال ان التمصیر للامام فای موضع مصر مصر. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۵۲ جلد۳ باب ماجاء منکم یؤتی الی الجمعة)



**الجواب**: په دارالحرب کښې د جُمعې مونځ کول صحیح دی ځکه چه صحابه کرامو رضی الله عنهم مدینه منوره کښې د جمعې مونځ کړې حال داچه هغه وخت کښې پیغمبر علیه السلام نه هجرت کړې وو، او نه ئې څوک والی او قاضی مقرر کړې وؤ (واصل الحدیث فی جمعة ابی داؤد ﴿۱﴾ دغه شان په جُواثی مُقام کښې د جُمعې مونځ د پیغمبر علیه السلام په ژوند مبارک کښې مقرر شوې وو. حال داچه د اعلاقه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په زمانه کښې فتحه شوه، (کما فی بذل المجهود) ﴿۲﴾ وهوالموفق

## کوم ځائې کښې چه جُمعه جائز وی هلته ګنړوځایونو کښې جُمعه کول جائز دي

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په یو کلی کښې څلور جماتونه دي، او په هر یو جمات کښې ځان له د جمعې مونځ اداکیږي. په یو ځائې کښې ګنړو مقاماتو کښې د جُمعې مونځ ادا کیدیشی. چه اکثر په بعضې جماتونو کښې پنځلس سړی وی؟ بینوا! توجروا

المستفتی: محمد رفیق پیرسنګ پشاور..... ۲۴\ذی القعده ۱۳۹۷ھ

**الجواب**: که د ا مقام شرعی ښار یا فِنا د ښار او یا غټ کلې وی نو دهغې په هرجمات کښې دجمعې مونځ ادا کول جائزدی. ګنې نو په یو جمات کښې هم د

﴿۱﴾ عن عبد الرحمن بن کعب بن مالک وکان قائد ابیه بعد ما ذهب بصره عن ابیه کعب بن مالک انه کان اذا سمع النداء یوم الجمعة ترحم لا سعد بن زرارة فقلت له اذا سمعت النداء ترحمت لا سعد بن زرارة قال لانه اول من جمع بنا فی هزم النبیت من حرة بنی بیاضة فی نقیع یقال له نقیع الخضمات قلت کم انتم یومئذ قال اربعون. (سنن ابی داؤد ص ۱۶۰ جلد ۱ باب الجمعة فی القریٰ)

﴿۲﴾ قال الامام خلیل احمد السهارنفوری: (قوله لجمعة جمعت بجواثی قریة من قری البحرین) وقال صاحب معجم البلدان جواثی بالضم وبین الالفین ثاء مثلثة یمد ویقصر وهو علم مرتجل حصن لعبد القیس بالبحرین فتحه العلاء بن الحضرمی فی ایام ابی بکر الصدیق رضی الله عنه سنه ۱۲ ه عنوة. (بذل المجهود فی حل ابی داؤد ص ۱۶۹ جلد۲ باب الجمعة فی القریٰ)

جمعي مونځ جائز نه دي.

وتودیٰ فی مصر واحد بمواضع کثیرة مطلقا علی المذهب وعلیه الفتویٰ ﴿۱﴾ (هامش ردالمحتار ص ۷۵۵ جلد ۱). وهوالموفق

**په بانډه کښې جمعه جائز نه ده**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې زمونږ کلي په بانډه کښې دې او د غټې کلی نه کم ازکم دوه میله فاصلې باندې دې آبادی به ئې اووه اته سوه پورې وی. ددې ځائې ټوله آبادی په زمیندارانو باندې مشتمل ده، ورځې شپه په خپلو کارونو کښې مشغول وي، مخکښې به دلته د جُمعې مونځ نه کیدو او درې یا څلور کسان به د جُمعې مونځ دپاره ښار ته تلل، بیا مونږ دلته د کلی په جماتونو کښې د جمعې مونځ شروع کړو او هره جُمعه به تقریباً پنځوسو کسانو پورې حاضر یدل. نو آیا دلته د جمعې مونځ کول صحیح دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا فیض محمد ... ۹ ذی قعده ۱۳۹۴ھ

**الجواب:** د امقام شرعی مصر (ښار نه دې، په دیکښې د جمعې مونځ کول صحیح نه دی.

لان التعریف و هو التعریف الحقیقی ما فی البدائع ص ۲۶۰ جلد ۱ وروی عن ابی حنیفة انه بلدة کبیرة فیها سکک واسواق ولها رساتیق وفیها وال یقدر وهو الاصح ﴿۲﴾ انتهیٰ، قلت وعلم بعد التحقیق ان وجود الوالی امر استحبابی یدل علیه التجمیع فی المدینة المنورة قبل الهجرة ﴿۳﴾ وکذا ما فی ردالمحتار ص ۷۵۴ جلد ۱ فلو الولاة

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۹۵ جلد ۱ مطلب فی جواز استنابة الخطیب باب الجمعة

﴿۲﴾ (بدائع الصنائع ص ۵۸۵ جلد ۱ فصل فی بیان شرائط الجمعة)

﴿۳﴾ (کمافی حدیث کعب بن مالک رواه ابوداؤد ص ۱۶۰ جلد ۱ باب الجمعة فی القری)



کفار ایجوز للمسلمین اقامه الجمعة ویصیر القاضی قاضیا بتراضی المسلمین ویجب علیهم ان یلتمسوا والیا مسلماً ﴿۱﴾. فافهم وهوالموفق

**په صحرا کښې د جُمعې اقامت صحیح نه دی.**

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په صحرا کښې د جُمعې اقامت څه حکم دې؟ جائز دی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ماسټر عبدالمطلب

**جواب:** لا تصح اقامة الجمعة فی الصحراء ﴿۲﴾ ولا نیة الاقامة (فتح القدیر) ﴿۳﴾. وهوالموفق

**په جیل کښې دننه د قیدیانو یا حوالاتیانو جُمعه او اخترونه.**

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په جیل کښې دننه د قیدیانو یا حوالاتیانو د جُمعې او اخترونو مونځ صحیح دې یا نه؟ حال دا چه د جیل امام د بهر سړې دی دهغه مونځ ددوی سره کیږی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: معلم دینیات ډسټرکټ جیل ایبټ آباد....... ۱۹۷۸/۱۱/۱۷

..............

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۹۵ جلد ۱ مطلب فی نیة آخر ظهر بعد صلاة الجمعة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن الهمام: ان قوله تعالیٰ فاسعوا الی ذکر الله لیس علی اطلاقه اتفاقا بین الامة اذ لا یجوز اقامتها فی البراری اجماعاً ولا فی کل قریة الخ.
(فتح القدیر ص ۲۳ جلد ۲ باب الجمعة)

﴿۳﴾ قال ابن الهمام: ومجرد نیة الاقامة لاتتم علة فی ثبوت حکم الاقامة کما فی المفازة.
(فتح القدیر ص ۱۱ جلد ۲ باب صلاة المسافر)

الجواب: واضحه دي وى چه د عام اجازت شرط د عدمِ تفويت په مصلحت
باندي مبنى دي،
كما يشير اليه كلام العلامة الشامى فى ردالمحتار ص ٧٦٢ جلد ١ حيث قال لان
اشتراط السلطان للتحرز عن تفويتهما على الناس وذا لا يحصل الا باذن العام﴿١﴾،
پس هركله چه مفتى به قول د تعدد دجوازدي نود اذنِ عام د اشتراط وجه
باقى پاتې نه شوه، اوپه جيل كښې دجمعې دممانعت علَامت ختم شو. فافهم
وهوالموفق

## په صحرا او بيابان كښې جُمعه او اخترونه
## په هيڅ صورت كښې هم صحيح نه دي

سوال: علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه پاكستانى فوجيان په
اكثرو حالاتو كښې مقيم نه وى كه چرته اقامت هم كوى نو د خانه بدوشو
پشان خيمې ښخې كړې او څو ورځې يو ځائې كښې كار كوى او څو ورځې
پس بل ځائې ته منتقل شى. بهر حال په هغوى باندې د جُمعې او اخترونو
مونځو نه فرض واجب دى يا نه؟ مونږ فوجيان په شاهراه ريشم گلگت باندې
كار كوو. آيا مونږ جُمعې او اخترونه ادا كولې شو؟ بينوا توجروا

المستفتى: امين الرحمان.......... ۱۹۷۳ء

الجواب: كه مسافر چرته د جمعې يا اخترونو مونځ اوكړى نو د پكښې څه
گناه نشته ﴿۲﴾ ليكن كه په بيابان او صحرا كښې په زرګونو خيمې لګولې
شوې وى خو د جُمعې او اخترونو مونځ كول صحيح نه دى.
صرح به ابن الهمام فى شرح الهداية﴿۳﴾ ويدل عليه ان النبى ﷺ صلى الظهر فى

﴿١﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٦٠١ جلد ١ مطلب فى شروط الجمعة باب الجمعة)

﴿٢﴾ قال العلامة مرغينانى: ويجوز للمسافر والمريض ان يؤم فى الجمعة وقال زفر لا يجزئه لانه لا فرض عليه فاشبه الصبى والمرأة ولنا ان هذه رخصة فاذا حضروا يقع فرضا على ما بيناه. (هداية على صدر فتح القدير ص ٣٣ جلد ٢ باب صلاة الجمعة)

﴿٣﴾ قال العلامه ابن الهمام: ولا جمعة بعرفات فى قولهم جميعا لانها فضاء. (فتح القدير ص ٢٥ جلد ٢ باب صلاة الجمعة)



عرفات وكان يوم الجمعة ﴿١﴾. وهو الموفق

## په مستقل كيمپ كښې د مسلمان حاكم په اجازت سره جُمعه قائمول

سوال: علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه دننه دوه كاله
مخكښې محكمه آئل اينډ ګيس كارپوريشن، د ډكهنې، په مقام باندې تيل
او ګيس د تلاش دپاره تجرباتى كوهى كنستل شروع كړې. وو اوس دويم
كوهى كنستلې كيږي، مخكښې مونږ په عارضى كيمپ كښې اوسيدلو
اوس د كاميابئ نه پس مو په دغه كيمپ كښې رهائش مستقل شوې دې، په
كيمپ كښې ښائسته اوكهلاؤ جمات هم جوړكړې شوې دې او مونږ درې
سوه كسان په هغې كښې موجود يو، حال دا چه (جهنډ) نومې كلې لس كلو
ميټره لرې دې هركله چه اوس په دې كيمپونو كښې جمعه جارى ده نوآيا
مونږهم جُمعه جارى كولې شو؟ بينوا توجروا

المستفتى: حافظ عبد الرحمان اوجى ډى سى جهنډ پنډى ګهيپ ۱۹۸۴ء۱۰۱۹۱

الجواب: دمسلمان حاكم په آرډر او اجازت سره په دې پوخ كيمپ كښې
دجمعې مونځ كول جائزدى اوبغير اجازته هيڅ قسم كيمپ كښې دجمعې
مونځ قائمول جائزنه دى. (ماخوذ از رد المختار ص۷۴۹ جلد۱) وهوالموفق

## د جمعې د مونځ د پاره اذن عام اود بادشاه شرط كيدل مقاصد نه دى

سوال: څه فرمائى علماء ددين دې مسئلې باره كښې چه د جمعې د مونځ او

﴿١﴾ قال العلامة اخليل احمد السهارنفورى: وقد ثبت برواية مسلم ان رسول الله ﷺ لما وقف بعرفات فى حجة الوداع يوم الجمعة لم يصل الجمعة فيها بل صلى فيها الظهر. (بذل المجهود فى حل ابى داؤد ص ١٧٠ جلد٢ باب الجمعة)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: وحاصله انه لا تصح اقامتها الالمن اذن له بواسطة او بدونها. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ٥٩٢ جلد ١ باب الجمعة)

اخترونو صحیح کیدو دپاره اذن عام او بادشاه شرط دي یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدرحمت الله حقانی تنګی نصرت زی........ ۱۹۷۷ء/۸/۱۰

**الجواب:** بادشاه او اذنِ عام پخپله مقاصدنه دی. دهغوی اشتراط (شرط کیدل) د تفویت نه د بچاؤ دپاره دی.

کمایشیر الیه ما فی ردالمحتار ص ۵۴۶ جلد ۱ لان اشتراط السلطان للتحرز عن تفویتها علی الناس (ای بالنزاع فی التقدم) وذا (ای التحرز عنه) لا یحصل الا باذن العام انتهیٰ، او دتفویت خطره د تعدد دعدمِ جواز په تقدیر سره وی دجواز په تقدیر سره نه وی کوم چه ظاهر المذهب دې،

ویشیر الیه ایضا ما فی ردالمحتار: قلت وینبغی ان یکون محل النزاع (فی قصره ومصره) ما اذا کانت لا تقام الا فی محل واحد اما لو تعددت فلا لانه لا یتحقق الفوات کما فی افادة التعلیل تامل ﴿۱﴾ انتهیٰ. هذا ما عندی ولعل عند غیری احسن منه﴿۲﴾. وهوالموفق

## د جمعې د اقامت د پاره ښار جماعت او خطبه وغیره ضروری دي.

**سوال:** علمائې دین او محدثین ومدرسین د دارالعلوم حقانیه دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه زمونږ په علاقه دیر کښې یو عالم وائی چه (۱) د جُمعې

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۶۰۱ جلد ۱ مطلب فی شروط وجوب الجمعة باب الجمعة)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: وقلت قید الوالی قید لبیان ما هو الواقع غالباً ولیس قیدا احتراز یا بدلیل ان الله تعالیٰ اطلق المصر والمدینة علی المقامات اللتی فی ایدی الکفار ولان المهاجرین الاولین جمعوا فی المدینة المنورة قبل هجرة النبی ﷺ ولم یکن ثم وال ولما فی المبسوط لو الولاة فی بلاد الکفار کانوا کفاراً یجوز للمسلمین اقامة الجمعة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۴۷ جلد ۳ باب ماجاء منکم یؤتی الی الجمعة)



په ورځ په ظهر کښې د څلورو اثبات په خیرالقرون ثلثه کښې نشته بلکه په ظهر کښې رکعتین د حدیث قولی او فعلی نه ثابت دي. لهذا څلور رکعته د قیاس نه پس غیر معتبر دی ځکه چه دا د نص قطعی او حدیث قولی او فعلی سره معارض دي،

وهرچه این حدیث دارقطنی ست، ومن ادرک رکعة من الجمعة فلیصل الیها اخری ومن فاتته رکعتان فلیصل اربعا او قال الظهر رواه دارقطنی، این قول حدیث نیست بلکه قول دارقطنی وفقهاء است چراکه امام جامع ترمذی این راقول فقهاء گفته است بایں طریقه که وقالوا من ادرک رکعة من الجمعة. (۲) نیز میگوید که نماز جمعه به همه مسلمانان مرد باشد یا زن، عبد باشد یا حر، مریض باشد یا صحیح، مسجد باشد یا بیرون مسجد صحرا وغیره، مصر باشد یا غیر مصر، بوجه تعمیم نص قرآنی رکعتین فرض است، وهرچه دراحادیث استثناء امده است چنانچه دریں حدیث، وعن طارق ابن شهاب قال قال رسول الله ﷺ الجمعة حق واجب علی کل مسلم فی جماعة الا علی اربعة عبد مملوک، اور عورت، صبی اور مریض رواه ابو داؤد دریں حدیث ذکر جمعه مع جماعت درحق غیر معذورین ونفی درحق معذورین ثابت ومنقول است چراکه الا استثنائیه قید را متوجه میشود که جماعت است نه مقید را که حد سواه جمعه است، مثل این قول نحاة جاء نی القوم راکبین الا زیداً لهذا بوجه حدیث بالا از معذورین مذکور جماعت که سنت مؤکده است ساقط میشود نه صلاة جمعه که اصلی مکتوبه است چراکه دراسقاط مکتوبات مطلقا خواه جمعه باشد یا دیگر مکتوبات نقل ثابت از نبی علیه السلام وصحابه کرام منقول نیست واسقاط جماعت بوجه اعذار شرعیه از نبی علیه السلام وصحابه کرام منقول است، واما هذا القول: لا جمعة ولا تشریق ولا فطر ولا اضحی الا فی مصر جامع مقوله فقهاء است نه که حدیث صحیحه به سند منقوله است، چراکه نووی شارح مسلم این راضعیف گفته است۔ فقط

المستفتی: مولوی شفیع الله مقام واړی ضلع دیر بالاه........ ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** دا سړې څه باقاعده عالم نه معلومیږی په دې وجه دجواب وړکولو لائق نه دې البته د تپوس کونکی د زړه د پاره مختصراً څه لیکلې کیدې شي، (۱) ددې سړی داخبره چه په خیرالقرون کښې د جُمعې په ورځ د څلورو

رکعتونو کول ثابت نه دي، ددینه دده نه تلاش ناقص معلومیږي. امام بخاری په خپل سند سره دا روایت کړي دي،

**قال عمر قد عرفنا ذلک الیوم والمکان الذی نزلت فیه، الیوم اکملت لکم دینکم الایة، علی النبی ﷺ هو قائم بعرفة یوم الجمعة**﴿۱﴾ ص ۱۱ جلد ۱،

ددینه معلومه شوه چه په حجة الوداع کښې یوم الجمعة د عرفې ورځ وه، او په دریم روایت کښې دی چه پیغمبر علیه السلام په دغه ورځ دظهر مونځ کړې وو.

**لما رواه مسلم ثم اذن بلال ثم اقام فصلی الظهر ثم اقام فصلی العصر**﴿۲﴾ مشکواة ص ۲۲۳،

او دظهر او جمعې مونځونه جدا جدا دي، او په دې روایت کښې تصریح کړې شویده. چه د اذان نه پس اقامت شوې دې نو که دا جمعه وه ضرور به خطبه وئیلې کیده. (۲) دغه شان دا حدیث مرفوع دې،

**من فاته الرکعتان فلیصل اربعا او قال الظهر**﴿۳﴾

او دا دامام شافعی رحمة الله علیه امام مالک رحمة الله علیه او امام محمد رحمة الله علیه مستدل دې، او دارقطنی دا په ډیرو سندونو سره نقل کړې دې، ددې نه انکار کول هسې ځان لوئې ګڼړل دي، پیشکه چه ددې په سندونو کښې څه ناڅه ضعف شته لیکن دحدیث کیدلونه انکار د منلونه دې، (۳) د قرآن په نص سره کم نه کم د څلورو کسانو دجماعت ضروری کیدل معلوم دی. الله تعالی فرمائی (فَاسعَوا) چه د جمعې صیغه ده او کم نه کم درې کسان غواړی او (اِلیٰ ذِکرِالله) د ذکر او خطیب په وجود باندې دلالت کوی. او په دې حدیث کښې که نفی د قید طرفته متوجه شی، نو لازمیږي، چه په (صَبی او نابالغه باندې هم د جُمعې مونځ واجب او فرض شی حال دا چه دصحیح حدیث په بنیاد باندې هغه مرفوع القلم دې.

(۴) لا جمعة ولا تشریق، مرفوعاً او موقوفاً دواړه منقول دی. ﴿٤﴾ او موقوف اصح دې لیکن په حقیقت هغه هم مرفوع دې ځکه چه دا حکم په عقل

---

﴿۱﴾ (الصحیح البخاری ص ۱۱ جلد ۱ باب زیادة الایمان ونقصانه کتاب الایمان)

﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۲۲۵ جلد ۱ باب قصة حجة الوداع)

﴿۳﴾ (مشکواة المصابیح ص ۱۲۴ جلد ۱ باب الخطبة والصلوٰة الفصل الثالث)

﴿۴﴾ (هدایة مع فتح القدیر ص ۲۲ جلد ۲ باب الجمعة)



سره نه معلومیږي. ﴿۱﴾ (۵) دغه شان د څوارلسمې صدۍ دوهابی او غیر مقلد قول د خیرالقرون د صحابی د قول په مقابله کښې اخستل نه عقل منی او نه د علم تقاضا ده، فقط

## د شرعی ښار په باره کښې د حضرت مفتی صاحب په فتوٰی باندې اعتراض اود هغې تفصیلی جواب

**سوال:** یو کلې چه لاندینو کوائفو باندې مشتمل وي، آیا هغه شرعی ښار دې یا نه؟ (۱) آبادی چه ئې غټ واړه تقریباً درې زره وی. (۲) ګورنمنټ هائی سکول د پوره عملې سره تقریباً دوه سوه کسان. (۳) انټر میډیټ کالج (۴) دیهی مربوطی سنټر (۵) منصوبه آبنوشي، چه د هغې کار کونکی هر وخت موجود وی. (۶) ډاک خانه (۷) دلارو اډو (۸) د علاج معالجې د پاره یو ډاکټر او ورسره دوکان. (۹) په غیر منظم شکل کښې څومره دکانونه دې که راجمع شی نو یو ورکوټې بازار به ترینه جوړ شی. (۱۰) د آرې مشین پکښې شته. (۱۲) دوه د وړو مشینان (۱۳) د جینکو مډل سکول. (۱۴) یو بی ایل (بینک سره د عملې نه موجود دې (۱۵) دقیام امن دپاره پولیس چوکۍ هم موجود ده. آیا دا مصرشرعی دې؟ آیا دلته دجُمعې مونځ کیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا شیر خان غزنی خیل لکی مروت

---

﴿۱﴾ فی المنهاج: او نقول حدیث جوائی معارض بالاقویٰ لان احادیث المنع محرمة، ولان حدیث الانتیاب وحدیث لا جمعة الا فی مصر جامع ذکر فیهما تشریع عام وضابط کلی بخلاف حدیث جوائی فانه ذکر فیه امر جزء ی، ولان حدیث جوائی حدیث تقریری حکماً وحدیث لا جمعة الا فی مصر جامع حدیث قولی حکماً، فان قال المجوزون حدیث علی موقوف، وحدیث جوائی مرفوع قلنا حاشا وکلا فانه لیس فیه قول الرسول ولا فعله ولا تقریره فان قالوا حدیث جوائی حدیث مرفوع تقریری علی حسب القواعد، قلنا حدیث علی مرفوع قولی علی حسب القواعد کما مر.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۵۲ جلد ۳ باب ماجاء منکم یوتی الی الجمعة)

الجواب: د صدق او ثبوت په شرط سره دا مقام شرعی ښار دي لهٰذا دیکښې د جُمعې مونځ او اخترونه مونځ کول صحیح دی

یدل علیه ما فی القهستانی وتقع فرضا فی القصبات والقریٰ الکبیرة التی فیها اسواق (ماخوذ از ردالمحتار ص ۷۴۸ جلد ۱) قلت والحوانیت المتفرقة الکثیرة التی یباع فیها کل ما یحتاج الیه اهل البلد ومن حوله قائمة مقام الاسواق معنی، فافهم، فان حقیقة المصر امر وجدانی والتعریفات المرویة رسوم﴿۱﴾. وهوالموفق

محمدفرید عفی عنه

**دحضرت مولانافضل احمدصاحب صدرمدرس دارالعلوم اسلامیه لکی مروت جواب**

سائل چه د کوم ځائي دپاره د جُمعې د مونځ د فرضیت استفتاء کړې هغه شرعاً ښار نه دې، او حضرت مفتی محمد فرید، چه کوم عبارت نقل کړې دې د هغې نه هم عدم جواز معلومیږي، ځکه چه هغه ځائې کښې اسواق یعنی بازارونه نشته دې، متفرق دکانونه ته د بازارونو حکم ورکول د مفتی صاحب خپله رائې ده د یو کتاب حکم نه دې لهذا په داسې مقام کښې د ظهر فرض مونځ پریخودل بالکل صحیح نه دي، والله اعلم،

فضل احمد غفرله

صدر مدرس دارالعلوم

اسلامیه لکی مروت

الظاهران الجواب الثانی صحیح

غلام نبی عفی عنه

۱۱۸۱ء۱۹۷۲

---

**په تعریف د ښار کښې د فقهاؤ اختلاف**

﴿۱﴾ دجُمعې د صحیح کیدلو د پاره د احنافو په نزد یو شرط دې (ښار کیدل) او لوئې کلې هم د ښار په حکم کښې داخل دې لیکن د مصر (ښار) یو خاص تعریف او حد مقرر نه دې، بلکه دا یو عرفی حقیقت دې، چه د زمانې او حالاتو په [باقی حاشیه په راروانه صفحه]



**د دارالافتاء جامعه حقانیه د طرفنه**

**د حضرت مولانا فضل احمد صاحب په جواب باندې اعتراض**

بسم الله الرحمان الرحیم

دا خبره خو په حنفی مذهب کښې مصرح او متفق علیه ده چه د جمعې په شرائطو کښې یو ښار دې او دا هم منلې شوې ده، چه ټولو فتاوٍو، قصبات او لوئې کلې د ښار په حکم کښې شمار کړې دي، اوس دا چه د ښار قصبه اود لوئې کلې حقیقت څه دې؟ دا علامه شامی په صفحه ۷۴۸ باندې د تحفه په حوالې سره پخپله د صاحب مذهب یعنی امام ابو حنیفه رحمه الله نه داسې نقل کړې دي، (عن ابی حنیفه انه بلدة کبیرة فیها سکك واسواق..الخ) د نوروفقهاؤ نه چه کوم تعریفونه منقول دی ظاهر ده چه هغه د ښار علامات دی اودامام صاحب نه دا روایت شوې تعریف بنیادی حیثیت لرې، په دې باندې د غور کولو نه معلومیږي. چه په اصل کښې د ښار حقیقت په عرف باندې مبنی دی چه په هغې کښې د کوڅو او بازارونو څه تشریح او تحدید نشته، فتاوٰی دارالعلوم دیوبند ص ۵۱ جلد ۵ هم دا نکته مخې ته کړې او فرمائیلې ئې دي، چه ددې مدار په عُرف باندې دې او

---

[بقیه حاشیه] اعتبار سره بدلیږی رابدلیږی. په دې وجه فقهائې احناف د خپلو خپلو زمانو په اعتبار سره د ښار کیدلو علامات او امارات بیان کړې دي، علامه کاسانی فرمائی.

اما المصر الجامع فقد اختلف الاقاویل فی تحدیده، ذکر الکرخی ان المصر الجامع ما اقیمت فیه الحدود ونفذت فیه الاحکام وعن ابی یوسف روایات ذکر فی الاملاء کل مصر فیه منبر وقاض ینفذ الاحکام ویقیم الحدود فهو مصر جامع تجب علی اهله الجمعة وفی روایة قال اذا اجتمع فی قریة من لا یسعهم مسجد واحد بنی لهم الامام جامعاً ونصب لهم من یصلی بهم الجمعة، وفی روایة لو کان فی القریة عشرة آلاف او اکثر امرتهم باقامة الجمعة فیها، قال بعض اصحابنا المصر الجامع ما یتعیش فیه کل محترف بحرفته من سنة الیٰ سنة من غیر ان یحتاج الی الانتقال الی حرفة اخری، وعن ابی عبد الله البلخی انه قال احسن ماقیل فیه اذا کانوا بحال لو اجتمعوا فی اکبر مساجد هم لم یسعهم ذلک حتی احتاجوا الی بناء مسجد الجمعة فهذا مصر تقام فیه الجمعة، وقال سفیان الثوری المصر الجامع ما یعده الناس مصراً عند ذکر الامصار المطلقة، وسئل ابوالقاسم الصفار عن حد المصر الذی...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

یو کربنه پس په دغه صفحه اهل عرف د قریه صغیره او کبیره فرق پیژنی. بیا هم د امدغی په ص ۵۴ جلد ۵ باندې داسې مصرح ده، چه په عُرف کښې چه کوم ځائې قریه کبیره او ګڼړی هغه قریه کبیره ده او چه کومه قریه صغیره او ګڼړی هغه به قریه صغره وی.

سائل چه د مستفسره مقام کوم کیفیات بیان کړې دي، په هغې کښې اولنې کیفیت د فتاویٰ دارالعلوم د یوبند ددې نکته نظر سره سمې خورې، دغه شان د سائل د اولنی کیفیت نه ددې قریه کبیره کیدل معلومیږی چه د هغې آبادی تقریباً درې زره پورې ښودلې شوې ده، او کومه بستی چې ددې مقدار په آبادئ باندې مشتمل وی اکابرو دغې ته د قریه کبیره حکم ورکړې دي، دفتاویٰ دارالعلوم دیوبند په ص ۶۲ جلد ۵ باندې دا عبارت اوګورئ، (پس مذکوره قریه په ظاهر سره قریه کبیره ده، چه د هغې آبادې درې زره پورې نزدې ده، لهٰذا جُمعه کول په دې کښې واجب دي، دا صحیح ده هم دا فتاویٰ ص ۱۲۸ جلد ۵ باندې اوګورئ نو هلته ددې نه

(بقیه حاشیه) تجوز فیه الجمعة فقال ان تکون لهم منعة لو جاء هم عدو قدروا علی دفعه، فحینئذ جاز ان یمصر، وتمصره ان ینصب فیه حاکم عدل یجری فیه حکما من الاحکام وهو ان یتقدم الیه خصمان فیحکم بینهما. (بدائع الصنائع ص ۵۸۴، ۵۸۵ جلد ۱ شرائط الجمعة)

بهرحال احنافو فقهاؤ د خپلې خپلې زمانې په اعتبار سره د مصر تعریف او تحدید کړې دې چه زمونږ په کتابونو کښې په مختلفو عبارتونو سره نقل شوې دې، ددغې متداول اقوالونه علاوه نورهم ډیراقوال دي، (کما فی البرجندی شرح مختصر الوقایه والدرالمختار) او علامه کاسانی رحمه الله چه د امام ابوحنیفه رحمه الله نه کوم تعریف نقل کړې دې داسې ئې ذکر کړې،

وروی عن ابی حنیفة انه بلدة کبیرة فیها سکک واسواق ولها رساتیق وفیها وال یقدر علی انصاف المظلوم من الظالم بحکمه وعلمه او علم غیره والناس یرجعون الیه فی الحوادث وهو الاصح (بدائع الصنائع ایضا)

او په امدادالفتاح کښې دی وهذا هوالاصح کذا فی التتارخانیة (امدادالفتاح ص ۵۶۲)

او په طحطاوی کښې دي،

شرح به فی التحفة عنه (ابی حنیفة) ورواه الحسن عنه فی کتاب الصلاة کذا فی غایة البیان وبه اخذ ابو یوسف وهو ظاهر ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



کم مقدار آبادئ کښې د جُمعې د وجوب صراحت کړې شوې دې، یعنی په کومه قریه کښې چه د جُمعې حکم صادر کړې شوې دې هغه د دوه زره اته سوه آبادئ والا قریه ده، او شپاړس دکانونه دی پکښې.

ددې فتاویٰ په ص ۵۲ جلد ۵ باندې دي، دې که دواړه کلی په عُرف کښې یو وی او هم یو ګڼړلې کیږي، او ټوله آبادې د دواړو کلو دوه زره کسان دي، او هغه لویه قریه ګڼړی کیږی نو جمعه هلته صحیح ده، دې فتاویٰ کښې ص ۵۸ کښې اوګورئ نو هلته په دغه قریه کښې د جُمعې دمونځ صحیح کیدلو حکم ورکړې شوې دې، چه په هغې کښې صرف درې دکانونه دی او د آبادې اندازه دوه زره ده،

واقعه داده چه نا قد محترم د آبادئ د تعداد سره اختلاف نه دې کړې او نه ددینه چه د مصریت مدار په عُرف باندې دې بلکه د مفتی صاحب د سوق، د تعبیر سره ئې اختلاف کړې دې، او د مختلفو دکانونونه په اسواق سره تعبیر کول ئې د حضرت مفتی صاحب ذاتی رائې ګرځولې، بهرحال دهغه دا دعویٰ د نظرمحل ده، ځکه چه داسواق دا تشریح چه حضرت مفتی صاحب

(بقیه حاشیه) المذهب کما فی الهدایة واختاره الکرخی والقدوری وفی العنایة هو ظاهر الروایة وعلیه اکثر الفقهاء (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص ۲ ۵۱)

او علامه سید احمد الطحطاوی په دغه صفحه کښې فرمائي،،

ولما کان حد المصر مختلفا فیه علی اقوال کثیرة الفصل فی ذلک ان مکة والمدینة مصر ان تقام بهما الجمعة من زمنه صلی الله علیه وسلم الی الیوم فکل موضع کان مثل احدهما فهو مصر وکل تفسیر لا یصدق علی احدهما فهو غیر معتبر کقولهم هو ما لا یسع اهله اکبر مساجده او ما یعیش فیه کل محترف بحرفته او یوجد فیه کل محترف وغیر ذلک انتهیٰ.

نو معلومیږی چه ښاریا لویه آبادی وی چرته چه د ضروریاتو سره متعلق ځیزونه ملاویږی. پس کومه لویه آبادئ کښې چه څو دکانونه وی او دښار والو د حاجتونو د پاره کفایت کوی نو د اصل غرض په بناء باندې به د بازارونو قائم مقام وي، دغه شان په دې تعریف کښې قید د والی هم د بیان د پاره معلومیږی نه دا چه د احتراز د پاره ځکه چه الله تعالیٰ په هغه علاقه باندې هم د مصر او مدینه اطلاق کړې کومې د کافرانو په قبضه کښې وې، اودغه شان مهاجرین اولین چه په مدینه منوره کښې جمع شوې وو او پیغمبر علیه السلام تر اوسه تشریف نه وړې نو والی موجود نه وو او هغوی..... [باقی حاشیه په راروانه صفحه]

ځکه چه داسې ډیر خلق په جمعه ورځ بازارونو ته ځي، معلومیږي. (فتاویٰ دارالعلوم دیوبند ص ۱۲۸ جلد ۱۵ نه معلومیږي. ځکه چه

کړې ده. فتاویٰ دارالعلوم دیوبند ص ۱۲۸ جلد ۱۵ نه معلومیږي. ځکه چه
کړې ده، فتاویٰ دارالعلوم دیوبند په سوال کښې دا
په کومه قریه کښې د جمعې د وجوب حکم د ې دهغې په سوال کښې دا
صراحت موجود دې چه شپاړس دکانونه خو دي لیکن د بازار په شکل کښې
نه دي او دجواب په عبارت سره هم داخبره نوره هم واضحه کیږي اګرچه په
مذکور ځائې کښې بازارنه دي مګرد آبادئ په اعتبارسره داملحق بالقصبه
کولې شو.

که په بل زاویه نظرسره اوګورې نودمصریت روح خو د ضروریاتو
فراهمی ده د بازارونو تنظیم نه دې. لکه په امداد الفتاویٰ ص ۴۱۹ جلد ۱

جمعه کړې وه. دغه شان د علامه طحطاوی د فیصلې مطابق د مدینې منورې د نقشې
نه واضحه کیږی چه په ښار کښې د کوڅو یو ځائې والې او دکورونو یو ځائې والې هم
لازمی نه دی ځکه چه علامه ابن حزم په محلی کښې لیکلې دی.

**ان النبی ﷺ اتی المدینة وهی قریٰ صغار متفرقة،**

چونکه مدینه علم شخص دې لهذا ددې عبارت نه دا مطلب نه دې چه مدینه په څو بانډو
باندې مشتمل دیوې وادئ نوم دې، بلکه د وړو وړو جدا کلونه مراد کورونه محلې او
جدا جدا منزلونه دی اوهم دا تفصیل زمونږ شیخ او مربی حضرت مفتی صاحب دامت بر
کاتهم په منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی، کښې داسې ذکرکړې.

**قلت الحوانیت المتعددة اللتی تکفی لحوائج اهل هذه البلدة واهل الرساتیق المتعلقة بها تقوم مقام الاسواق فی اصل الغرض وقلت ایضا قید الوالی قید لبیان ما هو الواقع غالبا ولیس قید احترازیا بدلیل ان الله تعالیٰ اطلق المصر والمدینة علی المقامات التی فی ایدی الکفار ولان المهاجرین الاولین جمعوا فی المدینة المنورة قبل هجرة النبی ﷺ ولم یکن ثم وال، ولما فی المبسوط لو الولاة فی (بلاد الکفار) کانوا کفاراً یجوز للمسلمین اقامة الجمعة، وقلت ایضا ان المصر لا یلزم فیها اتصال السکک والدور لما ذکره ابن حزم فی المحلی ان النبی ﷺ اتی المدینة وهی قریٰ صغار متفرقة انتهیٰ، قلت لا بد من ان یراد من القریٰ فی کلام ابن حزم خلاف زعمه الدور والمحلات والمنازل المنفصلة ولا یصح ما زعم ابن حزم ان المدینة المنورة کانت اسما للوادی المشتمل علی القریٰ لانه یاباه تسمیتها ......**

**(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)**



باندې دیو سوال په جواب کښې دا حقیقت واضح کړې شوې دی چه خلاصه
داده چه اسواق د مقام په قرینې سره اسم جنس دې چه واحد ته هم شامل
دې، او د سوق د شرط ګرځولو حاصل دادې چه د هر وخت په ضروری
حاجاتو کښې د هغې ځائې اوسیدونکې بل ښار ته محتاج نه وی. نو ددې
عرض په حاصلولو کښې اتصال او انفصال برابر دې، بیا ئې د بحرالعلوم د
والد صاحب رحمه الله قول ددې په تائید کښې نقل کړی دې عربی عبارت دادې:

**حیث قال وکان مطلع الاسرار ابی قدس سره یفتی بان المصر موضع یندفع حاجة الانسان الضروریة من الاکل بان یکون هناک من یبیع طعاما والکسوة الضروریة وان یکون هناک اهل حرف یحتاج الیهم کثیرا"**

ددې عبارت نه صفا معلومیږی چه د مصر د پاره اسواق علی وجه
الانتظام ضروری نه دي، هذا ما عندی والله اعلم بالصواب

عبدالحلیم غفرله کلاچوی خادم دارالافتاء جامعه حقانیه

داتفصیل درست دې

**محمد فرید غفرله**

---

**(بقیه حاشیه) بالمدینة علم شخص. فافهم**

**(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۴۷، ۴۸ جلد ۳ باب ماجاء منکم یوتی الی الجمعة)**

نوبس حقیقت دادې چه مصر د هغې اصطلاحاتو نه دې چه دهغې مدار په عرف باندې دې.
اودا واضحه خبره ده چه د زمانې د بدلون سره په دغه علاماتو کښې تبدیلی راځي. په دې
وجه چه څومره تعریفونه دي، ټول د خپلې خپلې زمانې په اعتبارسره دې. اوپه دې وجه
مولانامفتی محمد ظفیرالدین صاحب د فتاویٰ دارالعلوم دیوبند مرتب لیکلې دي. فقهاؤ
د مردم شمارئ هیڅ تعداد نه دې بیان کړې بلکه صرف دائې خودلی دی چه ښار یا لویه
آبادی وی چه هلته د ضروریاتو متعلق څیزونه ملاویږی د آبادئ اندازه روسته لګولې شوې
ده، صرف د آبادئ اندازه ئې درې خلور زره لیکلې ده. لکه څنګه چه ددې نه په مخکښې
جواب کښې موجود ده، اوچه شهریت هم وی نو دغه وخت کښې آبادی دولس دیارلس سوه
هم کافی ده. (هامش فتاویٰ دارالعلوم دیوبند ص ۱۲۲ جلد ۵) او شاه اشرف علی تهانوی رحمه الله
په امداد الفتاویٰ جلدا ص ۴۱۵ کښې فرمائي:............ [باقی حاشیه په راروانه صفحه]

### د ښار نه څلورسوه میله لرې تجارتی منډئ کښې جُمعه کول.

**سوال:** شیخ الحدیث حضرت مولانا عبدالحق صاحب مدظله دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک دالسلام علیکم نه پس عرض دادې چه د ښار نه څلور نیم سوه میله لرې یو ځائې دې چه د هغې کښې مختلفو خلقو په مشترکه طور باندې د لږګو د تجارت د پاره یو ځائې اخستې او منډئ ئې جوړه کړې او په دې منډې کښې څلور پنځه سوه خلق د تجارت کاروبار کوي، او ځو دکانونه هم دي، یعنی اوو اته هوټلونه دي، اوددې منډئې خواته وړې وړې بانډې دي، اخترونو کښې داخلق خپلو کورونو ته ځي، او د منډئ د حفاظت دپاره څه نوکران پاتې شی اوپه منډئ کښې اکثر کار کُولو والا مسافران وي، په منډئ کښې یو ورکوټې شان جمات هم دې نوپه دې ځائې کښې جُمعه جائزده یانه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد نظیف وزیرستان

**الجواب:** دا مقام شرعی ښار نه دې لهذا دلته جُمعه کول د احنافو په نزد جائز نه دي، د شرعی ښار د پاره د ځو محلو او ځو بازارونو وجود ضروری دې او دا هم ضروری دی چه دغې متعلق بانډو والا د خپلو ضروریاتو د پاره دې ځائې ته مراجعت کوی.

**یدل علیه ماروی عن ابی حنیفة انه بلدة کبیرة فیها سکک واسواق ولهارساتیق الخ (شامی ص ۷۴۸ جلد ۱)**﴿۱﴾. وهوالموفق

کتبه: محمد فرید عفی عنه

[بقیه حاشیه] پخپله د صاحب مذهب نه د ښار د اتعریف منقول دې. (انه بلدة کبیرة..الخ) او ځومره تعریفونه چه فقهاؤ کړې دی د ټولو مرجع او مال هم دادې دا ټول د یو معنون مختلف عنوانات دي، او ددې نه زیات جامع مانع تعریف چه په هغې سره تحدید تام اوشی په امور غیر مقدره فی النص کښې پخپله د امام صاحب د مسلک خلاف دې، (لانه زیاده فی الدین) باقی پاتې شو دا درفع نزاع ضرورت نو پشان د نورو غیرمقدره په هغې کښې هم د تردد په وخت کښې د مبتلی به رائې اغلب او د تعارض آراء په وخت کښې به د عدول ثقات قول معتمداو معتبر وي، او چا ته چه نزاع مقصود وی دهغه دپاره جامع مانع تعریف هم کافی نه دې، وهوالموفق (از مرتب)

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۹۰ جلد ۱ باب الجمعة)



### په قریه صغیره کښې جُمعه صحیح نه ده لهٰذا په هغې کښې احتیاطی مونځ کول بې احتیاطی ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه زمونږ د کلی آبادی په پنځوس خاندانو باندې مشتمله ده د کریانې ځو محدود دکانونه هم دي، په دیکښې د جُمعې څه حکم دې؟ ورسره د څلور رکعتو احتیاطی څه حکم دې؟ دغه شان د بعضې امامانو په نزد په قرٰی کښې جمعه ثابت ده زمونږ دلیل څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی همشیرخان زروبی مردان. ۱۴جمادی الثاني ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** په دې ځائې کښې نماز ظهر با جماعت کول ضروری دي، او د جمعې مونځ کولو سره احتیاطی مونځ کول بې احتیاطی ده.

**لعدم صحة الجمعة فی القرٰی لحدیث عبد الرزاق لا جمعة ولا تشریق...... الا فی مصر جامع روی مرفوعا وموقوفا وهو الاصح لکنه فی حکم المرفوع صرح به ابن الهمام﴿۱﴾ ولحدیث تناوب اهل القرٰی (رواه البخاری وغیره) ولحدیث عدم اقامة الجمعة فی قباء عند الهجرة، واماحدیث جوائی فلیس فیه قول رسول الله ﷺ ولا فعله ولا تقریره ولو سلم التقریر فلفظ القریةیطلق علی المصر ایضا کما فی قوله تعالیٰ: علی رجل من القریتین عظیم، وقوله تعالیٰ، واسئل القریة، فالمراد ههنا المعنی الشامل للحصر لان لا یعارض بحدیث لا جمعة ولا تشریق الحدیث، ولو سلم ان المراد ههنا مقابل المصر فیرجح**

﴿۱﴾ قال العلامة ابن الهمام: (قوله لقوله ﷺ لا جمعة) رفعه المصنف وانما رواه ابن ابی شیبة موقوفا علی علی رضی الله عنه لا جمعة ولا تشریق ولا صلاة فطر ولا اضحی الا فی مصر جامع او فی مدینة عظیمة صححه ابن حزمورواه عبد الرزاق من حدیث عبد الرحمن السلمی عن علی رضی الله عنه قال لا تشریق ولا جمعةالا فی مصر جامع وکفی بقول علی رضی الله عنهما قدوة.

(فتح القدیر ص ۲۲ جلد۲ باب صلاة الجمعة)

حدیثنا لانه تشریع عام وقول محرم بخلاف حدیث جوائا ﴿۱﴾. وهو الموفق

## په درې سوه افرادو باندې مشتمله آبادی قریه صغیره ده.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د کوم ځائې آبادی په درې سوه افرادو باندې مشتمله وی او د ا ځائې د یو ښار (هنګو) نه شل میله او د بل ښار (زرګری بازار) نه اته میله لرې دې.د ضروریاتو نه هم محرومه دې په دې ځائې کښې د جُمعې دمونځ څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: سراج الاسلام جامع مسجد کوچی بازار پشاور ۹۱۱۱۱۱۹۸۳

**الجواب:** دا مقام قریه صغیره ده په دېکښې جُمعه صحیح نه ده او د ظهر مونځ جماعت اداکول ضروری دی:

**کما فی الهندیه ومن لاتجب علیهم الجمعة من اهل القریٰ والبوادی لهم ان یصلوا الظهر بجماعة یوم الجمعة باذان واقامة ﴿۲﴾. وهو الموفق**

## په متعددو قرٰی باندې مشتمله علاقه شرعی ښار نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه آیا د احنافو په نزد داسې ځائې کښې جمعه جائز ده کوم ځائ چه په دیرشو کورونو باندې مشتمل کلې وی او ګیر چاپیره ترې متعدده آبادی وی چه تر سلو کورونو پورې رسې؟ بینوا توجرو

المستفتی: محمد خطاب دربند ضلع هزاره

**الجواب:** دا مقام شرعی ښار نه دې، لهذا دلته د جمعې مونځ کول صحیح نه دی. ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (منهاج السنن شرح جامع السنن ص۴۸ جلد۳ باب ماجاء منکم یوتی الی الجمعة)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ص۱۴۵ جلد۱ الباب السادس عشر فی صلاة الجمعة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: ای شرط صحتها ان تؤدی فی مصر حتی لا تصح فی قریة ولا مفازة. (البحر الرائق ص۱۴۰ جلد۲ باب صلاة الجمعة)



## په تقریباً دوه زره کسانو باندې مشتمل قریه کښې د جمعې مونځ صحیح وی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې زمونږ د کلی د ټولو نه لوئې جمات کښې چه کله خلق جمع شي، نو په هغې کښې ځائی نه وی جمات ډک شي، آیا په دې کلی کښې ددې شرط پوره کیدو سره د جمعې مونځ کول جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتی:شریف محمد پلوسه کرک

**الجواب:** که دا مقام قریه کبیره وی قری متعدده نه وی نو دیکښې د جمعې مونځ کول مشروع دې، (کما ذکره الشامی من القهستانی﴿۱﴾ اود یوځائې د قریه کبیره کیدلو یا نه کیدلو دارو مدار په عرف باندې دې، په کوم ځائې کښې چه دوه زره انسانان سړی او زنانه، بالغه او نابالغه مسلمان او کافر اوسیږی نو دا ځائې به قریه کبیره وي، وهو الموفق

## په دوه زرو افرادو باندې مشتمل آبادئ کښې د جُمعې د مونځ حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې فرمائی چه د یو کلې آبادی په دوه زره افرادو باندې مشتمل ده او د ضرورت څیزونه پکښې هم ملاویږی آیا دیکښې جُمعه کول صحیح دي؟ بینواتوجرو

المستفتی: مولوی حاجی ایوب ګلګت...۸ربیع الاول ۱۴۰۱ه

**الجواب:** دا ځائې شرعی ښار دې په دیکښې د جمعې مونځ کول صحیح بلکه ضروری دي،

**لان المصر علی الصحیح موضع بلدة کبیرة فیها سکک واسواق ولها رساتیق ص۲۶۱ جلد۱ بدائع﴿۲﴾، وفی ردالمحتار ص۷۴۸ جلد۱ وعبارة القهستانی وتقع فرضا فی القصبات**

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله وفی القهستانی) تقع فرضا فی القصبات والقریٰ الکبیرة التی فیها اسواق. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۵۹۰ جلد۱ باب الجمعة)

﴿۲﴾ وقال العلامة الکاسانی رحمه الله: وروی عن ابی حنیفة انه (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

والقرئ الکبیرة اللتی فیها اسواق ﴿۱﴾ وفی فتاویٰ دارالعلوم دیوبند ص ۵۸،۵۶ جلد۵ تصریح بصحة الجمعة فی القریة اللتی یسکن فیها الفان ﴿۲﴾. وهوالموفق

## په ۱۲۰ کورو نو باندې مشتمل افغان مهاجر کیمپ کښې د جُمعې د مونځ حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د افغان مهاجر کیمپ کښې ۱۲۰ کورونه دی چه په یوه صحرا کښې واقع دې آیا په هغې کښې د جمعې مونځ صحیح دې یا نه؟ که صحیح وی نو تفصیل بیان کړې مهربانی به وې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالکریم افغان مهاجر..... ۲۱۱۱۰۱۱۹۸۴

**الجواب:** دا کیمپ نه مصر شرعی دې او نه فِنا د مصر ده نه هنګامی مصر او نه قریه کبیره ده او نه ددې متعلق د حاکم وخت حکم صادر شوې دې لهذا په دې کیمپ کښې جُمعه ناجائز ده. لانه اشغال بما ل لا یصح

---

**(بقیه حاشیه)** بلدة کبیرة فیها سکک واسواق ولها رساتیق وفیها وال یقدر علی انصاف المظلوم من الظالم بحکمه وعلمه او علم غیره والناس یرجعون الیه فی الحوادث، وهو الاصح. (بدائع الصنائع ص ۵۸۵ جلد ۱ کتاب الصلاة شرائط الجمعة)

﴿۱﴾ (ردالمحتا ر هامش الدرالمختار ص ۵۹۰ جلد ۱ باب الجمعة)

شیخ عزیزالرحمٰن رح دیوبندی فرمائی: (۱) **الجواب:** که دا دواړه کلی په عرف کښې یو وی او یو ګنړلې کیږی او ټوله آبادی دواړو کلو ددوو زرو کسانو وی او هغه غټ کلې ګنړلې کیږی نو هلته جُمعه صحیح ده کمافی الشامی وتقع فرضا فی القصبات والقریٰ الخ.

(۲) **الجواب:** د احنافو مذهب د جمعې په باره کښې دادې چه په قریه صغیره کښې جمعه صحیح نه ده، او په قریه کبیره کښې جمعه واجب ده او اداکیږي، وتقع فرضا فی القصبات والقریٰ الکبیرة التی فیها اسواق الخ، او موضع مذکورفی السوال (تقریباً دوه زره آبادئ والا) په ظاهره قریه کبیره ده. هلته به جمعه صحیح کیږی د احتیاط الظهر ضرورت نشته. فقط،

(فتاویٰ دارالعلوم دیوبند ص ۵۸،۵۶ جلد۵ مسائل نماز جمعه)



کما فی الدرالمختار ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په څلور زره افرادو باندې مشتمل آبادئ کښې د جُمعې حکم چه پکښې شپاړس دکانونه وی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه په کر بلا ضلع پشین کښې ۴۰۰ (څلورزره) کسان اوسیږی هر قسم سهولیات سکول هسپتال ډاک خانه او تقریباً شپاړس دکانونه هم دی آیا دې ځائې کښې جُمعه صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمٰن کربلا ضلع پشین..... ۲۵۱۸۱۱۹۸۴

**الجواب:** دا مقام قریه کبیره ده په دې کښې د جُمعې قائمول جائز دی.

کما فی ردالمحتار ص۷۴۸ جلد ۱ عن القهستانی، وعبارة القهستانی وتقع فرضا فی القصبات والقرئ الکبیرة التی فیها اسواق انتهیٰ ﴿۲﴾ قلت والمراد من الاسواق الحوانیت التی تکفی لحوائج هذا المقام ورساتیقها، لا الاسواق المعروفة فی هذا الزمان فانها لم تکن فی الحرمین الشریفین ایضا فی تلک الاعصار ﴿۳﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: لا تجوز فی الصغیرة التی لیس فیها قاض ومنبر وخطیب کما فی المضمرات والظاهر انه ارید به الکراهة لکراهة النفل بالجماعة الاتری ان فی الجواهر لو صلوا فی القرئ لزمهم اداء الظهر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۹۰ جلد ۱ باب الجمعة)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۹۰ جلد ۱ باب الجمعة)

﴿۳﴾ وفی المنهاج : قلت الحوانیت المتعددة اللتی تکفی لحوائج اهل هذه البلدة واهل الرساتیق المتعلقة بها تقوم مقام الاسواق فی اصل الغرض.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۴۷ جلد۳ باب ماجاء منکم یؤتی الی الجمعة)

......

## په قریه صغیره کښې د جمعې د قائمولو اجازت نشته دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ د کلی په دروازو کښې دننه دوه جماتونه جوړ شوې دی یو جمات په بر نئ دروازه باندې دې او دویم جمات په لاندینې دروازه باندې دې، د پورتنې دروازې والا جمات آبادی تقریباً یو نیم سل کورونه دی او لاندینې دروازې والا جمات آبادې اویا کورونه دې، پورتنی جمات لوې دې، د دیرشو کالو نه په هغې کښې باقاعده امام را روان دې په لاندینې جمات کښې تقریباً د اوو میاشتو نه امام راروان دې، په دې درې وارو جماتونو کښې به په کوم جمات کښې د جُمعې مونځ صحیح وی، خلق ډیر اختلاف کوی؟ بینوا توجروا

المستفتی:مولوی سعید بکوټ ریاله...یکم مارچ ۱۹۷۵

**الجواب:** د جُمعې د صحت د پاره مصر شرعی یا قریه کبیره یا فِنا د مصر شرط دې کما صرح به صاحب الهدایة ﴿۱﴾ والـدرالمختار والبحـر والهندیـه والبدائع، لهذا په دې دواړو جماتونو کښې د جُمعې مونځ اداکول جائز نه دی په دې کښې داحنافو د پاره صریح حدیث شته او د مخالفینو سره حدیث مرفوع نشته. البته موقوفات ورسره شته چه د هغې جوابو نه په خپل ځائې کښې ورکړې شوی دې، ﴿۲﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾قال العلامة مرغینانی : لا تصح الجمعةالا فی مصر جامع او فی مصلی المصر ولا تجوز فی القریٰ لقوله علیه السلام لا جمعة ولا تشریق ولا فطر ولا اضحی الا فی مصر جامع. (هدایة ص ۱۵۰ جلد ۱ باب صلاة الجمعة)

﴿۲﴾وفی المنهاج : نقول حدیث جوائی معارض بالاقوی لان احادیث المنع محرمة ولان حدیث الانتیاب وحدیث لاجمعة الافی مصر جامع ذکر فیهما تشریع عام وضابط کلی بخلاف حدیث جوائی فانه ذکر فیه امر جزءی، ولان حدیث جوائی حدیث تقریری حکما وحدیث لا جمعة الا فی مصر جامع حدیث قولی حکما، فان قال المجوزون حدیث علی موقوف وحدیث جوائی حدیث مرفوع قلنا حاشا و کلافانه لیس فیه قول الرسول ولا فعله ولا تقریره فان قالوا حدیث جوائی حدیث مرفوع تقریری علی (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## په متعدد قرٰی باندې مشتمل علاقه کښې د جمعې د مونځ حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ علاقه په پنځه څلویښت کورونو باندې مشتمل ده، او په هغې کښې د بعضې کورونو په مینځ درې سوه یا څلور سوه ګزه فاصله هم ده، مونږ قبائل خلق یو هیڅ حکومت نشته او زمونږ په دې علاقه کښې پنځه جماتونه دی آیا دلته د جمعې مونځ ادا کیدلې شی؟ حال داچې پخوا نو علماؤ جمعه رائج کړې ده آیا د جمعې وجوب شته؟ بینوا توجروا

المستفتی: حلیم خان حقانی وزیرستان ۱۹۷۴|۷|۱۳

**الجواب:** چونکه دا ځایونه متعدد بانډې دی نه دا چه د یو مقام محلې دي، لهذا په دې ځایونو کښې د جُمعې مونځ کول د تحقیق او تقلید دواړو نه خلاف دي، لعدم صحة الجمعة فی القرٰی روایة ودرایـة ﴿۱﴾ البته که دا مقامات (کورونه او کلي) داسې نزدې او متصل وی که کتونکې ته دا اونه ښودلې شی چه د فلانی ځائې نه بل مقام شروع کیږی نوهغه به دواړه یو ځائې اوګنړې نو داسې ځایونه

بقیه حاشیه) حسب القواعد، قلنا حدیث علی مرفوع قولی علی حسب القواعد کما مرعلی ان حدیث علی رضی الله عنه وکذا سائر حججنا صریحة وحدیث جوائی محتمل للمعنی اللذی یؤیدکم وللمعنی الذی یؤیدنا.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۵۱ جلد۳ باب ماجاء منکم یؤتی الی الجمعة)

﴿۱﴾وفی المنهاج: وقلت ایضا ان المصر لا یلزم فیها اتصال السکک والدور لما ذکره ابن حزم فی المحلی ان النبی ﷺ اتی المدینة وهی قریٰ صغار متفرقة انتهیٰ، قلت لا بد من ان یراد من القریٰ فی کلام ابن حزم خلاف زعمه الدور والمحلات والمنازل المنفصلة ولا یصح مازعم ابن حزم ان المدینة المنورة کانت اسماً للوادی المشتمل علی القریٰ لانه یاباه تسمیتها بالمدینة علم شخص فافهم.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۴۸ جلد۳ باب ماجاء منکم یؤتی الی الجمعة)

به یوځائي شمارلې کیږی او باقاعده مونځ به ادا کولې شی.
(والتفصیل فی امداد الفتاوىٰ ص ۳۲۵ جلد۱)﴿۱﴾. وهو الموفق

## په ۹۰ کورونو باندې مشتمل آبادۍ کښې په جمعه او حکم جمعه کښې د مسافر وغیره استثناء

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې د یو کلی آبادئ خلق په ۹۰ کورونو باندې سره د بانډو مشتمل ده، دوه دکانونه هم پکښې دي، آیا دا خلق جُمعه کولې شی یا نه؟ دغه شان آیت د (اذا نودي للصلوة من یوم الجمعة(الاية) داحکم عام دې بیا هم په دیکښې زنانه مسافر، قرىٰ وغیره مستثنٰی دی، ددې تحصیص څه وجه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: نا معلوم...۱۸جون ۱۹۷۵

**الجواب:** په دې مقام کښې د جُمعې مونځ کول صحیح نه دي، په دې ځائې کښې د ظهر مونځ باجماعت کول ضروری وي،

قال صاحب الهداية ص۱۴۸ جلد۱ لا تصح الجمعة الافی مصر جامع او فی مصلی المصر ولا تجوز فی القرىٰ لقوله علیه السلام لا جمعة ولا تشریق ولا فطر ولا اضحى الا فی مصر جامع انتهىٰ﴿۲﴾ روی مرفوعا وموقوفا والموقوف هو الاصح لکنه فی حکم المرفوع لانه مما لا يدرک بالقياس، والاية کما خص عنها المرأة والعبد لحديث ابی داؤد

---

﴿۱﴾ علامه اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمائی که یو کلې دومره لوئې نه وی لیکن دهغې سره دویم کلې هم وی چه ددې دواړو مجموعه ددې سابق د یو پشان دې نو کتل پکار دي چه ددې دویم کلې اولنی کلې سره څنګه اتصال دې که داسې اتصال وی چه کتونکی ته دا اونه ښودې شی چې د فلانکی ځائې نه دویم کلې شروع کیږی نو دواړه به یو اوګڼلې، نو داسې اتصال سره به دا دواړه متحد ګڼلې شی، او په دې مجموعه کښې به هغه اولنی قیدونه کتلې کیږي. او د هغې د تحقق په صورت کښې به جمعه صحیح کیږي، اوکه داسې اتصال نه وی اګرچه ډیر فصل هم نه وی نو دواړه به جدا جدا ګڼلې کیږي، او چه کله هر یو کلې ورکوټې دې نو جمعه به په یو کښې هم صحیح نه وی.
(امدادالفتاوىٰ ص ۴۵۳ جلد ۱ باب صلوٰة الجمعة والعیدین)

﴿۲﴾ هدایه ص ۱۵۰ جلد ۱ باب صلوٰة الجمعة



وغیره فکذلک خص البر والصحراء بدلیل حدیث البخاری وکذا البحر وهذا ممااجمع علیه الائمة الاربعة فکذلک یخص منه القرىٰ واما حدیث جوائا فلیس بمرفوع، ولو سلم انه مرفوع حکما فهو مبیح، وکذا هو محتمل لکون القرية بالمعنى العام الشامل للمصر کما فی قوله تعالىٰ على رجل من القريتين عظم، وبالجملة لم يوجد حديث الجواز المرفوع صريحا بخلاف علم الجواز وقد علمت ان المبيح لا يعارض المحرم وكذا المحتمل لا لعارض الصريح فافهم ولا تكن من طالب الجاه والشر﴿۱﴾. وهو الموفق

## چه آبادی نه وی نو صرف د بازار کیدل د جُمعې د تحقیق د پاره کافی نه دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې زمونږ علاقه کښې یو مرکزی ځائې دې چه په هغې کښې د ضرورت مطابق یو وروکوټې شان جمات جوړ شوې دې او په دې ځائې کښې تقریباً ۹۰ یا ۱۰۰ دکانونه آباد دي، لیکن دلته یو مکان هم د اوسیدلو دپاره نشته اوګیر چاپیره درې میله فاصلې باندې کلې آباد دې، چه د هغې آبادی درې ځلوزره خواؤشاده، او دا باندې هم په غرائیزه علاقه کښې ابادې دي، د ښار په طرز هیڅ آبادی نشته آیا په دې بازار کښې جمعه صحیح ده؟ ځکه چه بعضې کسان دا بازار د مصر فنا تصور کوي، او د جمعې د جواز قائل دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام نبی قریشی مجهنګی ایبټ آباد

**الجواب:** د مصر شرعی د تحقق د پاره صرف د بازار موجود کیدل کافی نه دی بلکه دیوځو محلو وجود هم ضروری دې﴿۲﴾ پس که دا بازارد یوخاص مقام چه متعلقاتو کښې نه وی نو په هغې کښې د جُمعې نه کول ضروری دي،

---

﴿۱﴾ (منهاج السنن شرح جامع السنن ص۴۷ جلد۳ باب ماجاء منکم یؤتی الی الجمعة)

﴿۲﴾ قال الکاسانی: وروی عن ابی حنیفة انه بلدة کبیرة فیها سکک واسواق ولها رساتیق وفیها وال یقدر علی انصاف المظلوم من الظالم بحکمه ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

اوکه د یو خاص مقام سره دا بازار متعلق وی نو که دغه مقام کښې څو محلې وی بیا هم د جُمعې د جواز د پاره کافی دي، یعنی. اګر که پخپله په بازار کښې محلې نه وی.

**یدل علیه ما فی ردالمحتار ص۵۴۸ جلد ۱ عن ابی حنیفة انه بلدة کبیرة فیها سکک واسواق ولها رساتیق الخ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## په اتلس سوه آبادۍ کښې د جُمعې اقامت صحیح دې.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د چسپن کلې آبادی ۱۸۰۰ پورې ده، (د نارینه او زنانه، بالغه، اونابالغه سره) شپږ جماتونه، سکول، کمپاوډر، دوړومشین هم دې، د یو میل فاصلې باندې په درې سوه افرادو باندې مشتمل څو کورونه نورهم دي، دلته یو قاری صاحب جُمعه شروع کړې ده، آیادا صحیح ده. حال دا چه دلته بازار وغیره نشته؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: مولوی جانباز چسپن ټانګ ډی آئی خان.... ۱۹۸۸،۱۲،۱۰

**الجواب:** چه د کوم کلی آبادی د اتلس سوه پورې وی هغه قریه کبیره ده، د قستانی د تصریح مطابق په هغې اقامت د جُمعې صحیح دې

**کما فی ردالمحتار ص ۵۶۰ جلد ۱ وتقع فرضا فی القصبات والقریٰ الکبیرة التی فیها اسواق انتهیٰ ﴿۲﴾،**

اکابر فرمائی چه دغه اوورو کوټی کلی دارومدار په عرف باندې دي او دلته د اسواق (بازارونو) قید واقعی دې، ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

**(بقیه حاشیه)وعلمه او علم غیره والناس یرجعون الیه فی الحوادث وهو الاصح.**
**(بدائع الصنائع ص ۵۸۵ جلد ۱ باب شرائط الجمعة)**
**﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۹۰ جلد ۱ باب الجمعة)**
**﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۹۰ جلد ۱ باب الجمعة مطلب فی صحة الجمعة)**
**﴿۳﴾ وفی المنهاج : قلت الحوانیت المتعددة اللتی تکفی لحوائج اهل هذه البلدة واهل الرساتیق المتعلقة بها تقوم مقام الاسواق فی اصل الغرض، وقلت ایضا قید الوالی قید لبیان ما هو الواقع غالبا ولیس قیدا احتراز یا بدلیل ان الله تعالی......** (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## که یو نیم زر مردم شماری وی نو جمعه صحیح ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کې څه فرمائی چه زمونږ په جمات کښې جمعه د مخکښې نه جاری ده دلته ټول مونځ ګزار شپږ دیرش دي، دکانونه هم دي، ترکاڼ، نائي، لوهار، د سائیکلو مستري، ډاکټر. موچي. د وړو مشین اوعام سړک هم دې، خلق بس وغیره اود روی او مونځ کوی نو دې ځائې کښې به د جُمعې مونځ صحیح وه یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: اهلیان سلیم خان اډه چارسده روډ مردان.... ۱۹۹۰،۱۱،۷

**الجواب:** که ددې ځائې مردم شماری یو نیم زر پورې وی نو دا مقام قریه کبیره ده، په دې کښې د جمعې اقامت صحیح دې ګینې صحیح به نه وی. (ماخوذ از فتاوٰی دارالعلوم دیو بند) ﴿۱﴾ وهوالموفق

---

**(بقیه حاشیه) اطلق المصر والمدینة علی المقامات اللتی فی ایدی الکفار ولان المهاجرین الاولین جمعوا فی المدینة المنورة قبل هجرة النبی ﷺ ولم یکن ثم وال...... وقلت ایضا ان المصر لا یلزم فیه اتصال السکک والدور لما ذکره ابن حزم فی المحلی. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص۴۷ جلد۳ باب ماجاء منکم یؤتی الی الجمعة).**

**سوال:** په فخن پور کښې چه آبادی ئې دیارلس سوه ده جمعه جائز ده یا نه؟

**الجواب:** په دې ځائې کښې چه هغه دقریه کبیره په حد کښې راځی او دکانونه او بآزار پکښې هم شته جمعه کول صحیح معلومیږی فقط (ازمفتی عزیزالرحمٰن صاحب).... فتاوٰی دارالعلوم دیوبند ص ۱۲۶ جلد ۵ رقم مسئله: ۲۴۸۹)

**ملاحظه:** فقهائې کرامو د قریه کبیره حد او تعداد نه دې بیان کړې او مصر هم ددغې اصطلاحاتو نه یو دې چه د هغې څه حد او تعین معلوم نه دي، ځکه چه مدار په عرف باندې دې په دې وجه فقهائ کرامو د خپلې خپلې زمانې په لحاظ سره د ښار مختلف تعبیرونه او تعریفونه کړی دی. کوکب الدری ص ۱۹۹ جلد ۱ کښې ښار هغه ځائې ګرځولې شوې دې چه د هغې آبادې څلور زره وی او حاشیه کوکب من جامع الرموز یوزر (۱۰۰۰) خودلې ده. لهٰذا چرته چه د شهریت بوئې هم وی او د ضروریاتو ټول څیزونه ملاویږی نو هغه وخت کښې آبادی یو نیم زره پورې هم کافی ده. (ازمرتب)

## په یوه وادئ کښې د مختلفو محلو او کورونو کیدلو په صورت کښې دجمعې حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ قوم په قمبر خیل کهجورئ کښې اوسیږی او هر ځائې کښې ځان ځانته آباد دی ده ایا دلته به جُمعه صحیح وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا داؤد شاه کهجوری کوهاټ...۲۹شوال ۱۴۰۱ه

**الجواب:** که دا کهجورئ د ټولو علاقې نوم وی او دا ځائې په ځائې کورونه او باندې وی نو ددې علاقې په یو ځائې کښې هم جُمعه قائم کول صحیح نه دي، او که کهجوري، ددې ټولې وادئ نوم وی او دا ځائې ځائې مکانونه ددې محلات او کورونه وی نو د مفتی به قول په بنا باندې ددې وادئ په هر جمات کښې د جمعې اقامت صحیح دې، او په ظاهره سره دا دویم شق راجح معلومیږی چه د هجرت په وخت کښې د مدینې منورې دا کیفیت وو.
وهذا محمل ماقال ابن حزم فانما هی (المدینة) ذات قریٰ صغار متفرقة فبنی مسجده فی بنی مالک وجمع فیه فی قریة لیست بکبیرة (ماخوذ از محلی ص۵۷ جلد۳)﴿۱﴾. وهوالموفق

## د فتنې او فساد دوجې نه په بانډه کښې د جمعې حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ کلې په یو نیم سل کورونو باندې مشتمل دې شپږ جماتونه پکښې هم دې تقریباً ددوه سوه کالونه دلته جمعه کیږي، د مذهب حنفی مطابق دا ښار نه دې، او دجُمعې

﴿۱﴾وفی المنهاج: وقلت ایضا ان المصر لا یلزم فیها اتصال السکک والدور لما ذکره ابن حزم فی المحلی ان النبی ﷺ اتی المدینة وهی قری صغار متفرقة انتهیٰ، قلت لا بد من ان یراد من القریٰ فی کلام ابن حزم خلاف زعمه الدور والمحلات والمنازل المنفصلة ولا یصح ما زعم ابن حزم ان المدینة المنورة کانت اسماً للوادی المشتمل علی القریٰ لا نه یاباه تسمیتها بالمدینة علم شخص فافهم.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۴۷ جلد۳ باب ماجاء منکم یؤتی الی الجمعة)



مونځ نه کول د فساد فتنې او خانه جنګۍ د خطرې نه خالی نه دې، آیا مونږ دلته د شافعی یا حنبلی مسلک مطابق جمعه کولې شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی محمد علی شاه حقانی بانډه شر داؤد شاه بنوں ۱۹۸۲/۸/۳

**الجواب:** که ددې کلې مردم شماری (سړي، ښځې، بالغ نابالغه) دوه زرو پورې وی نو دا قریه کبیره ده، په دې کښې عندالاحناف د جمعې اقامت صحیح دې. کما فی فتاویٰ دارالعلوم دیوبند عن القهستانی ﴿۱﴾ او عندالضرورة د نورو امامانو په قول باندې فتوی ورکول جائز دی ﴿۲﴾ مثلاً چه د خانه جنګئ وغیره خطره وی. ﴿۳﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾(فتاویٰ دارالعلوم دیوبند ص۵۲ جلد۵ باب الجمعة)

﴿۲﴾وقال فی البشری لارباب الفتویٰ: اعلم انه لا یجوز الحکم والافتاء بالقول المرجوح وبمذهب سائر الائمة الا فی ثلاثة مواضع الاول عند الضرورة دون التشهی والتلهی فانه حرام کما حرم الحکم الملفق الخارق للاجماع فی عمل واحد...... وذکر عن خزانة الروایات ان العالم الذی یعرف معنی النصوص والاخبار وهو من اهل الدرایة یجوز له ان یعمل علیها وان کان مخالفا لمذهبه...... وفی ردالمحتار عن القهستانی لو افتی به ای بمذهب مالک فی المفقود لا بأس به علی ما اظن...... وقال الزاهدی کان بعض اصحابنا یفتون به للضرورة ...... وفی شرح التنویر کره صلوٰة مطلقا مع شروق الشمس الا العوام فلا یمنعون من فعلها لانهم یترکونها...... قلت واصل هذه المسائل قوله تعالیٰ الا ما اضطررتم وقوله ﷺ یسروا ولا تعسروا بشروا ولا تنفروا، رواه البخاری والمسلم لما کان الافتاء علیه عند الضرورة من اصول الحنفیة کان الحکم المبنی علیه مذهب الحنفیة ایضا لابتناء ه علی قواعدهم کما صرح به العلامة الشامی فی عقود رسم المفتی.
(البشری لارباب الفتویٰ ص۴۶ الفصل السادس)

﴿۳﴾وفی المنهاج: القریٰ التی لا یتحقق فیها الشرائط......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## په موضع شادی د همیال کښې د جمعې د مونځ په باره کښې دیارلس تفصیلی مسئلې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه موضع شادی دهمیال موهړه داروغه تحصیل وضلع راولپنډی په لاندینی تعریف سره په سرکاری کاغذونو کښې په لاندینی پنځو ۵ مواضو باندې مشتمل دی (۱) موهړه داروغه بالغ آبادې، ۲،۳۴۴) موهړه امیر بالغ آبادی ۳،۲۵۲) بیرولیان بالغ آبادی ۴،۲۵۷) ډهوک ګولړه بالغ آبادی ۵،۷۲) ډهوک موچیان بالغ آبادی ۲۲ ددې پنځو مواضو ټوله بالغ آبادې، ۹۵۲ ده،

**نوټ:** په بالغ آبادۍ کښې ددولس کالو یا زیات عمر سړی اوښځې شامل دی: موضع:(۱) او(۲) خپل مینځ کښې بالکل متصل دی.موضع: (۳) تقریباً د یو فرلانګ نه څه کم فاصلې باندې واقع دې،او په مینځ کښې ئې څوخالی پټی دی.

(بقیه حاشیه) **المعتبرة عند الحنفية ويتحقق فيها شرائط الائمة الثلاثة لا ينبغى ان يمنع عن تجميع الجمعة فيها عن ظن الاقتال و كذا عند ترك الظهر جهلا ونظيره ترك منع العوام عن الصلاة عند الشروق.**

**(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۵۴ جلد۳ قبيل باب ماجاء فى وقت الجمعة)**

علامه مفتی کفایت الله صاحب دهلوی فرمائی که د ډیر وخت نه هلته د جُمعې مونځ قائم وی بندولو کښې مذهبی او دینی فتنه ده نو په دې وجه اوس موقوف کول صحیح نه دی، بلکه په دې مسئله کښې دامام شافعی یا دامام مالک د قول مطابق عمل کول جائز دی.

**وفى هامش هذا الجواب واستشهد له بما فى التجنيس عن الحلوانى ان كسالى العوام اذا صلوا الفجر عند طلوع الشمس لا يمنعون لانهم اذا منعوا تركوها اصلا واداء ها مع تجويز اهل الحديث لها اولىٰ من تركها اصلا الخ. (ردالمحتار باب العيدين ص ١ : ٦١٢ قبيل مطلب تجب طاعة الامام)**

**كفايت المفتى ص۲۴۸ جلد۳ كتاب صلوٰة الجمعة)**



موضع نمبر ۲ او نمبر ۵ تقریباً په درې نیم فرلانګه فاصاله باندې دې.ددې پنځومواضعوچه په سرکاری کاغذونو کښې هم یونوم شادی دهمیال دې ددوی قبرستان، کوهیان او د غنمو د غوبل ځایونه جداجدا دي،په دې مواضعوکښې څلور جماتونه بالفعل موجود دی دټولونه لوئې جمات کښې د ۹۵۷ تعداد نشی راځائې کیدلې.ځان ځانته اته دکانونه موجود دي، چه د هغې نه د روزمره ژوند ضروریات په آسانۍ سره حاصلیدلې شي،یو د وړو والا مشین د بجلۍ والاموجود دې، ۵۷ وړې لوئې کوڅې دی، د موضع موهړه داروغه په مینځ کښې یو لوئې سړک او برانچ پوسټ آفس دې،د هلکانو او جینکو دپاره ځان ځانته مډل سکولونه دي، د هلکانو دسکول سره متصل یو پخه عیدګاه ده، دهغې سره یو وړوکې شان جمات دې، چې د پورتنو څلورو جماتونو نه علاوه دي، دحکومت د طرفنه دجاری قانون لاندې د وړو وړو خپل مینځنۍ جهګړو ختمولودپاره یو ممبر یونین کونسل هم موجود دې.اګرچه د یونین کونسل دفتربل ځائ کښې دې خودعلاقې د اوسیدونکود ژوند دضروریاتو پوره کولو دپاره د هر قسم کسب کاریګر په ښه طریقې سره موجوددی.مثلاً ډاکټر،چراغ، موچي،درزي،کولال، لوهار، مصرِي، قصاب وغیره چه په عام طور سره په خپلو کورونو کښې د خلقو کارونه کوی.

دبستی موضع شادی دهمیال دویمې بستۍ چه بیرولیان نوم ئې دې دهغې سره بالکل متصل تقریباً شل ګزه فاصلې باندې یوه بله بستی موضع سود ګنګال واقع دې، ددې دوه حصې دي، اود دواړو حصو مجموعی آبادی بالغه ۴۲۵ ده او په دې کښې دوه جماتونو دي، درې دکانونه یو خوا بل خوا واقع دی دوه دوړو مشینونه دی یو دینی مدرسه مدرسة العربیه فیض القران، د څلورو کالونه قائمه ده د موضع شادی دهمیال او دغې متصله بستئې سود ګنګال آبادی ۱۴۲۱ ده، ددې دوه لویو مرکزی بستیانو نه علاوه تقریباً په پاؤ کم میل کښې دننه نورې وړې لوئې شپاړس بستیانې واقع دي ددې بستیانو بالغه آبادی مجموعه تعداد ۱۷۵۳ ده.په دې وجوهاتو سره آیا دلته د جُمعې مونځ کیدلې شي؟

(۲) داسې بستیانې چه دهغې معاشرتی او تمدنی معاملات خپل مینځ کښې مشترک وی. د جمعې د جواز دپاره کم نه کم د بالغان تعداد د وجوب دجمعې په غرض څو مره پکار دې. چه لوئ ځائې ته مرکزی حیثیت ورکړی او د جمعةالمبارک مونځ اداکړې شی، یعنی عندالاحناف د جمعة المبارک د اجازت د پاره دمصر یا قریه کبیره عام فهم تعریف اوښایئ چه عامة المسلمین ددې خَیر کثیر نه محروم نه کړې شي، او خصوصاً ددې الحاد زندقې او بې دینۍ په زمانه کښې مسلمانانو ته ددې اسلامی شعائرو په ذریعه زیات نه زیات فائده اورسولې شي؟

(۳) په دې موضع شادی دهمیال کښې تقریباً د شپیته کالو نه او د بعضې روایتونو مطابق د سلو کالو نه جُمعه ادا کیږی، او دا قیام یو جید عالم طرفنه منسوب کولې شی. د بعضې روایتونو مطابق دلته څه مودې دپاره د جمعة المبارک مونځ بند هم شو بیا هم د ډیرې مودې نه شروع شوې دې اوس پکښې علمائې کرام مختلف شوې دی، د مانعین جُمعه په نزد مذکوره بستئ باندې دمصر په باره کښې دمشهور تفسیر اطلاق جائز نه وائي. او یو بل ځائې کښې د موضع روات کښې چه ددې بستئ نه تقریباً یو نیم میل فاصله باندې دې هلته د جمعې مونځ ادا کول جائز ګڼړی او هلته ئې ادا کوي،

**د موضع روات تعریف:** روات بستی د راولپنډې نه لاهور طرفته یوولس میله فاصله باندې د جی ټی روډ سره نژدې واقع دې، او دنزدې نزدې علاقې آبادئ ته چه نورو ښارونو کښې د نقل وحمل د پاره بسونه دلته کښې اودریږی لیکن مستقل طور باندې د یو ټرانسپورټ کمیټئ څه اډه موجود نه ده. دغه ځائې کښې پولیس سټیشن دې د جی ټی روډ نزدې واقع کیدلو په وجه د مانعین په قول دیرش دکانونه شمال او جنوباً او تقریباً دیرش څلویښت دکانونه شرقاً او غرباً دواړو طرفونو ته د بازار په شکل کښې موجود دې، لس دولس دکانونه پنځه شپږ کوڅو کښې ځان ځانته هم موجود دی، دلته نه دژوند ضروریات په آسانئ سره ملاویږی، د نهې (منګل) په ورځ د څارو منډئی هم لګی تقریباً دنیم میل په فاصلې باندې ریډیو پاکستان



او د هغې کالونې هم ده، یو سب پوسټ آفس هم دې، په آثارِ قدیمه کښې شاهی قلعه، شاهی قبرستان، او شاهی مسجد هم واقع دې، د بالغانو آبادی تقریباً زرو پورې ده، او بعضې دوه زره شپږسوه (۲۲۰۰) وائی. اوس که د پورتنی حقائقو او تعریف مطابق په موضع شادی دهمیال کښې د جُمعې مونځ جائز نه وی نو آیا آئنده دپاره دا جُمعه بندول پکار دی؟

(۴) که د آئنده دپاره جُمعه بنده شی نو د فوت شوې ظهر مونځونو قضاء واجب ده یانه؟

(۵) تقریباً سل کاله یا څه کم زیات نه جمعه کولو والا عام مسلمانان او علمائې کرام چه مړه شوې دي، دهغوی د ظهر فوت شوې مونځونو په عوض کښې به فدیه ورکولې شی یا نه؟

(٦) کومو علمائې کرامو چه ددې بستئ حالات او مواضعات ښکاره لیدلې او دجمعې د جواز فتوی ئې ورکړې او بالفعل ئې جمعه کړې ده اوس دجُمعې د ناجائز کیدلو په صورت کښې د هغوی دپاره څه حکم دې؟

(۷) که په موضع شادی دهمیال کښې جُمعه ناجائز ده نو کومو مانعینو چه دخپلو دلائلو په موجود ګئ کښې ناجائزه ګرځولې او دې ځائې دمجوزینو د تحقیق مطابق جُمعه جائز ګڼړلو او لوستونکو والا ئې بد عتیان ګرځولی، د هغوی دپاره په شرع متین کښې څه حکم دې؟

(۸) په موضع روات کښې چه چرته ما نعین ځی او د جُمعې مونځ کوي، د پورتنی بیان او تعریف مطابق دجُمعې مونځ ادا کول څنګه دي؟ او که وی نو آبادئ والا جمات پریخودل د مذهبی اختلافاتو دیوبندي، بریلوی پیش نظره بل ځائې شاهی قبرستان والا شاړ جمات کښې جمعه کول څنګه دی حالانکه دواړه فریقین حنفی مذهب والا دی.

(۹) که په دواړه کلو کښې جمعه جائز ده نو د ما نعینو خپله بستی موضع شادی دهمیال پریخودل او د بلې بستئ موضع روات کښې یو نیم میل تلل او جُمعه کول څنګه وي؟

(۱۰) بستی شادی دهمیال چه په پنځو بستیانو مشتمل ده، آیا په دې

مرکزی بستی کښې د جمعې د جائز کیدلو په صورت کښې ددې بستئ په دویمه حصه (بیرو الیان) (چه داخلی شادی دهمیال دې) کښې دجمعې مونځ اداکول جائز یانه؟ ځکه چه اوس په دغه بستئ کښې هغه جمعې کیږی کومه چه په شادی دهمیال کښې کیدله.

(۱۱) آیا په دې مرکزی بستئ موضع شادی دهمیال کښې د جمعې د جواز په صورت کښې ددې موضع دیوې بستئ نه علاوه په دویمه بستئ کښې هم ځان له جمعې قائم کیدلې شی یعنی دوه یا درې ځایه جُمعه ادا کړې شی او دې وخت کښې به د بستی شادی دهمیال پنځه وارو مواضعاتو ته ځان ځانله درجه ورکولې کیدې شی یا نه؟

(۱۲) که په شادی دهمیال کښې جمعه ناجائزده نو موضع روات ته یو نیم میل فاصله وهل د جمعې دپاره تلل څنګه دې، یعنی ضروری دی یانه؟

(۱۳) که موضع شادی دهمیال د مذکوره تعریف او حقائقو باوجود حکمی ښار جوړنه شو، نو موجوده بې دینی او الحاد اوګمراهی چه مخې ته کیښودې شی او صرف د تبلیغ په خاطر جُمعه ادا کړې شی او احتیاط الظهر هم اوکړې شی نو ګنجائش به وی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ناظم نشریات مدرسه فیض القرآن سودګنګال

**الجواب**: واضحه دې وی چه کتاب الله (قران) اګر چه په ظاهره سره د مصرِ (ښار) د تقید ا و تخصیص نه خالی دې لیکن په حقیقت کښې مصرسره مقید اومخصوص دې ځکه چه دا آیت عام مخصوص البعض دې اجماعاً،

**لان صلاة الجمعة لا تصح فی المفازة والبحر بدلیل ان النبی علیه السلام صلی الظهر یوم الجمعة بعرفات ولم یامر لاحد من اهل مکة وغیرهم ان یصلوا الجمعة قلت والبحر کالمفازة فحکمها واحد،**

اومسلمه قاعده ده چه عام مخصوص البعض تخصیص په خبر واحد سره جائز دې او بلا شک وشبهې دلته خبرواحد موجود دې،

**وهو ما روی عن علی مرفوعا وموقوفاً لا جمعة ولا تشریق ولا فطر ولا اضحی الا فی مصر جامع ، والموقوف اصح وهو فی حکم المرفوع لانه لا یدرک بالرائ ،**

لهٰذا دجمعې مونځ به صرف په مصرکښې اداکولې شی.



**یؤید حدیث تناوب اهل القریٰ وحدیث الاقامة فی قباقدر اسبوعین کما فی روایة، وحدیث جوالی حیث لم یجمع فی القریٰ التی بین المدینة وجواثا وغیر ذلک ،**

باقی پاتې شوداتحقیق چه مصرکوم ځائې ته وئیلې شی نوپه دې کښې فقهائې کرام مختلف دی. که ددې ټولو اقوالو متعلق دمعلومولواراده وی،نو **بحر ص ۱۴۰ جلد۲ مسبوط امام سرخسی ص ۲۳ جلد۲ ردالمحتار ص۷۴۸ جلد۱ عینی شرح هدایة ص ۹۸۳ جلد۱ بدائع ص ۲۵۹ جلد۱** ته دې مراجعت اوکړې، خصوصاً آخرالذکر دا ډیر په تفصیل سره ذکرکړې، او په آخر کښې ئې فرمائیلې دي،

**وروی عن ابی حنیفة انه بلدة کبیرة فیها سکک واسواق ولها رساتیق وفیها وال یقدر علی انصاف المظلوم من الظالم بحکمه وعلمه او علم غیره والناس یرجعون الیه فی الحوادث وهو الاصح، انتهیٰ،**

یعنی صاحب دبدائع دا تعریف غوره کړې دې هغه دادې:

**هو بلدة کبیرة فیها سکک واسواق ولها رساتیق ویخرج الناس الی الوالی فیما وقعت لهم من الحوادث،**

لیکن دغور کولونه پس معلومیږی چه دا اختلاف عنوانی نه دې. دټولو مصداق یو دې، ټولو علماؤ د خپلې خپلې زمانې په اعتبار سره چه کوم علامات په مصر کښې موندلې کیږی ذکر کړې دی که بالفرض دا اختلاف په معنون کښې شی نو اکثر تعریفونه به مطرد اومنعکس نه کیږی. وللتفصیل موضع آخر، نو بس مصر یو فردی التصور څیزدې او تعریف حقیقی په دې تعریفونو کښې د صاحبِ تحفه غوره معلومیږی یاهغه تعریف معلومیږی کوم چه بدائع اختیار کړې،لیکن د والی اوحاکم وجود او اشتراط په تعریف حقیقی کښې غیر معتبر دې، ځکه چه معنی شرعی هغې معنیٰ ته وئیلې شي، چه کومه شارع معتبر کړې وی، او په قران شریف کښې الله تعالیٰ د مصر او مدینه اطلاق په هغه مقاماتو باندې هم کړې دې چه بالکل دارالحرب وو او د بعضې حاکم او والی تحقیق هم نامعلوم دې، دغه شان صحابه کرامو به په مدینه کښې د جُمعې مونځ کولو د هجرت نه مخکښې، حال داچه په مدینه کښې نه حاکم وو او نه والی وو.

روى ابو داؤد عن عبد الرحمن بن كعب عن ابيه انه كان اذا سمع النداء ترحم لاسعد بن زرارة قال لانه اول من جمع بنا في هزم النبيت فى موضع فى داخل المدينة ، وفى استيعاب ابن عبد البران اسعد بن زرارة كان اول جمع بالمدينة فى هزمة من حرة (بذل ص ١٧١ جلد٢) وفى المعرفة قال الزهرى لما بعث رسول الله ﷺ مصعب بن عمير الى المدينة ليقرء هم القرآن جمع بهم . (بذل ص ١٧٠ جلد٢).

او د صحیح روایاتو نه ثابته شوې ده چه د پیغمبر علیه السلام په ژوند کښې په جواثا کښې د جمعې مونځ قائم شو، حالانکه جواثا د صدیق اکبر رضی الله عنه په دور خلافت کښې فتح شوې دې:

قال صاحب معجم البلدان جواثا بالضم وبين الالفين ثاء مثلثة يمد ويقصر وهو علم مرتجل حصن لعبد القيس بالبحرين فتحه العلاء بن الحضرمى فى ايام ابى بكر الصديق رضى الله عنه (بذل ص ١٦٩ جلد ٢)

پس ددې دلیلونو په بناء باندې د مصر شرعی په تعریف حقیقی کښې د والی او حاکم وجود ضروری نه دې، او د ا تعریف په موضع روات باندې صادق او په شادی دهمیال باندې صادق نه ده، لهٰذا په روات کښې د جمعې مونځ کول جائز دی او په شادی دهمیال کښې د مسلک حنفی خلاف دي، باقی پاتې شو دا تحقیق چه که عوام د جُمعې د مونځ نه منع شی نو دا یقین یا ظنِ غالب به وی چه هغوی به نه مصر ته لاړ شی او نه فنا د مصر ته اونه به د ظهر مونځ اوکړی اونه بهٔ د وعظ اوریدلو د پاره چرته حاضر شی نو په داسې صورت کښې که په هغه کلو کښې چه چرته د یو امام شرط موجود وی که د جمعې مونځ قائم کړې شی او روستو احتیاطی مونځ ادا کړېشی نو د اعتراض قابل به نه وی،

ونظيره ما فى درالمختار وكره صلاة مع شروق الا العوام فلا يمنعون من فعلها لانهم يتركونها والاداء الجائز عند البعض اولىٰ من الترك، انتهىٰ،

او په کومو کلو کښې چه دائمه اربعه نه د یو امام هم څه شرط موجود نه وی نو هلته کښې د جمعې مونځ کول به قابلِ انکاروی. ددې تمهید نه پس مختصر جوابونه علی الترتیب لیکلې شی:

(۱) ناجائز دی که د عوامو د فتنې خطره نه وی د فتنې نه مراد دادې چه نه به ښار ته ځی او نه به فِنا د مصر ته ځی او نه به د ظهر مونځ کوی.



(۲) په صحیح او حقیقی تعریف کښې د بالغانو د شمیرهیڅ دخل نشته او عام فهم تعریف هم معلوم دې، کمامر فی التمهید

(۳) که فتنه نه وی نو بند دې کړی.

(۴) که احتیاطی مونځ ئې نه وی کړې نو قضاء واجب ده،

قال المقدسى ذكر ابن الشحنة عن جده التصريح بالندب وبحث فيه بانه ينبغى ان يكون عند مجرد التوهم، اما عند قيام الشك والاشتباه الجمعة فالظاهر الوجوب ونقل عن شيخ ابن الهمام ما يغيره. (ردالمحتار ص ٧٥٦ جلد ١) وقال العلامة الشامى ناقلا عن الجواهر لو صلوا فى القرىٰ لزمهم اداء الظهر (٧٤٨ جلد ١).

(۵) فدیه ورکول بهتر دي، (لعدم الوصية)

(۶) کله چه د مصر یو تعریف هم په دې مقام باندې صادق وی اګرچه هغه ضعیف وی نو په دغه مقام کښې د جُمعې مونځ کونکو او فتوٰی ورکونکو خلقو باندې دې اعتراض نه کوی.

(۷) اصل حکم ددې صحیح دې.

(۸) د مفتی بهِ قول په بنا د جُمعې تعدد جائز دې. (درمختار)

(۹) روات ته تلل ضروری دي (وهكذا حكم القرى القريبة من مصر)

(۱۰) واضح وئیلې شوې دی چه په صحیح قول سره دا مصر نه دې،

(۱۱) په یو کښې هم د جُمعې مونځ قائم کول د مسلکِ حنفی موافق نه دی.

(۱۲) کله ضروری دی.

(۱۳) چه عوام نه ښار ته ځی او نه ظهر کوی او په دې مقام کښې دائمه اربعه نه د یو هم څه شرط موجود وی نو جُمعه کول بشرط ادائې احتیاطی قابلِ اعتراض نه دي، وهو الموفق

....

# فصل فی الخطبة

## د جُمعې او عیدین د خطبې د الفاظو مقدار او حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو امام د جُمعې او اخترونو په خطبه کښې اول (نحمده ونصلی علی رسوله الکریم) تعوذ او تسمیه اویو سورت او لولی او کینی بیا په دویمه خطبه کښې الحمد الله نحمده ونستعینه، الخ او لولی او ختمه ئې کړی، آیا شرعاً دا خطبه صحیح ده؟ بعضې خلق وائی چه دا خُطبه صحیح نه ده، ځکه چه په کومه خطبه کښې د صحابه کرامو نومونه نه راځی هغه خطبه نه وي، آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام حیدر ټیکسلا......۵ نومبر۱۹۷۴

**الجواب:** په دې قدر خطبې سره فرض او شرط پوره کیږی لهٰذا د جُمعې مونځ وغیره به صحیح وی البته دا خطبه د سنتو نه خلاف وي.

لان المسنون فی الخطبة الاولیٰ ان تکون مشتملة علی الحمد والصلوٰة والتشهد، والتذکیر والقرآن والثانیة علی الحمد والصلوٰة والتشهد والدعاء والقرآن کما فی البدائع والتجنیس فلیراجع﴿۱﴾. وهو الموفق

## د جمعې په ورځ په خطبه کښې یا د خطبې نه مخکښې د وعظ او نصیحت حکم

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د جُمعې په ورځ خطبه جُمعه کښې د وعظ اونصیحت څه حکم دې؟ فرض دی یاسنت دی اویا

﴿۱﴾ قال العلامة علاء الدین الکاسانی: ینبغی ان یخطب خطبة خفیفة یفتتح فیها بحمد الله تعالیٰ، ویثنی علیه، ویتشهد ویصلی علی النبیﷺ، ویعظ، ویذکر، ویقرأ سورة ثم یجلس جلسة خفیفة، ثم یقوم فیخطب خطبة اخری یحمد ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



مستحب دی؟ ځکه چه په بعضې مقاماتو کښې صرف خطبه لولی او اخری سورتونو سره مونځ ختموی نو آیا وعظ ونصیحت ضروری نه دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: عنایت مجیب خټک سب پوسټ ماسټر چترال

**الجواب:** په اولنۍ خطبه کښې په عربۍ کښې وعظ کول مسنون دی او په نورو ژبه کښې وعظ کول خلاف سنت دي،﴿۱﴾ او د خطبې نه مخکښې په هره ژبه کښې وعظ کول مستحب دي ﴿۲﴾

## د جمعې او اخترونو په خطبه کښې د پنجابۍ ژبې شعرونه ویل خلاف سنت دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دجُمعې او اخترونو په

(بقیه حاشیه) الله تعالیٰ، ویثنی علیه ویصلی علی النبیﷺ ویدعو للمؤمنین والمؤمنات. (بدائع الصنائع ص ۵۹۱ جلد ۱ سنن الخطبة)

﴿۱﴾ قال العلامة عبد الحئی اللکهنوی: فانه لا شک فی ان الخطبة بغیر العربیة خلاف السنة المتوارثة من النبیﷺ والصحابة فیکون مکروه تحریما وکذا قراءة الاشعار الفارسیة والهندیة فیها. (عمدة الرعایة حاشیة شرح الوقایة ص ۲۴۲ جلد ۱ باب الجمعة)

﴿۲﴾ یدل بجواز الوعظ قبل الخطبة حدیث ابی داؤد عن سمرة بن جندب ان نبی اللهﷺ قال احضروا الذکر وادنوا من الامام فان الرجل لا یزال یتباعد حتی یؤخر فی الجنة وان دخلها. (سنن ابی داؤد ص ۱۶۵ جلد ۱ باب الدنو من الامام عند الموعظة)

وهکذا یدل علی الجواز بالوعظ قبل الجمعة اذن عمر لتمیم داری: واخرج ابن عساکر عن حمید بن عبد الرحمن ان تمیما الداری استأذن عمر فی القصص سنین فابی ان یأذن له، فاستأذنه فی یوم واحد فلما اکثر علیه قال له: ماتقول؟ قال: اقرأ علیهم القرآن وامرهم بالخیر وانها هم عن الشر قال عمر: ذلک الذبح، ثم قال: عظ قبل ان اخرج فی الجمعة فکان یفعل ذلک یوما واحداً فی الجمعة.

(الموضوعات الکبریٰ لملا علی قاری ص ۴۲ رقم حدیث ۱۲۷ مقدمة)

خطبه کښې د پنجابۍ او نورو ژبو شعرونه لوستل جائزدي يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوی عبد الرحيم سير ډاک هزاره.... ۱۹۲۹ء/۱۲/۲۴

**الجواب:** د عربۍ نه علاوه بل لغت لوستل (په خطبه کښې) خلاف سنت دی ځکه چه په خيرالقرون کښې ډير عجمي ملکونه فتح شول او په ډيرو ښارونو کښې جُمعه قائم کړې شوه او سره ددې چه بعضې صحابه کرام په فارسۍ وغيره پوهيدل او وئيلې ئې شوه، او مخاطبين په عربۍ نه پوهيدل خو خطبه به په عربۍ ژبه کښې لوستلې کيدله. ﴿۱﴾

## د امام د اجازت نه بغير په جمات کښې وعظ او تقرير کول

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په يو جمات کښې د محلې د امام درضا منديځ نه بغير د جُمعې په ورځ يا بله ورځ باندې څوک غير کس په ممبر باندې وعظ يا تقرير کولې شي؟ بينوا توجروا

المستفتي: قاضی حبيب السلام پير سباق نوشهره.... ۱۷محرم ۱۴۱۱

﴿۱﴾ قال العلامة عبد الحئ اللکهنوی: فی آکام النفائس فی اداء الاذکار بلسان الفارسی: الکراهة انما هی لمخالفة السنة لان النبی ﷺ واصحابه قد خطبوا دائماً بالعربية ولم ينقل عن احد منهم انهم خطبوا خطبة ولو خطبة غير الجمعة بغير العربية (الی ان قال) الخطبة بالفارسية التی احدثوها واعتقدوها وحسنها ليس الباعث اليها الا عدم فهم العجم اللغة العربية وهذا الباعث قد کان موجوداً فی عصر خير البرية وان کان فيه اشتباه فلا اشتباه فی عصر الصحابة والتابعين ومن تبعهم من الائمة المجتهدين حيث فتحت الامصار الشاسعة والديار الواسعة واسلم اکثر الحبش والروم والعجم وغيرهم من الاعجام وحضروا مجالس الجمع والاعياد وغيرها من شعائر الاسلام وقد کان اکثرهم لا يعرفون اللغة العربية ومع ذلک لم يخطب احد منهم بغير العربية ولما ثبت وجود الباعث فی تلک الازمنة وفقدان المانع والتکاسل وهذه معلوم بالقواعد المبرهنة لم يبق الا الکراهة التی هی ادنی درجات الضلالة الخ. (مجموعة الفتاویٰ ص ۲۸۶،۲۸۷ جلد ۱ کتاب الصلوٰة)



**الجواب:** د ا وعظ او تقرير د امام الحئ او د محلې د اهل حل وعقد د اجازت نه بغير ناجائزدي. ﴿۱﴾ البته کله چه امام نه پخپله تقرير کولې شی اونۀ بل واعظ او مقرر ته اجازت ورکوی نو دا امام ضدی او معاند دې، وهوالموفق

## د جُمعې په خطبه کښې د والسلطان العادل ظل الله فی الارض.الخ. لوستلو حکم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د (والسلطان العادل ظل الله فی الارض من اهان سلطان الله فی الارض اهانه الله) وئيل صحيح دی يا نه؟ بينو اتوجروا

المستفتي: برادر مولانا لطيف الله صاحب.... ۱۹۸۲ء/۱/۱۴۱۷

**الجواب:** دا حديث الفاظ دي ﴿۲﴾ ددې په خطبه کښې ذکر کول قابل اعتراض

﴿۱﴾ قال الحصکفی: والخيار الی القوم فان اختلفوا اعتبر اکثرهم ولو قدموا غير الاولیٰ اساؤ بلا اثم واعلم ان صاحب البيت ومثله امام المسجد الراتب اولیٰ بالامامة من غير مطلقا، قال ابن عابدين: ای وان کان غيره من الحاضرين من هو اعلم واقرأ منه. (الدر المختار مع ردالمحتار ص ۴۱۳ جلد ۱ باب الامامة)

فی المنهاج: (قوله فلا يومهم) والراجح انه مخصوص بما لم يؤذن له لحديث مسعود البدری قال قال رسول الله ﷺ لا يؤم الرجل فی بيته ولا فی سلطانه ولا يجلس علی تکرمته الا باذنه رواه ابوداؤد، وروی احمد ومسلم لا يؤمن الرجل الرجل فی سلطانه ولا يقعد فی بيته علی تکرمته الاباذنه ورواه سعيد بن منصور ولکن قال فيه لايؤم الرجل الرجل فی سلطانه الا باذنه. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۳۸ جلد ۲ باب من زار قوماً فلا يصل بهم)

﴿۲﴾ عن زياد بن کسيب العدوی: قال کنت مع ابی بکرة تحت منبر ابن عامر وهو يخطب وعليه ثياب رقاق فقال ابو بلال انظروا الی اميرنا يلبس ثياب الفساق فقال ابوبکرة اسکت سمعت رسول الله ﷺ يقول من اهان سلطان الله فی...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

نه دی البته د موجوده زماني سلاطینو ته عادل وئیل قابلِ اعتراض دي، ﴿۱﴾ وهو الموفق

**د خطبې دوران کښې د قعدې په شکل کښې کیناستل نه مطلوب دی نه ممنوع دي**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د خطبې دوران کښې د قعدې په شکل کښې کیناستل سنت دی یا واجب او په حدیث کښې ددی متعلق څه راغلي دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: اختر اسلام نو شهره کینټ...۲۹محرم ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د خطبې په دوران کښې د قعدې په شکل کښې کیناستل نه مطلوب دی او نه ممنوع دي،

**لما فی ابی داؤد: فاذا جل فی المسجد اصحاب النبیﷺ فرأیتهم محتبین والامام یخطب (ص ۱۵۸ جلد ۱)﴿۲﴾ وقال الطحاوی فکان الاولیٰ بنا ان نحملها علی الحبوة المستانفة فی حال الخطبة لانه مکروه فی الخطبة وتکون الحبوة التی کانوا یفعلونها حبوة کانوا یستعملونها قبل الخطبة فیخطب الامام وهم فیها ﴿۳﴾.وهو الموفق**

---

**(بقیه حاشیه) الارض اهانه الله، رواه الترمذی وقال هذا حدیث حسن غریب وعن ابن عمر ان النبیﷺ قال ان السلطان ظل الله فی الارض یاوی الیه کل مظلوم من عباده فاذا عدل کان له الاجر وعلی الرعیة الشکر واذا جار کان علیه الاصر وعلی الرعیة الصبر، رواه البیهقی فی شعب الایمان. (مشکواة المصابیح ص ۳۲۱،۳۲۳ جلد ۲ کتاب الامارة)**

**﴿۱﴾قال العلامة حصکفی: ویندب ذکر الخلفاء الراشدین والعمین لا الدعاء للسطان وجوزه القهستانی ویکره تحریما وصفه بما لیس فیه. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۹۹ جلد ۱ قبیل مطلب فی قول الخطیب اعوذ بالله من الشیطان الرجیم)**

**﴿۲﴾(سنن ابی داؤد ص ۱۶۵ جلد ۱ باب الاحتباء والامام یخطب ابواب الجمعة)**

**﴿۳﴾وفی المنهاج: وقد ثبت الاحتباء عن کثیر من الصحابة والتابعون فی سنن ابی داؤد، وقال ابوداؤد لم یبلغنی ان احداً کرهها الا عبادة بن نسی،......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)**



**د جُمعې په ورځې جمات کښې ټیپ شوې تقریر**
**اورول نه مطلوب دی او نه ممنوع دي**

**سوال:** علمائې دن دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د جُمعې په ورځ د خطبې او مونځ نه مخکښې د یو عالم ټیپ شوې تقریر په ممبر باندې کیښودل او جمات کښې اورول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: متعلم جا معه حقانیه......۲۵\۲\۱۹۷۵

**الجواب:** ټیپ شوې تقریر په جمات کښې اورول نه ممنوع دی او نه مطلوب دی البته ګانې بجانې اوریدل هر ځائې کښې ممنوع دی.

**لان العکس ههنا مماثل الاصل فی الاثر المخصوص فکذا فی الحکم الشرعی کما فی حدیث النهی نعت المرءة عند زوجها وفیه کانه ینظر الیها فافهم﴿۱﴾. وهو الموفق**

**د جُمعې په خطبه کښې د حضرت امیر معاویه رضی الله عنه د نوم اخستلو حکم**

**سوال:** یو خطیب صاحب د جُمعې په خُطبه کښې د خلفائې راشدینو د نومونو سره د حضرت امیر معاویه رضی الله عنه نوم هم اخلی. د مقتدیانو د طرفه دا

---

**(بقیه حاشیه) قالوا التوفیق والله اعلم ان النهی محمول علی استیناف الحبوة فی حال الخطبة لان فی ذلک اشتغالا عن الخطبة بغیرها، والصحابة کانوا یحتبون قبلها فیخطب الامام وهم علی ما کانوا علیه من الاحتباء ففعلهم غیر الذی نهی عنه کذا فی المعارف عن مشکل الطحاوی ،اعلم ان مناط النهی هو مخافة النوم لانه یجلب النوم، علی انه هیئة لا یکون معها تمکن ،فربما تفضی الی انتقاض الطهارة فیمنعه الاشتغال بالطهارة عن استماع الخطبة مع ما یتوقع منه من الافتتان فی الصلوٰة لغلبة الحیاء ممن یخلو عن علم یسوسه وورع یحجزه کذا قال التوربشتی. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۶۲ جلد ۳ باب ماجاء فی کراهیة الاحتباء والامام یخطب)**

**﴿۱﴾عن عبد الله بن مسعود قال قال النبیﷺ لا تباشر المرأة المراة فتنعتها لزوجها کانه ینظر الیها. (الصحیح البخاری ص ۷۸۸ جلد ۲ باب لا تباشر المرأة المراة فتنعتها لزوجها)**

اعتراض اوشو چه د حضرت معاویه رضی الله عنه نوم هغه ځائې کښې اخستلې کیږي چرته چه شیعه ګان وی دلته شیعه ګان نشته دي. لهذا دا نوم دې نه اخستې کیږي نو خطیب صاحب دا جواب ورکړو چه که شیعه وی یا نه وی. دا نوم به اخستې کیږي ددې نه پس یو مقتدی اوویئیل چه د ټولو صحابه کرامو نومونه په نمبر نمبر اخله ګنی دا به هم پریخودې کیږي، نو جواب راولیږئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی ولی الرحمان خطیب جامع مسجد مانسهره ۱۹۷۷ء/۸/۱۲

**الجواب:** واضحه دې وی چه په خطبه کښې د خلفائې راشدینو او عمینو ذکر مندوب دی.

**کما فی شرح التنویر ویندب ذکر الخلفاء الراشدین والعمین(هامش ردالمحتار ص ۵۴۴ جلد ۱) ﴿۱﴾**

او د نورو صحابه کرامو ذکر (بخوصه) نه مندوب دی او نه ممنوع دې، البته د یو صحابی توهین فسق، ممنوع او ضلالت دې،

**کما فی ردالمحتار ص ۲۹۳ جلد ۳ لما فی الاختیار اتفق الائمة علی تضلیل اهل البدع اجمع وتخطئتهم وسب احد من الصحابة وبغضه لا یکون کفراً لکن یضلل الخ﴿۲﴾**

پس نه اصرار مناسب دې او نه انکار مناسب دې خاص طورسره چه کله د حضرت معاویه رضی الله عنه متعلق ډیرخلق د بدګمانئ ښکار شوی دی.وهو الموفق

## د دویم اذان او خطبې په مینځ کښې جمات د پاره چنده کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د دویم اذان نه پس د خطبې په وخت کښې دجمات دپاره چنده کولې شی ایاداجائزدی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.... ۱۹۷۱ء/۹/۲۵

**الجواب:** مناسب داده چه داذان ثانی نه مخکښې دې چنده جمع کړېشی،

---

﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۹۹ جلد ۱ باب الجمعة)

﴿۲﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۲۱ جلد۳ مطلب مهم فی حکم سب الشیخین باب المرتد)



داذان ثانی او د خطبې د ارادې نه پس چنده کول جائز دي،

**یدل علیه ما فی شرح التنویر اذا خرج الامام من الحجرة ان کان والافقیامه للصعود (شرح المجمع) قلت وفی حکمه بقاء المقرر قاعداً عند انتهاء التقریر وقصد الخطبة، قلت واماحدیث سلیک الغطفانی فقیل مخصوص وقیل لم یشرع فی الخطبة بعد توقف فلا صلاة ولا کلام خلا قضاء فائتة لم یسقط الترتیب بینها وبین الوقتیة اه ﴿۱﴾ او توقف عنها، قلت هذان التاویلان ضعیفان اما الاول فلو رود الحدیث العام واما الثانی فلعدم صحته علی مذهب الائمة وقیل منسوخ وهو الراجح عند التحقیق وللتفصیل مقام آخر﴿۲﴾. وهو الموفق**

## د جمعې په دواړو خطبو کښې تقریر کول د مونځ د پاره نقصان ورکونکې نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دجُمعې په دواړو خطبو کښې که تقریر اوکړیشی نو مونځ کښې څه نقصان راځی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عزیزالرحمان متعلم حقانیه.............۱۲۳ مارچ ۱۹۷۵

---

﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۰۵ جلد ۱ باب الجمعة)

﴿۲﴾وفی المنهاج: واجیب عن حدیث الباب بوجوه الاول ان النبی ﷺ امسک عن الخطبة فارتفع المانع...... والثانی ان ذلک کان قبل شروعه فی الخطبة ...... والثالث ان هذا الحکم مخصوص بسلیک، وفیه نظر لان الاختصاص لا یثبت بمجرد الادعاء...... والرابع انه منسوخ بما ذکرنا کما جنح الیه العینی تبعاً للطحاوی والخامس انه مرجوح لانه معارض بالمحرم الخ.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۵۹، ۶۰ جلد۳ باب فی الرکعتین اذاجاء الرجل والامام یخطب)

**الجواب:** خطبه خلافِ سنت شوه، ﴿۱﴾ په مونځ کښې هیڅ نقصان نشته دي.

وهو الموفق...

﴿۱﴾قال العلامة ابی بکر الحداد الیمنی: یخطب خطبتین یفصل بینهما بقعدة...... ومقدار الجلوس بینهما عند الطحاوی مقدار ما یحسن موضع جلوسه من المنبر وفی ظاهر الروایة مقدار ثلث آیات کذا فی الفتاویٰ قال فی النهایة وهذه القعدة عندنا للاستراحة ولیست بشرط وعند الشافعی شرط حتی لا یکتفی عنده بالخطبة الواحدة وان طالت.

(الجوهرة النیرة علی مختصر القدوری ص۱۰۷ جلد۱ باب الجمعة)

وقال الحافظ بن حجر العسقلانی: (قوله یخطب خطبتین یقعد بینهما) وصرح به فی روایة خالد بن الحارث قبل ولفظه: کان یخطب قائماً ثم یقعد ثم یقوم وللنسائی والدارقطنی من هذا الوجه کان یخطب خطبتین قائماًیفصل بینهما بجلوس...... ورواه ابوداؤد بلفظ: کان یخطب خطبتین کان یجلس اذا صعد المنبر حتی یفرغ الموذن ثم یقوم فیخطب ثم یجلس فلا یتکلم ثم یقوم فیخطب ، واستفید من هذا ان حال الجلوس بین الخطبتین لا کلام فیه...... واستدل به الشافعی فی ایجاب الجلوس بین الخطبتین لمواظبته ﷺ علی ذلک مع قوله صلوا کما رأیتمونی اصلی ...... وقال صاحب المغنی لم یوجبها اکثر اهل العلم لانها جلسة لیس فیها ذکر مشروع فلم تجب.

(فتح الباری شرح صحیح البخاری ص۴۴۱ جلد۳ باب القعدة بین الخطبتین یوم الجمعة)

وفی المنهاج: (الجلوس بین الخطبتین) وهو سنة عند الجمهور خلافا للشافعی فانه شرط عنده وهی روایة عن احمد واستدل الشافعی علی مواظبته ﷺ علیه وقال صلوا کما رأیتمونی اصلی، قلنا محض فعل الرسول لا یدل علی الفرضیة والا فیلزم ان لا نبغی فی الصلاة سنن واداب، وفی شرح التنویر یجلس بینهما بقدر ثلاث ایات علی المذهب وتارکها مسیئ علی الاصح.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۵۶ جلد۳ باب ماجاء فی الجلوس بین الخطبتین)

........



**فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به**

**فتاوی فریدیه دریم جلد**

# باب صلاة العیدین



........

بسم الله الرحمن الرحیم

عن ابن عباس رضی الله عنه

ان النبی صلی الله علیه وسلم

صلی یوم العید رکعتین

لم یصل قبلهما ولا بعدهما.

......(اخرجه السبعة)......





# باب صلاة العیدین

## په ښځو د اختر مونځ واجب نه دي

**سوال:** علمائې دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه آیا په ښځو باندې کورونو کښي یو اځي د اخترونو مونځ واجب دي یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: خائسته رحمان متعلم حقانیه.........۲۳ذی قعده ۱۳۹۴ھ

**الجواب:** په ښځو باندې د اختر مونځ واجب نه دي لکه څنګه چه جمعه واجب نه ده.﴿۱﴾

**بل یکون علم وجوب صلاة العید اولیٰ لان شانها دون شان الجمعة. وهو الموفق**

## د اخترونو په مانځه کښي د شافعی امام اقتداء صحیح ده

**سوال:** علمائې دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه شوافع د اخترمونځ د سنتو په نیت ادا کوی او احناف ئې د واجبو په نیت ادا کوي، آیا سنتو کولو والا پسې د واجب کولو والا اقتداء صحیح ده؟ بینو اتوجرو

المستفتی: الحاج عنایت ولی حقانی بنکاک....۱۹۷۴ء|۱۱|۳

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن نجیم: (قوله ولا یحضرن الجماعات) لقوله تعالیٰ وقرن فی بیوتکن وقال علیه السلام صلاتها فی قعربیتها افضل من صلاتها فی صحن دارها وصلاتها فی صحن دارها افضل من صلاتها فی مسجدها وبیوتهن خیر لهن ولانه لا یؤمن الفتنة من خروجهن اطلقه فشمل الشابة والعجوز والصلاة النهاریة واللیلیة قال المصنف فی الکافی والفتویٰ الیوم علی الکراهة فی الصلاة کلها لظهور الفساد. (البحر الرائق ص۳۵۸ جلد۱ باب الامامة)

**الجواب:** محترم الحاج عنایت ولی صاحب! بعداز سلام تا چه د کومې مسئلې متعلق تپوس کړې دهغې جواب دادې چه د اخترو مونځ زمونږ په مذهب کښې هم مختلف فیه دې، د امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله په نزد واجب دې او د صاحبینو په نزد سنت دې، لهٰذا دا اقتداء بغیر شک او شبهې نه جائز ده، برابره خبره ده که حنفی د واجبو نیت کوی یا صرف داختر دمونځ نیت کوی.

**کما فی الدرالمختار وصح الاقتداء فیه (فی الوتر) ففی غیره اولیٰ ان لم یتحقق منه ما یفسدها فی اعتقاده فی الاصح بشافعی مثلاً لم یفصله بسلام لا ان فصله علی الاصح بهما للاتحاد وان اختلف الاعتقاد، ولذا ینوی الوتر لا الوتر الواجب، قال الشامی ما معناه انه لا یلزم نیة الوجوب لا انه ممنوع منه، کما فی العیدین للاختلاف (قال العلامة الشامی ای فی الوجوب والسنة وهو علة للعیدین فقط) فلیراجع الی ردالمحتار ص۶۲۶ جلد ۱ ﴿۱﴾. وهو الصواب**

## د اختر د ورځې د پاره دمخکښې نه جامې تیارول او رقم کیښودل صحیح دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د اخترونو د ورځې دپاره د یو څیز تعین کول مثلاً پیسې کیږدی چه دا د اختر د ورځې د خرچ د پاره دي، یا جامې جوړول او کیښودل چه د اختر دپاره دي، آیا دا تعین جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمان کونړ افغانستان

**جواب: جاز اجماعاً کالوضوء قبل دخول الوقت ویدل علیه ما روی فی بعض کتب الحدیث سمنوا ضحایاکم فانها علی الصراط مطایاکم ﴿۲﴾. وهو الموفق**

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع هامش ردالمحتار ص ۴۹۳ جلد ۱ مطلب الاقتداء بالشافعی)

﴿۲﴾ (اللطائف المستحسنة بجمع خطب شهور السنة للکهنوی ص ۱۴۲ الخطبه لعید الاضحیٰ)



## د اخترونو مونځ په صحرا کښې بهتر دې او په مصر کښې متعددو مقاماتو باندې جائز دي

**سوال:** علمائې کرام دې لاندې مسئلو باره کښې څه فرمائی؟

چه د اخترونو په مونځونو کښې د محلې په جماتونو کښې تقریباً د یو نیم سل کسانو اجتماع اوشی نو آیا دا صحیح دي؟ اوکه نه شرعاً عظیم اجتماع مطلوب ده؟ او آیا د اختر د مونځ دپاره د عیدګاه د حدودو د ښار نه بهر کیدل مطلوب شرعی دي؟ که وی نو په موجوده صورتِ حال کښې د ملتان شهر غالباً یوه عیدګاه هم د ښار نه بهر نه ده، ځکه چه ملتان ښار تقریباً د هر طرفنه څلور پنځه میله ښور شوې دې اوس به څه کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد رفیق مدرسه رحیمیه خرم ګیټ ملتان شهر

**الجواب:** (۱) بهتر داده چه د آبادئ نه بهر صحرا ته د اختر د مونځ دپاره اوځی.

**فی الدرالمختار والخروج الیها ای الجبانة لصلاة العید سنة وان وسعهم المسجد الجامع هو الصحیح وفیه ایضاً الجبانة وهی المصلی العام قال العلامة الشامی ای فی الصحراء (ص۵۵۷ جلد ۱ باب العیدین) ﴿۱﴾.**

او دا اختر د مونځ دپاره جماعت ضروری دې چه د امام نه علاوه د دریو کسانو نه کم نه وی.

**فی الدرالمختار واقلها اثنان، وفی ردالمحتار ص ۳۷۲ جلد ۱ وهذا فی غیر الجمعة انتهیٰ، اما فی البحر ای فان اقلها فیها ثلثة صالحون لا امامته سوی الامام ومثلها العید لقولهم یشترط لها ما یشترط للجمعة صحة واداء سوی الخطبة ﴿۲﴾. فافهم**

(۳) او د اخترمونځ مختلفو ځایونو کښې که په ښار کښې دننه وی او که بهر وی جائز دي.

**فی الدرالمختار فی باب العیدین تؤدی بمصر واحد بمواضع کثیرة اتفاقا ﴿۳﴾. فقط**

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع هامش ردالمحتار ص ۶۱۲ جلد ۱ باب العیدین)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۰۹ جلد ۱ مطلب فی تکرار الجماعة فی المسجد باب الامامة)

﴿۳﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۱۸ جلد ۱ باب العیدین)

## د اختر دمونځ د پاره شپیته میله مزل کول د هیچا په نزد واجب نه دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په یورپ کښې زمونږ د ځائې نه شپیته میله فاصله باند لرې ورکوټې شان جمات دې هلته لږ شان مسلمانان هم دی اوس چه څه هلته د اختر د مونځ دپاره ځم نو فرض مونځ ضرور قضا کیږي، ځما دپاره هلته د اخترونو د مونځ د پاره تلل ضروری دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: گل ضمیر

**الجواب:** شپیته میله لرې ځائې ته د جُمعې یا اخترونو مونځ د پاره تلل د یو امام په نزد هم واجب نه دی. ﴿۱﴾ او خصوصاً چه په دغه تللو کښې د فرض مونځ دقضا کیدلو سخته خطره هم موجود وی. فقط

## د جُمعې او اختر مونځ کښې تداخل دائمه اربعه مذهب نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کله جُمعه او اختر په یوه ورځ راشی نو آیا د اختر مونځ او خطبه د جُمعې د مونځ او خطبې دپاره کفایت کولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی:خائسته رحمان متعلم حقانیه....۸۱۱۲۱۱۹۷۴

**الجواب:** په ائمه اربعه کښې چا په صلاة عید کښې د تداخل جُمعه قول نه دې کړې. ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ قال العلامة حسن بن عمار: ولا يجب على من كان خارج المصر ولو سمع النداء من المصر سواء كان سواده قريبا من المصر او بعيدا على الاصح فلا يعمل بما قيل بخلافه، قال الطحطاوی: قال فی الشرح تنبيه قد علمت بنص الحديث والاثر والرواية عن ائمتنا ابی حنيفة وصاحبيه واختيار المحققين من اهل الترجيح انه لا عبرة ببلوغ النداء ولا بالغلوة، والاميال وانه ليس بشئ فلا عليک من مخالفة غيره الخ.

(الطحطاوی مع مراقی الفلاح ص ۵۰۴،۵۰۵ باب الجمعة)

﴿۲﴾ قال الشامی: امامذهبنا فلزوم كل منهما قال فی الهداية...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



لان النبی ﷺ صلّٰها بلا تداخل، وما روی ان من شاء اجزأه من الجمعة فالمراد منه اهل العوالی لان النبی عليه السلام رخص لهم، نعم فی الاياب بعد صلاة العيد وما روی عن ابی الزبير وابن عباس رضی الله عنهما فمحمول على التجميع قبل الزوال او محمول على فهمهما انه (ترک الجمعة) رخصة وقد كان لاهل العوالی فقط﴿۱﴾. وهو الموفق

---

(بقيه حاشيه)ناقلا عن الجامع الصغير عيدان اجتمعا فی يوم واحد فالاول سنة والثانی فريضة ولا يترک واحد منهما قال فی المعراج احترز به عن قول عطاء تجزی صلاة العيد عن الجمعة ومثله عن علی وابن الزبير قال ابن عبد البر سقوط الجمعة بالعيد مهجور وعن علی ان ذلک فی اهل البادية ومن لا تجب عليهم الجمعة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۶۱۰ جلد ۱ باب العيدين)

﴿۱﴾ وفی منهاج السنن: (قوله وربما اجتمعا فی يوم واحد فيقرء بهما) فيه رد لزعم الجهال ان اجتماع الخطبتين يكون منحوساً، وفيه حجة على من قال بتداخل صلوٰة الجمعة فی صلاة العيد وهو عطاء بدليل ما رواه ابوداؤد من حديث زيد بن ارقم ومن حديث ابی هريرة من الرخصة فی ترک الجمعة لمن صلیٰ صلاة العيد والجواب عنه انه حديث ضعيف فی اسناد حديث زيد بن ارقم اياس بن ابی رملة وهو مجهول، وفی اسناد حديث ابی هريرة بقية وهو متهم بتدليس التسوية علا انه مضطرب رفعا وارسالاً، وعلى تقدير تسليم الصحة يقال انه عليه الصلاة والسلام رخص لاهل العوالی دون اهل المدينة كما فی رواية البيهقی وكما فی المعراج عن علی ان ذلک فی اهل البادية ومن لا تجب عليه الجمعة، وكما رواه البخاری فی باب ما يؤكل من لحوم الاضاحی وما يتزود منها عن عثمان انه قال فی خطبته يا ايها الناس ان هذا اليوم قد اجتمع لكم فيه عيدان فمن احب اَن ينتظر الجمعة من اهل العوالی فلينظر، ومن احب ان يرجع فقد اذنت له وروی مثله الحاكم عن الفاروق الاعظم.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۷۳ جلد ۳ باب القراءة فی العيدين)

## بغیر د عذر نه عیدګاه کښې مونځ نه کول خلافِ سُنت دی او د محلې په جماتونو کښې جائز دي

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بلا عذر په عید ګاه کښې مونځ نه کول او په خپلو خپلو محلو کښې ادا کول څنګه دي؟ آیا (ترک السنة نه دي؟ لکه چه په عینی او نورو کتابونو کښې دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد خلیل فاضل خیرالمدارس خطیب مسجد کلاں

**الجواب:** رسول الله ﷺ د باران د وجهې د اخترمونځ په جمات کښې کړې دي.

**کما فی ابی داؤد ص ۱۶۴ جلد ۱ عن ابی هریرة رضی الله عنه انه اصابهم مطر فی یوم عید فصلی بهم النبی ﷺ صلاة العید فی المسجد ﴿۱﴾**

او شمیر ئې نا معلوم دي،او د ګډیانو ، شلیانو دپاره جمات کښې د اختر مونځ کول جائز دي.او نورو د پاره بلا عذر خلافِ سنت دي،

**کما فی ردالمحتار ص ۷۷۷ جلد ۱ وفی الخلاصة والخانیة السنة ان یخرج الامام الی الجبانه ویستخلف غیره یصلی فی المصر بالضعفاء ﴿۲﴾،**

لیکن چه کله عیدګاه په آبادئ کښې دننه وی یا په مخکښې کیدلو او امامت کولو کښې د جهګړې خطره وی نو بیا په خپلو خپلو جماتونو کښې د اختر مونځ کول او عیدګاه ته نه تلل اهون البلیتین دي، وهو الموفق

## په آبادئ کښې دننه عیدګاه او د مسجد حکم یو شان دې.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که عیدګاه چرته په آبادئ کښې دننه وی او داختر مونځ په جمات کښې اوکړې شی نو آیا دا جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: انور ایوب ګدون صوابی..۷/۲/۱۹۸۸

**الجواب:** مسنون طریقه داده چه عیدګاه د ښار نه بهر وي، خو که بهر مناسب

﴿۱﴾ (سنن ابی داؤد ص ۱۷۱ جلد ۱ باب یصلی بالناس فی المسجد اذا کان یوم مطر)
﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۶۱۲ جلد ۱ مطلب یطلق المستحب علی السنة باب العیدین)



ځائې نه وی نو د جمات او د دننه عیدګاه یو شان حکم دي. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د اختر په مونځ کښې د خلقو د کثرت په وجه د سجده سهو پریخودل جائز دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه امامِ عید په دویم رکعت کښې تکبیرات او نه لوستل او نیغ رکوع ته لاړو د رکوع نه پس ئې بیا تکبیرات ادا کړل او بیائې رکوع اوکړه او سجده سهو ئې اونکړه، آیا دا مونځ صحیح شو یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمد رضا دره آدم خیل کوهاټ......۱۲/۱۷/۱۹۸۴

**الجواب:** که د اختر په مونځ کښې د خلقو ډیر تعداد شریک وی نو د تکرار فرض په وجه دا واجب شوې سجده سهو پریخودل جائز دی.(کما فی رد المحتار ص ۷۰۵ جلد ۱ ﴿۲﴾ وهو الموفق

## په یو ځائې کښې پرله پسې ځان ځانته د اختر مونځ کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په یو ځائې کښې یو وخت باندې چه د اختر خطبه اور ولې کیږی نو دویم جمات د اختر د پاره د شریعت په رڼا کښې جائز دي یا نه؟ زمونږ ځائې کښې تنازع او اختلاف دي نو دې دپاره شرعی حکم صادر کړئ او ددې نزاع په ختمولو کښې تعاون اوکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: سلیمان خان واه فیکټری راولپنډی......۱۲/۱۹/۱۹۷۹ء

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: والخروج الیها ای الجبانة لصلاة العید سنة وان وسعهم المسجد الجامع هو الصحیح قال الشامی ای فی الصحراء بحر عن المغرب.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۱۲ جلد ۱ باب العیدین)
﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفی: والسهو فی صلاة العید والجمعة والمکتوبة والتطوع سواء والمختار عند المتاخرین عدمه فی الاولیین لدفع الفتنة کما فی جمعة البحر.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۵۶ جلد ۱ باب سجود السهو)

**الجواب:** د اختر د مونځ د پاره د نورو د مونځونو پشان نه عیدګاه شرط دي او نه جمات، پس مناسب دا ده چه د جهګړو په وخت کښې ځان ځانته ځائي کښې «۱» یا یوځائي کښې پرله پسې دې مونځ ادا کړيشي. «۲» وهوالموفق

## د عیدینو د خطبې په ضمن کښې یا روستو د خطبې نه په هیئتِ اجتماعیه سره د دعا حکم

**سوال:** عمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د اخترونو په اولنی خطبه کښې دعا غوښتل جائز دی یا نه؟ او د خطبې نه پس دعا غوښتل څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتی: شیر محمد تله ګنګ ضلع اټک.....۲۳شوال۱۴۰۳

**الجواب:** په خطبه کښې خطیب له په عربی کښې دعا کول پکار دي «۳» او ددې نه علاوه د خطبې په اول کښې یا آخر کښې یا د اختر د مونځ نه پس په هیئت اجتماعی سره دعا غوښتل نه مطلوب دی او نه ممنوع دی «٤» وهوالموفق

---

«۱» قال الحصکفی :: ولو امکنه الذهاب الی امام آخر فعل لانها تودی بمصر واحد بمواضع کثیرة اتفاقاً. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۶۱۸ جلد۱ باب العیدین)

«۲» یوه عید ګاه کښې دویم جمات مکروه دي خود فتنې او فساد خطره که وی نو که د جهګړو د ختمولو د پاره په دغه ځائي کښې دویم جماعت منعقد کړیشي نو جائز دی. لیکن امام دویم پکار دې، اولنې امام د دویم جمات امام نشي جوړیدلې، دې صورت کښې به اهون البلیتین معمول جوړول وی. از مرتب

«۳» قال العلامة ابن نجیم : کما روی عن ابی حنیفة انه قال ینبغی ان یخطب خطبة خفیفة یفتتح بحمد الله ویثنی علیه ویتشهد ویصلی علی النبیﷺ ویعظ ویذکر ویقرأ سورة ثم یجلس جلسة خفیفة ثم یقوم فیخطب خطبة اخری یحمد الله تعالیٰ ویثنی علیه ویتشهد ویصلی علی النبیﷺ ویدعو للمؤمنین والمؤمنات کما فی البدائع.
(البحر الرائق ص۱۴۷ جلد۲ باب صلاة الجمعة)

«۴» علامه مفتی کفایت الله دهلوی فرمائی: د اخترونو نه پس دُعاغوښتلو فی الجمله ثبوت خو شته مګر د موقع د تعین سره ثبوت نشته. چه د مونځ نه پس یا د خطبې نه پس، دواړو موقعو کښې چرته په یوه موقعه [بقیه حاشیه په راروانه صفحه]



## د اختر د مونځ یا خطبې نه پس ددعا کولو متعلق قول رسول یا فعل رسول ثابت نه دي.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د احادیثو او فقهې په رڼا کښې د اختر د مونځ یا خطبې نه پس دعا ثابت ده یا نه؟ د صحیح بخاری او مسلم په روایتونو کښې د نبی ﷺ په زمانه د زنانؤ عیدګاه ته تلل او د مسلمانانو په دعا ګانو کښې شریک کیدل صراحةً موجود دي، که دا دعا اجتماعی نه ده نو د شرکت څه مطلب دې او که دعا وی نو اجتماعی به وی یا انفرادي؟ بینواتوجروا

المستفتی: مزمل حسن ګلشن اقبال کراچی.....۱۲۲شعبان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د اختر د مونځ یا خطبې نه پس د دعا کولو یا نه کولو متعلق قولِ رسولِ یا فعل رسول مروی نه دې او په حدیث کښې چه مروی دي، ویشهدن دعوة المسلمین «۱» نو دا لفظ دعا، وعظ او عبادت درې واړو ته وئیلې شی، دا رنګه صلواة استسقاء ته هم وئیلې شی صرف دعا ته نشی وئیلې نو په داسې احتمالا تو سره دلیل نیول خو ډیر ناز یبا دی لکن بیا هم د احتمال په وجه کونکی باندې سخت انکا ر کول هم مناسب نه دي،

---

[بقیه حاشیه] باندې دعا غوښتلو کښې څه مضائقه نشته دې.
(کفایت المفتی ص۲۹۹ جلد۳ چهټا باب نماز عیدین)

وقال الامام ولی الله الدهلوی: فابد لهما بیومین فیهما تنویه بشعائر الملة الحنیفیة وضم مع التجمل فیهما ذکر الله وابوابا من الطاعة لئلا یکون اجتماع المسلمین بمحض اللعب ولئلا یخلو اجتماع منهم من اعلاء کلمه الله...... وضم معه مقصداً آخر من مقاصد الشریعة وهو ان کل ملة لا بد لها من عرضته یجتمع فیها اهلها لتظهر شوکتهم وتعلم کثرتهم ولذلک استحب خروج الجمیع حتی الصبیان والنساء وذوات الخدور والحیض ویعتزلن المصلی ویشهدن دعوة المسلمین. (حجة الله البالغه ۲ : ۳۱ مبحث فی العیدین)

«۱» وفی المنهاج: (قوله ویشهدن دعوة المسلمین) وفی روایة ابی داؤد یشهدن الخیر ودعوة المسلمین والدعوة تعم الموعظة والذکر وطلب الحاجة.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۷۴ جلد۳ باب خروج النساء فی العیدین)

لا سیما اذا هو لفظ روایة البخاری فیکبرن بتکبیرهم ویدعون بدعاء هم ﴿۱﴾. فافهم

## د اختر د مونځ یا خطبې نه پس دعا کول عفو او مباح ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دعا د اختر د مونځ نه پس کول پکار دی یا د خطبې نه پس؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا مفتی زرولی خان مدرسه احسن العلوم گلشن اقبال کراچي ۲۷۱۱۲۱۱۹۸۳ھ

**الجواب:** د حضور ﷺ نه د اختر د مونځ یا خطبی نه پس د دعا کولو یا نه کولو متعلق څه روایت مونږ ته نه دې معلوم البته ظاهری طور سره نه کول راجح معلومیږی. والا لنُقل الینا، دغه شان د پیغمبر علیه السلام نه د دې د منع متعلق هم څه روایت مروی نه دې، نود قواعدو په رڼا کښې دا دُعا عفو او مباح ده. ﴿۲﴾ البته د خارجی عوارضو التزام وغیره په وجه به ناجائز وی. ﴿۳﴾ وهو الموفق

## د اختر په ورځ د مصافحې حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ ځئې کښې علماء د اختر په ورځ د مصافحې نه منع کوی او فرمائی چه د حدیث نبوی ﷺ په رڼا کښې په جمات کښې مصافحه کول حرام دي، آیا صحیح دي؟ حال دا چه د اختر په ورځ مصافحې کولو سره اکثر د شمنئ په دوستئ سره بدلیږي؟ بینوا توجروا

المستفتی: ډاکټر محمد اقبال ملاکنډ ایجنسي

---

﴿۱﴾ (صحیح البخاری ص ۱۳۲ جلد ۱ باب فضل العمل فی ایام التشریق)

﴿۲﴾ عن سلمان قال سئل رسول الله ﷺ عن السمن والجبن والفراء فقال الحلال ما احل الله فی کتابه والحرام ما حرم الله فی کتابه وما سکت عنه فهو مما عفا عنه.

(سنن الترمذی ص ۲۰۶ جلد ۱ باب فی لبس الفراء ابواب اللباس)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم: ولان ذکر الله تعالیٰ اذا قصد...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



**الجواب:** دیو خاص مونځ نه پس مصافحه کولو کښې اختلاف دې، د امام نووی او شمس حانوتی په نزد، لا باس بهٖ دي، او د صاحب در مختار میلان هم جواز طرفته دې، دابن حجر او صاحب ملتقط میلان کراهت طرفته دې، او ابن الحاج المالکی دیته بدعت وئیلې، (والروایات کلها مسطورة فی رد المحتار ص ۳۳۶ جلد ۵ ﴿۵﴾ فلیراجع، نو احتیاط په پریخودلو کښې دې: وهو الاقوٰی من حیث الدلیل،، البته په کونکو باندې دې سخت انکار نه کوی. (لوجود الروایة المبیحة، فافهم، وهو الموفق،

## دښار نه یونیم میل فاصله باندې په صحرا کښې داختر مونځ اداکول

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین د دې مسئلې باره کښې چه په مری علاقه کښې دښار نه یونیم میل فاصله باندې په غیرآباد ځائې کښې د کلونو راسې د اخترونو مونځ کیږی دلیل داورکوی چه د اختر مونځ به د ښار نه بهرپه صحرا

---

(بقیه حاشیه) به التخصیص بوقت دون وقت او بشئ دون شئ لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع.

(البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العیدین)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: حیث قال اعلم ان المصافحة مستحبة عند کل لقاء واما ما اعتاده الناس من المصافحة بعد صلاة الصبح والعصر فلا اصل له فی الشرع علی هذا الوجه ولکن لا بأس به فان اصل المصافحة سنة..... ونقل مثله عن الشمس الحانوتی وانه افتی به مستدلا بعموم النصوص الواردة فی مشروعیتها وهو الموافق ونقل فی تبیین المحارم عن الملتقط انه تکره المصافحة بعد اداء الصلاة بکل حال..... ثم نقل ابن حجر عن الشافعیة انها بدعة مکروهة لا اصل لها فی الشرع..... وقال ابن الحاج من المالکیة فی المدخل انها من البدع وموضع المصافحة فی الشرع انما هو عند لقاء المسلم لاخیه لا فی ادبار الصلوات.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۷۰ جلد ۵ باب الاستبراء وغیره)

کښې کولې شی په ښار کښې نه، اوس هلته صرف د اخترونو مونځ کیږی دجمعې نه کیږی، نوآیا دا مونځ صحیح دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: خلیل الرحمٰن مدرسه تجوید القرآن

کوه مری راولپنډی..... ۱۹۷۲ء/۱۵/۱۳

**الجواب:** په ظاهره دغه ځائې کښې دجمعې مونځ کول هم جائزدی:

**كما فى البدائع ص ٢٦٠ جلد١ وهل تجوز صلاة الجمعة خارج المصر منقطعاً عن العمران ام لا ذكر فى الفتاوىٰ رواية عن ابى يوسف ان الامام اذا خرج يوم الجمعة مقدار ميل او ميلين فحضرته الصلاة فصلى جاز وقال بعضهم لا تجوز الجمعة خارج المصر منقطعا عن العمران وقال بعضهم على قول ابى حنيفه وابى يوسف يجوز وعلى قول محمد لايجوز كما اختلفوا فى الجمعة﴿١﴾. وهوالموفق**

## عید کارډ، عید مبارکی او عید د پاره د نوو جامو د اهتمام حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې، خط یا کارډ د اختر نه مخکښې جائز دی یا نا جائز؟ (۲) د اختر په ورځ مبارکئ ورکولو شرعاً جائز دی یا نه؟ او د مصافحې څه حکم دې؟(۳) د اختر د پاره څو میاشتې مخکښې جامې جوړول او اهتمام کول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: خان محمد تنګی چارسده....... ۱۵رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** (۱) دعید کارډ یاخط په ذریعې سره مبارکی ورکول نه مطلوب دی او نه ممنوع شرعی دی بلکه مباح دی (۲) د اختر په ورځ چاته مبارکی ورکول مندوب دی، دحدیث نه ثابت دی﴿۲﴾ او د اختر د مونځ نه پس مصافحه کول

**﴿١﴾ (بدائع الصنائع ص ٥٨٦ جلد ١ فصل فى بيان شرائط الجمعة)**

**﴿٢﴾ قال العلامه سيد احمد الطحطاوى: والتهنئة بقوله تقبل الله منا ومنكم لا تنكر بل مستحبة لورود الاثر بها كما رواه الحافظ ابن حجر عن...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)**



مختلف فیه دي، لهٰذا د یکښې سختی کول مناسب نه دي، البته دکولو نه ئې نه کول احوط دی (۳) د نوو جامو اهتمام کول هم نه مطلوبِ شرعی دی او نه ممنوع.....

**ملاحظه:**..... دبې پردګئ، غیر محارمو سره مصافحه، فضول خرڅئ التزام مالایلزم ټول په ټوله شرعی منکرات دي، کوم چه د غم اوښادئ په موقعو کښې لیدلې کیږی نو مناسب داده چه ددې منکراتو مخ نیوې اوکړې شی نه دا چه د ښادئ وغیره .فافهم وهو الموفق

**(بقيه حاشيه) تحفةعيد الاضحىٰ لابى القاسم المستملى بسند حسن وكان اصحاب رسول اللهﷺ اذا التقوا يوم العيد يقول بعضهم لبعض تقبل الله مناومنكم قال ...... قول الرجل لصاحبه عيد مبارك عليك ونحوه ويمكن ان يلحق هذا اللفظ بذلك فى الجواز الحسن واستحبابه لما بينهما من التلازم. (الطحطاوى على المراقى ص ٥٣٠ باب احكام العيدين) وقال العلامة جلال الدين السيوطى: اخرج الطبرانى فى الكبير وزاهر بن طاهر فى تحفة عيد الاضحىٰ عن حبيب بن عمر الانصارى قال: حدثنى ابى قال: لقيت وائلة رضى الله عنه يوم عيد فقلت: تقبل الله منا ومنك، فقال: تقبل الله منا ومنك، واخرج الاصبهانى فى الترغيب عن صفوان بن عمرو السكسكى قال: سمعت عبد الله بن بشر، وعبدالرحمن بن عائذ، وجبير بن نفير، وخالد بن معدان يقال لهم فى ايام الاعياد: تقبل الله منا ومنكم ويقولون ذلك لغيرهم، واخرج الطبرانى فى الدعاء، والبيهقى عن راشد بن سعد ان ابا امامة ووائلة لقياه فى يوم عيد فقالا: تقبل الله منا ومنك، واخرج زاهر بن طاهر فى كتاب تحفة عيد الفطر وابواحمد الفرضى فى مشيخته بسند حسن عن جبير بن نفير قال: كان اصحاب رسول اللهﷺ اذا التقوا يوم العيد يقول بعضهم لبعض، تقبل الله منا ومنكم واخرج زاهر ايضا بسند حسن عن محمد بن زياد الالهانى قال: رأيت ابا امامة الباهلى يقول فى العيد لاصحابه تقبل الله منا ومنكم، واخرج البيهقى من طريق ادهم مولىٰ عمر بن عبد العزيز قال: كنا نقول لعمر بن عبد العزيز فى العيدين، تقبل الله منا ومنك يا امير المؤمنين فيرد علينا مثله...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)**

**د اختر په ورځ د مصافحې او معانقې نه منع کولو کښې سختی صحیح نه ده**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دعیدین نه پس مصافحه کول جائز ده یا نه؟ که ناجائز ده نو عوام الناس دد بنه منع کول ضروری دی یا نه؟ صاحب د احسن الفتاوٰی جناب مولانا مفتی رشید احمد لدهیانوی مهتمم اشرف المدارس کراچی د مذکوره فتاوی په صفحه ۱۲۸۰ کښې ددی سوال په جواب کښې د شامی حواله ورکړې لاندینې عبارت ئې نقل کړې

نقل فی تبیین المحارم عن الملتقط انه تکره المصافحة بعد اداء الصلاة بکل حال لان الصحابة ما صافحوا بعد اداء الصلوٰة ولانها من سنن الروافض، ثم نقل عن ابن الحجر عن الشافعية انها بدعة مکروهة لا اصل لها فی الشرع وانه ینبه فاعلها اولا ویعذر ثانیا...... وقال ابن الحاج من المالکیة فی المدخل انها من البدع وموضع المصافحة فی الشرع انما هو عند لقاء المسلم لا خیه لافی ادبار الصلوات فحیث وضعها الشرع یضعها فینهی عن ذلک ویزجر فاعله لما اتی به من خلاف السنة ثم اطال فی ذلک فراجعه فقط،

(بقیه حاشیه) ولا ینکر ذلک، واخرج الطبرانی فی الدعاء عن شعبة بن الحجاج قال: لقیت یونس بن عبید فقلت تقبل الله منا ومنک فقال لی مثله واخرج الطبرانی فی الدعاء من طریق حوشب بن عقیل قال: لقیت الحسن البصری فی یوم عید فقلت: تقبل الله منا ومنک، واخرج ابن حبان فی الثقات عن علی بن ثابت قال: سألت مالکاً عن قول الناس فی العید تقبل الله منا ومنک فقال: ما زال الامر عندنا کذلک لکن اخرج ابن عساکر من حدیث عبادة بن الصامت قال: سألت رسول الله ﷺ عن قول الناس فی العیدین تقبل الله منا ومنکم فقال: "کذلک فعل اهل الکتابین" وکرهه وفی اسناده عبد الخالق بن خالد بن زید بن واقد الدمشقی قال فیه البخاری منکر الحدیث، وقال ابوحاتم: ضعیف، قال النسائی: لیس بثقه، وقال الدارقطنی: متروک، وقال ابونعیم: لا شیئ. (الحاوی للفتاوی ۱: ۸۰، ۸۱ مبحث التهنئة بالعید)



اوس دا تپوس دې (۱) دا مخالفت د کومې درجې دې؟ (۲) دا مخالفت آیا د مونځ کولو نه فوراً پس د پاره دې یا د اختر پوره ورځ په دې کښې داخله ده؟ (۳) آیا معانقه په دې کښې داخله ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد رفیق مدرسه رحیمیه مسجد بیری والا ملتان شهر

**الجواب:** (۱) علامه شامی د رد المحتار په جلدِ خامس په مذکوره صفحه کښې د امام نووی او شیخ ابوالحسن بکری او شمس حانوتی وغیره نه دا مصافحه (د یو خاص مونځ نه پس) جائز او مباح لیکلې ده، او د صاحب در مختار علامه حصکفی میلان هم جواز طرفته دې لهذا دې مسئله کښې سختی نه دی کول پکار، او بهر حال نه کول افضل دي،

**لان عند التعارض یرجح المحرم ولان العوام یعتقدون ان لها خصوصیة زائدة علی غیرها ان ظاهر کلامهم انه لم یفعلها احد من السلف فی هذه المواضع ﴿۱﴾.**

(۲) کومو فقهاؤ چه دې مصافحې ته مکروه او بدعت وئیلې دهغوې اقوالو ته د مراجعت کولو نه معلومیږی ﴿۲﴾ چه کله مصافحه داولنی ملاقات په وخت کښې وی او د مصافحې کولو د وختونو متعلق په نسبت سره په نورو وختونو باندې د خصوصیت او زیات ثواب عقیده نه وی نو دې مصافحه کښې څه حرج نشته ځکه چه د تخصیص اعتمادی نه بچ کیدل ضروری دی دتخصیصِ عمل نه بچ کیدل شرعاً او عقلاً نا ممکن دی. (۳) د معانقې متعلق فقهاؤ تصریح نه ده کړې لیکن د جانبیینو نه په دیکښې دلائل جاری دی لهذا د مصافحې او معانقې حکم یوشان دې.

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۲۷۰ جلد۵ باب الاستبراء وغیره)

﴿۲﴾ مولانا رشید احمد گنگوهی فرمائي، معانقه او مصافحه د تخصیص په وجه (چه په دې ورځې باندې دا د خوشحالئ او محبت باعث او د نورو ورځو نه زیات ضروری گنړې) بدعت دې او مکروه تحریمی دی. او علی الاطلاق هره ورځ مصافحه کول سنت دی او هم په دې شرطونو سره یوم العید ده، او بناء په دې باندې په دې شرائطو سره چه نورې ورځې دې دغه شان یو معانقه ده څه تحصیص د خپل طرفنه کول بدعتِ ضلاله دې. (فتاوٰی رشیدیه ص۱۳۸ کتاب البدعات)

ملاحظه: عوامو ته د فقهاؤ د اختلاف ښکاره کولو نه دغه شان ددې حقیقت د واضحه کولو چه دې خاص مصافحه کښې د نورو وختونو نه زیات ثواب نشته. صرف په دې باندې اکتفاء کولو سره د فتنې هیڅ خطره نشته.
وهوالموفق

**د عیدین په مونځ کښې به مسبوق خپل رکعت د تکبیراتو سره پوره کوی.**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه د اخترونو په مونځ کښې مقتدی په دوئم رکعت کښې شامل شو نو فوت شوې رکعت به څنګه پوره کوي، تکبیرات به وائی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم....

**الجواب:** د امام د سلام ګرځولو نه پس به مسبوق اودریږی سورت فاتحه او سورت به اووائی او تکبیرات زائده به هم اووائی خپل رکعت به پوره کړي.

**فی الدرالمختار ولو ادرک المؤتم الامام فی القیام بعد ما کبر کبر فی الحال برأی نفسه لانه مسبوق ولو سبق برکعة یقرأ ثم یکبر لئلا یتوالی التکبیر ﴿۱﴾. وهوالموفق**

**تکبیرات تشریق د احادیثو نه ثابت دي.**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه په ایامِ التشریق کښې تکبیرات تشریق دکوم ځائې نه ثابت دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: حبیب الحق حضرو اټک..۱۹۸۶ء

**جواب: وتکبیرات التشریق فمرویة عن عائشة وابن مسعود وعلی رضی الله عنهم فلیراجع الی البدائع الصنائع ص ۱۹۵ جلد ۱ ﴿۲﴾. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۱۶ جلد ۱ باب العیدین)

﴿۲﴾ قال العلامة کاسانی: اتفق شیوخ الصحابة نحو عمر وعلی وعبد الله بن مسعود وعائشة رضی الله عنهم علی البدایة بصلاة الفجر من یوم ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



**تکبیرات تشریق په منفرد او ښځه دواړو باندې واجب دي**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه تکبیرات تشریق خو با جماعت مونځ نه پس په سړو باندې واجب دی آیا دا په ځانته مونځ کونکي او ښځو باندې هم واجب دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل مالک سوریزی پایان پشاور..۱۹۹۴ء

**الجواب:** د مفتی بهٖ قول په بناء تکبیراتِ تشریق په ځانته کس او ښځو باندې هم واجب دي، البته ښځه به جهر نه کوي، ﴿۱﴾ وهوالموفق

**د مفتیٰ به قول په بناء تکبیراتِ تشریق د عرفې د سحر نه تر د ۱۳ ذی الحجة عصر پورې دي.**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد تکبیرات تشریق د عرفې د سحر نه د لسمې ذی الحجې د عصر پورې واجب دي، او د صاحبینو په نزد د عرفې د سحر نه ۱۳ ذی لحجې د عصر پورې واجب دي، په دیکښې مفتی بهٖ قول کوم یو دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عبدالرحیم قلعه سیف الله......۱۹۹۰ء|۱۰|۱۰

---

(بقیه حاشیه) عرفة وبه اخذ علماؤنا، قلت اما روایة ابن مسعود وعلی ذکره محمد بن الحسن فی کتابه الاثار ص ۴۲ برقم ۲۰۸ والحاکم فی المستدرک ص ۲۹۹ جلد ۱ رقم: ۳۰۰، واما روایة عمر فاخرجه الحاکم فی المستدرک ص ۲۹۹ جلد ۱ فی کتاب العیدین.

(بدائع الصنائع ص ۴۵۸ جلد ۱ فصل فی وجوب التکبیر ایام التشریق)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ووجوبه علی امام مقیم بمصر وعلی مقتد مسافر او قروی او امرأة بالتبعیة لکن المرأة تخافت ویجب علی مقیم اقتدیٰ بمسافر وقالا بوجوبه فور کل فرض مطلقا ولو منفردا او مسافر او امرأة لانه تبع للمکتوبة الی عصر الیوم الخامس آخر ایام التشریق وعلیه الاعتماد والعمل والفتویٰ فی عامة الامصار.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۲۰ جلد ۱ باب العیدین)

**الجواب:** مفتٰی بهِ مذهب د صاحبینو دي.

کما فی الدرالمختار ص ۵۸۹ جلد ۱ باب العیدین ﴿۱﴾ وعلیه الاعتماد وعلیه العمل والفتویٰ فی عامة الامصار وکافة الاعصار. وهوالموفق

## په تکبیرات تشریق کښې مفتیٰ به قول د صاحبینو دي

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه په تکبیراتو د ایام تشریق کښې مفتٰی به قول د صاحبینو دي یاد امام ابوحنیفه رحمه الله؟ بینوا توجروا

المستفتی: لعل محمد بلوچستانی...... ۱۲۲ محرم ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** مفتٰی به مذهب د صاحبینو دي.﴿۲﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: وقالا بوجوبه فور کل فرض مطلقا ولو منفردا او مسافرا او امرأة لانه تبع للمکتوبة الی عصر الیوم الخامس آخر ایام التشریق وعلیه الاعتماد والعمل والفتویٰ فی عامة الامصار وکافة الاعصار.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۲۰ جلد ۱ باب العیدین)

﴿۲﴾ قال العلامة جلال الدین الخوازمی: بعد تفصیل المسئلة وذکر العلامة نجم الدین الزاهدی فی شرحه للقدوری والفتویٰ والعمل فی عامة الامصار وکافة الاعصار علی قولهما.

(الکفایة فی ذیل فتح القدیر ۲: ۴۹ فصل فی تکبیرات التشریق ومثله فی الهندیة ۱: ۱۵۲ والتاتارخانیة ۲: ۱۰۲۱)





# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه دریم جلد

# کتاب الجنائز



.............

بسم الله الرحمن الرحيم

.....قال الله تعالى.....

أَلْهٰكُمُ التَّكَاثُرُ ۝ حَتّٰى زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ ۝

(التكاثر)

............

عن ابي هريرة رضى الله عنه قال:

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم

اكثروا ذكر هاذم اللذات: الموت

(رواه الترمذى والنسائى وابن حبان والحاكم وابن عدى)

............



# كتاب احكام الجنائز

## باب صلاة الجنائز

### د يو مسلمان بې جنازې دفن كولو سره به ټول خبر شوې مسلمانان گناهنگار وي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څۀ فرمائى چه يو مسلمان د جنازې مستحق بغير د جنازې نه دفن كړې شونو دې گناه په چا ده؟ بينوا توجروا

المستفتى: مولانا نورجنان صاحب سرائې نورنگ بنوں

**الجواب:** كوم كس چه شرعاً د جنازې مستحق وى دهغه بغير جنازې دفن كولو باندې به ټول خبر شوې خلق گنهگاروي، كه مقامى خلق وى او كه غير مقامى.(لانهم تاركوا الفرض﴿۱﴾ وهوالموفق

### د جنازې په مونځ كښې عدمِ تاخير افضل دې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه د جنازې مونځ مؤخر كول جائز دى يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتى: مولوى صالح موسٰى زئى شريف......۱۲ ربيع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د جنازې په مونځ كښې عدمِ تاخير افضل دې، لـما فى الهندية ص۵۴ جلد۱ لكن

---

﴿۱﴾ وفى فتاوىٰ الهندية: الصلاة على الجنازة فرض كفاية اذا قام به البعض واحدا كان او جماعة ذكرا كان او انثى سقط عن الباقين واذا ترك الكل أثموا هكذا فى التتار خانية.

(فتاوىٰ عالمگيرية ص ۱۶۲ جلد ۱ الفصل الخامس فى الصلاة على الميت)

الافضل فی سجدة التلاوة تاخیرها وفی صلوة الجنازة التاخیر مکروه هکذا فی التبیین
﴿۱﴾ وفی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ص۳۲۷ جلد ۱ وفی التحفة الافضل
ان لا توخر الجنازة﴿۲﴾. وهو الموفق

## په جنازه کښې دعوامو د طرفه مقرر قاضی په امام الحی باندې مقدم دې

**سوال:** علماې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې یو قاضی صاحب د پلار نیکه د وختونه دشرعی فیصلو کولو د پاره هم داسې قاضی راروان دې، او په پلار نیکه به ئې دې خلقو جنازې کولې، اوس قوم هم دا قاضی صاحب د شرعی فیصلو دپاره منتخب کړې دې نو ددې قاضی په موجود ګئ امام الحئ دجنازې د مونځ مجاز دې یا نه.؟ بینوا توجروا ..

المستفتی: قاضی اشرف خان باڑہ ایجنسی.............. ۲۱\۵\۱۹۸۴ء

**جواب:** صریح جزئیہ یافتہ نہ شد البتہ مقتضائے نظائر این ست کہ این قاضی مقرر شدہ از جانب عوام مقدم برامام الحی است، ونظیره تقدیم الخطیب الذی نصب من العامة علی امام الحی ﴿۳﴾ والوجه فیه ان الرضاء علی تقلیمه کالعبارة بخلاف تقدم امام الحی فانه کالرضاء بالدلالة. فافهم. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ص ۵۲ جلد ۱ الفصل الثالث فی بیان الاوقات التی لا تجوز فیها الصلاة وتکره فیها)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۷۵ جلد ۱ کتاب الصلوٰة)

﴿۳﴾ قال الحصکفی: واختلف فی الخطیب المقرر من جهة الامام اعظم او من جهة نائبه هل یملک الاستنابة فی الخطبة فقیل لا مطلقا ای لضرورة اولا الا ان یفوض الیه ذلک وقیل ان لضرورة جاز والا لا وقیل نعم یجوز مطلقا بلا ضرورة لانه علی شرف الفوات لتوقة فکان الامر به اذنا بالاستخلاف دلالة ولا کذلک القضاء ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## په جنازه کښې فاتحه لوستل او د احنافو مذهب

**سوال:** په مړې باندې چه کومه جنازه کولې شی که دا مونځ وی نو دې کښې سورت فاتحه ولې نه لوستلې کیږې، شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله په آشعة اللمعات کښې لیکلې دی چه په جنازه کښې دې سورت فاتحه او لوستلې شی نو حنفی مذهب ددې اجازت ولې نه دې ورکړې؟ اوکه دا دعا وی نو د دعا نه پس ددعا څه ضرورت دې؟ اوحال دا چه په کتابونو کښې ئې د جنازې نه پس دعا مستحب لیکلې؟ بینوا توجروا .

المستفتی: مولوی عبدالمتین خادم جامع مسجد میاں عمرصاحب چمکنی پشاور ۱۴ جون ۱۹۸۴ء

**الجواب:** په بدائع وغیره کښې لیکلې شوی دی چه د احنافو په نزد په جنازه کښې سورت فاتحه د ثنا په طورسره لوستل جائز دي، ﴿۱﴾ اود ابوداؤد شریف حدیث ؒاذا صلیتم علی المیت فاخلصوا له الدعاء، ﴿۲﴾ په بنا باندې اذکار په جنازې کښې اصل دعا ده اود داخلی دعا نه پس خارجی دعا ممنوع نه ده، ﴿۳﴾ کما فی الصلوات الخمسة....الخ،، وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) وهو الظاهر من عباراتهم الخ.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۹۲ جلد ۱ مطلب فی جواز استنابة الخطیب)

وقال الشرنبلالی: وفی التبیین عن جوامع الفقه امام المسجد الجامع اولی من امام الحی انتهیٰ، والصلوٰة فی الاصل حق الاولیاء لقربهم الا ان الامام والسلطان یقدمان لعارض الامامة العظمیٰ والسلطنة فان التقدم علیهما فیه ازدراء وفساد امر المسلمین فیتحاشا عن ذلک الفساد فیجب تقدیم من له حکم عام.
(امداد الفتاح ص ۶۲۲ فصل فی بیان الاحق بالصلوٰة علی الجنازة)

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: وعندنا لو قرأ الفاتحة علی سبیل الدعاء والثناء لم یکره.
(بدائع الصنائع ص ۵۲ جلد ۲ فصل فی بیان کیفیة الصلاة علی الجنازة)

﴿۲﴾ (سنن ابی داؤد ص ۱۰۰ جلد ۲ باب الدعاء للمیت کتاب الجنائز)

﴿۳﴾ وفی المنهاج: قد ثبت الدعاء بعد صلاة الجنازة ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## په جنازه کښې د امام څلورو تکبیرونو نه زیات وئیل

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په جنازه کښې څلور تکبیرونه دی که امام په غلطئ سره پنځه تکبیرونه اولولی نو آیا دا جنازه به جائز دې؟ بینو اتوجرو

المستفتی: جان محمد صاحب هاتیان مردان....۱۲شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په پنځه تکبیرونو کولو سره جنازه کښ نقصان نه راځی البته په زیاتی تکبیرونو کښې دې مقتدی د امام سره تکبیر نه کوی او په سلام ګرځولو کښې به ددغه امام سره شریک کیږی. (ماخوذ از شرح التنویر علی هامش رد المحتار (ص ۵۸۶ جلد ۱) ﴿۱﴾ وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) ممن فاتة الجنازة مثل ابن عمرو عبد الله بن سلام، و اما الدعاء ممن صلی علیها فذخیرة الاحادیث ساکتة عنه فمن ادعی انه علیه الصلاة و السلام دعا بعدها او ادعی انه لم یدع بعدها فدخل فی حدیث من کذب علی متعمدا فلیتبوء مقعده من النار ولوقال الخصم لو دعا بعدها لبلغ الینا، لجاز لنا ان نقول لو لم یدع لبلغ الینا کما بلغ الینا انه ما اذن و ما اقام لصلاة العید، وبالجملة انه لا بد من الفرق بین عدم الروایة وبین روایة العدم. نعم منع عنه الفقهاء واکثرهم لم یذکروا دلیل المنع، والبعض عللوا المنع بالزیادة علی الجنازة، والبعض الآخر عللوه بتکرار الجنازة، و کلتا القبیحتین انما تلزمان اذا دعا قائما فی الصف دون بعد کسر الصف وکذا اکثر الفقهاء یعبرون بلفظ طویل ای لا یقوم بالدعاء ولا یعبرون بلفظ مختصر ای لا یدعو. فیکون الدعاء بعد کسر الصف عفواً ومباحا لحدیث ماسکت عنه فهو عفو رواه ابوداؤد، نعم کم من مباح یصیر ممنوعا لعارض مثل الالتزام وغیره واعلم ان الفقهاء الحنفیة یعللوا هذا المنع بانه لم یوجد فی خیر القرون فانه دلیل سلفی منقوض جمعاً ومنعاً.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۱۶ جلد ۴ باب ماجاء فی الصلاة علی القبر)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی : ولو کبر امامه خمسا لم یتبع لانه منسوخ فیمکث المؤتم حتی یسلم معه اذا سلم به یفتی. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۴۵ جلد ۱ باب صلاة الجنائز)



## د جنازې نه منع کونکی د ې توبه تائب شی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوڅو کسان د یو مسلمان د جنازې نه با قی کلې والا منع کوی. چه تاسو به شرکت نه کوئ. او ددې رویې نه ګیر چاپیره خلق هم متاثره کیږی اود جنازو نه منع کیږي، نو جنازه چه فرضِ کفایه ده که د کولو دا سلسلهٔ ې دغه شان بنده شي. نو په قلاره قلاره به د فرض عین خاتمه هم اوشي، منع کونکی با اثره خلق دي، د هغوی سره مونږ له څنګه رویه اختیارول پکار دي، او په شریعت کښې ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالمنان هزاره...۲۴نومبر ۱۹۷۴ء

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دا مانعین ګنهګاران او مجرمان دی.

**قال الله تعالیٰ: ولا تطع کل حلاف مهین هماز مشآء بنمیم مناع للخیر (الآیة)﴿۱﴾**

**وقال : القیا فی جهنم کل کفار عنید مناع للخیر (الآیة) ﴿۲﴾**

دهغوې دپاره توبه ضروری ده، وهوالموفق

## د جنازې نه پس د دُعا حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د دُعا بعد الجنازه څه حکم دې؟ د شریعت په رڼا کښې فتوٰی صادره کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: نائب صدر اصلاحی کمیټی نوشهره...۲۳محرم ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دعا بعد الجنازه د صفونو ماتولو نه مخکښې په التزام سره کول بدعت دې، اوبغیرد التزام نه بدعت نه دې، البته دعا قبل السلام باندې اکتفاء کول افضل اود سلفو دتعامل په وجه اوفق دې، او بعد السلام بعد کسر الصوف بلا

---

﴿۱﴾ (سورة القلم پاره: ۲۹ آیت: ۱۲ رکوع: ۳)

﴿۲﴾ (سورة ق پاره: ۲۶ آیت: ۲۴ رکوع: ۱۶)

التزام ممنوع نه دی. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په جنازه کښې درې صفونه جوړول افضل دی او د کثرت په صورت کښې طاق جوړول انسب دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په جنازه کښې صفونه طاق ساتل مستحب دی یا سنت؟ او بعضې خلق وائی چه شرکاء جنازه ډیر وی نو بیا طاق صفونه جوړول مستحب نه پاتې کیږی آیا دا صحیح دي؟ بینواتوجروا

المستفتی: زاهد حسین پبی نوشهره.........۲۱ ربیع الاول ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د جنازې په مونځ کښې درې صفونه جوړول افضل دي، (سنتِ زائده او مستحب دي)

لحدیث ما من مسلم یموت فیصلی علیه ثلاثة صفوف من المسلمین الا اوجب فکان مالک اذا استقل اهل الجنازة جزأهم ثلثة صفوف وفی روایة فتقال الناس علیها جزاهم ثلاثةاجزاء (مشکوٰة ص ۱۶۲ جلد ۱) ﴿۲﴾ وفی ردالمحتار ص ۸۱۸ جلد ۱ ویستحب ان یصف ثلاثة صفوف ﴿۳﴾

که شرکاء ډیر وی نو د هغې متعلق تصریح ملاؤ نه شوه، البته په (ان الله وتر

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: وقید بقوله بعد الثالثة لانه لا یدعو بعد التسلیم کما فی الخلاصة وعن الفضلی لا بأس به.

(البحر الرائق ص ۱۸۳ جلد ۲ فصل السلطان احق بصلاته، کتاب الجنائز)

وقال الشرنبلالی: ویسلم وجوباً بعد التکبیرة الرابعة من غیر دعاء بعدها فی ظاهر الروایة واستحسن بعض المشائخ ان یقال ربنا آتنا فی الدنیا حسنة وفی الآخرة حسنة وقنا عذاب النار اور بنا لا تزغ قلوبنا بعد اذ هدیتنا وهب لنا من لدنک رحمة انک انت الوهاب.

(امداد الفتاح ص ۶۲۰ مطلب سنن الجنازة)

﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۱۴۷ جلد ۱ باب المشی بالجنازة الفصل الثالث)

﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۶۴۵ جلد ۱ مطلب هل یسقط فرض الکفایة بفعل الصبی باب صلاة الجنازة)



ویحب الوتر ﴿۱﴾، حدیث باندې عمل کول انسب دي، چه کله حرج نه وي، وهوالموفق

## په جنازې کښې د امام په زوره سره دعا لوستل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په یوه جنازه کښې پیش امام د آخری تکبیر نه پس دُعا په ښکاره اووئیله، د سلام ګرځولو نه پس نورو علماؤ د جنازې نه کیدلو فتوٰی ورکړه او په دویم ځل جنازه اوکړې شوه، آیا په دې وجې سره به جنازه په دویم ځل کولې شي؟ بینواتوجروا

المستفتی: شیخ عطاء محمد

**الجواب:** واضحه دې وی چه د جنازې ارکان تکبیرات دي، او دعا ګانې وغیره لوستل مسنون دي، او په هغې کښې پټوالې کول هم د مونځ پشان مسنون دي ﴿۲﴾ او په بعضې وختونو کښې د پیغمبر علیه السلام نه جهرهم ثابت دې ﴿۳﴾ لهذا دې خلافِ سنت کار په وجه باندې جنازه راګرځول خلافِ سنت دي، (ولم اجده صریحا مع تتبع بلیغ ولذا اجبت بحسب مااقتضاه القواعد والاصول، وهوالموفق

﴿۱﴾ (صحیح البخاری ص ۹۴۹ جلد ۲ باب لله تعالیٰ مأة اسم غیر واحد قبیل کتاب الرقاق)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ویسلم بلا دعاء بعد الرابعة تسلیمتین ناویاً المیت مع القوم ویسر الکل الا التکبیر ذیلعی وغیره لکن فی البدائع العمل فی زماننا علی الجهر بالتسلیم.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۴۴ جلد ۱ باب صلاة الجنازة)

وقال العلامة ابن نجیم: ولا یجهر بما یقرأ عقب کل تکبیرة لانه ذکر والسنة فیه المخافة کذا فی البدائع وفیه وهل یرفع صوته بالتسلیم لم یتعرض له فی ظاهر الروایة وذکر الحسن بن زیاد انه لا یرفع لانه للاعلام ولا حاجة له لان التسلیم مشروع عقب التکبیر بلا فصل ولکن العمل فی زماننا علی خلافه. (بحر الرائق ۲: ۱۸۴ فصل السلطان احق بصلاته)

﴿۳﴾ وعن ابن عباس انه صلی علی جنازة فقرأ فیها بفاتحة الکتاب وجهر بها. اخرجه الشافعی فی مسنده ص ۵۷۹ جلد ۱ والبخاری فی صحیحه ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## په قبرستان کښې د جنازې د مونځ حکم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې خلق وائی که د جنازې مخې ته مقبره وی یا هسې قبرونه وی نو مونځ او جنازه نه کیږی.

**لان فیه تشبیه مع اهل الکتاب...... ویکره فی معاطن الابل والمزبله والمجرزه والمغتسل والحمام والمقبرة وعلی سطح الکعبة، وعن ابی مرثد قال قال رسول اللهﷺ لا تجلسوا علی القبور ولا تصلوا الیها لان فیه استخفاف (رواه مسلم) ولان فیه تعظیماً بلیغاً،**

دویمه خبره داده چه کومې مسئلې د مونځ دی هغه د جنازې هم دې، نو کوم طرفته چه مونځ نه کیږی جنازه به هم نه کیږي. د قاضی خان په حوالې سره مشکوٰة ص ۱۲۲ منیة المصلی ص ۲۸۱ فتاوٰی ودودیة وضاحت اوکړئ او اطمینان راکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید مجاب استاد ګنډهیری نوشهره.....۲۷/نومبر ۱۹۷۴ء

**جواب: اختلف الاکابر فی کراهیة صلوٰة الجنازة عند القبور القریبة بلا حائل ﴿۱﴾ والظاهر عدم الکراهیة لان النبیﷺ صلی علی بعض**

(بقیه حاشیه) فی الجنائز باب قراء ة فاتحة الکتاب علی الجنائز برقم: ۱۳۳۵ ، وابوداؤد فی سننه فی الجنائز باب ما یقرأ علی الجنازة والترمذی فی جامعه فی الجنائز والنسائی فی المجتبیٰ من السنن والحاکم فی المستدرک.

(حاشیه بدائع الصنائع ص ۵۲ جلد۲ کیفیت صلاة الجنازة)

﴿۱﴾ بدائع الصنائع کی دی: قال ابو حنیفة ولا ینبغی ان یصلی علی المیت بین القبور وکان علی وابن عباس یکرهان ذلک وان صلوا اجزأهم لما روی انهم صلوا علی عائشة وام سلمة بین مقابر البقیع (ص ۶۵ جلد۲ سنن الدفن)

په فتاوی دارالعلوم دیوبند ص ۳۶۷ جلد ۵ کښې دی کوم ځائې کښې چه څلور طرفونه ته قبرونه وی نو د جنازې مونځ یا فرض مونځ کول مکروه دي، او په امداد الفتاوی ص ۵۰۱ باب الجنائز کښې دی د قبر طرفته چه کوم مونځ مکروه دي نو په دې وجه چه هغه په مړی مشتمل دې چه دعبارت دغیرالله احتمال پکښې دي، او په جنازې کښې خو پخپله خامخ مړې کیښودې شوې دې نود قبرمخې ته کیدل خو [بقیه حاشیه په راروانه صفحه]



**القبور ﴿۱﴾. ولان التشبیه لا یتأتی بالقیام البحت فافهم ﴿۲﴾ ولم اجده صریحاً. وهو الموفق**

## د مرتکب کبائر د جنازې حکم

**سوال:** ما حکمکم دام مجدکم درحق کسے کہ یک مرد گواہی نہ میدہد کہ زید نماز فرض گزارد، یا صوم رمضان داشتہ، نیز مرتکب کبائر باشد چوں بمیرد مسلمانان نماز جنازہ بریں زید مذکور گزارند یا نہ؟ زجراً یا حقیقتاً؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد سهیل ضلع کوهاټ.....۱۴ نومبر ۱۹۷۴:

**الجواب:** د بعضې قسمونو نه علاوه د ټولو مسلمانانو جنازه کول فرض دي،

**قال رسول اللهﷺ صلوا علی کل بر وفاجر رواه ابوداؤد ﴿۳﴾ وفی الدر المختار وهی**

[بقیه حاشیه] بدرجه اولی صحیح دي، دا خو تحقیقی جواب دې او سائل چه په خط کښې د بعضې غیر مقلدینو نه نقل کړې دی چه هغوی قبرونو سره نزدې په جنازې باندې د عدمِ جواز حکم لګولې دې که هغوی انصاف والا وی نو د هغوی د جواب د پاره دا حدیث کافی دې کوم چه شیخینو روایت کړې دې؛

عن ابن عباس ان رسول اللهﷺ مر بقبر دفن لیلا فقال متی دفن هذا قالوا البارحة قال افلا اذ نتمونی قالوا دفناه فی ظلمة اللیل فکر هنا ان نوقظک فقام فصففنا خلفه فصلی علیه،

اوګورئ په دې حدیث کښې تصریح ده چه پیغمبر علیه السلام د جنازې مونځ داسې اوکړو چه قبر ئې مخې ته وو. اوکه هغوی اعتساف والا وی نو د هغوی سره خطاب بیکاره دې خپله تسلی اوکړه او عمل کول پکار دی. انتهي

﴿۱﴾ عن ابن المسیب ان النبیﷺ صلی علی قبر ام سعد بن عبادة بعد شهر. (جامع ترمذی ص ۱۲۳ جلد۱ باب ماجاء فی الصلوٰة علی القبر)

﴿۲﴾ قال الکاسانی: ان صلاة الجنازة لیست بصلاة علی الحقیقة انما هی دعاء واستغفار للمیت الا تریٰ انه لیس فیها الارکان التی تترکب منها الصلاة من الرکوع والسجود الا انها تسمی صلاة لما فیها من الدعاء واشتراط الطهارة واستقبال القبلة فیها لا یدل علی کونها صلاة حقیقة کسجدة التلاوة ولا نها لیست بصلاة مطلقة فلا یتناولها مطلق الاسم. (بدائع الصنائع ص ۵۳ جلد۲ کیفیت صلاة الجنازة)

﴿۳﴾ (سنن ابی داؤد ص ۳۵۰ جلد۱ باب فی الغزو مع ائمة الجور کتاب الجهاد)

فرض علی کل مسلم مات خلا اربعة بغاة وقطاع طریق الخ ﴿۱﴾

نو لهٰذا تاسو د دې کبائرو فهرست راولیږئ چه مونږ د جنازې د صحیح والی یا نه صحیح والی حکم ورکړې شو، وهو الموفق

## په شیعه د جنازې حکم

**سوال:** علمائې دین د دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه شیعه کله مړ شی نو اهل سنت د هغه جنازه کولې شی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نا معلوم... ۱۹۸۲ء۱۰۱۹/۳

**الجواب:** کوم شیعه ګان چه د ضروریاتِ دین نه انکاری وي، مثلاً حضرت علی رضی الله عنه پیغمبر مني، د صدیق اکبر رضی الله عنه د صحابی کیدلو نه انکار کوی. یا په حضرت عائشه رضی الله عنها باندې بُهتان لګوی امامت ته په نبوت باندې فوقیت ورکوي، یا یو غیر الله ته علمِ کلی ثابتوي، وغیره نو داسې شیعه باندې جنازه کول حرام دی او داسې شیعه ګان کافران دی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د قرض خواه د طرفه قرض دار باندې د جنازې بندولو هیڅ حق نشته

**سوال:** علمائې دین د دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه قرض خواه د خپل دولت په غرور کښې د مقروض متوفی د توهین د پاره امام صاحب د جنازې کولو نه منع کولې شي؟ او جنازه بندولې شی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.........

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۴۲ جلد ۱ باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین: نعم لا شک فی تکفیر من قذف السیدة عائشة رضی الله تعالیٰ عنها او انکر صحبة الصدیق او اعتقد الالوهیة فی علی او ان جبریل غلط فی الوحی او نحو ذلک من الکفر الصریح المخالف للقرآن. (ردالمحتار ص ۳۲۱ جلد ۳ مطلب فی حکم سب الشیخین)



**الجواب:** (الف) قرض خواه د پاره د احق نشته چه د امام وغیره د جنازې نه منع کړې ځکه چه پیغبر علیه السلام به په ابتداء کښې په بعضې مقروضینو باندې د جنازې نه کولو اراده لرله نو نورو مسلمانانو ته به ئې حکم اوکړو چه تاسو په ده جنازې اوکړئ (کما فی حدیث متفق علیه والاقال للمسلمین صلوا علی صاحبکم

(ب) پیغمبر علیه السلام د ا تعلیظ او تشدید تر آخره پورې جاری اونه ساتلو بلکه اخره کښې ئې بند کړې وو،

**یدل علیه کما ورد فی ذلک الحدیث فلما فتح الله علیه الفتوح قام فقال انا اولیٰ بالمؤمنین من انفسهم فمن توفی من المؤمنین فترک دینا فعلی قضاء ه ومن ترک ما لا فهو لورثته ﴿۱﴾.**

(ج) د قرض خواه بندول په دې زمانه کښې ثابت نه دی. (د) فقهائې کرامو په مدیون او داسې مقروض باندې دجنازې نه کولو استثناء نه ده کړې، (فلیراجع الی الهندیة ص ۱۷۲ جلد ۱ ورد المحتار ص ۸۱۴ جلد ۱ ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د منکوحة الغیر سره د نکاح کولو والا د جنازې حکم

**سوال:** علمائې دین د دې مسئلې با ره کښې څه فرمائی چه یوه ښځه د یو سړی نکاح کښې ده، او د هغه سړی په مجود ګئ کښې دا ښځه بل ځائې کښې واده اوکړی او ژوند تیروی په دې دوران کښې یا دا دویم خاوند مړ شی نو د هغوی جنازه کیدیشی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ماصل خان کتی میانه.........۸ فروی ۱۹۷۵

﴿۱﴾ (جامع الترمذی ص ۱۲۷ جلد ۱ باب ماجاء فی المدیون ابواب الجنائز)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: اقول قد یقال لا دلالة فی الحدیث علی ذلک لانه لیس فیه سوی انه علیه الصلاة والسلام لم یصل علیه فالظاهر انه امتنع زجرا للغیر عن مثل هذا الفعل کما امتنع عن الصلاة علی المدیون ولا یلزم من ذلک عدم صلاة احد علیه من الصحابة. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۶۴۳ جلد ۱ مطلب هل یسقط فرض الکفایة بفعل الصبی باب صلاة الجنازة)

**الجواب:** کومه ښځه چه نه خاوند آزاده کړې وی او نه مسلمان حاکم باقاعده د نکاح تنسیخ کړې وی نو دې ښځې سره نکاح کول قطعی حرام دي، (قال الله تعالی والمحصنٰت من النساء الخ﴿۱﴾ که دا جوړه خپل ځان حرام کار او ګنهګار ګڼړی نو عوام دې جنازه اوکړی خواص نه ﴿۲﴾ اوکه خپل ځان حلال ګڼړی نو دا ښځه خاوند به بغیر جنازې نه کفن دفن کولې شی. ﴿۳﴾ وهوالموفق

## د منکوحة الغیر ساتلو والا جنازه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که یو سړې منکوحة الغیرځان سره ساتی اودهغې نه بچې هم پیداشوی وي، دداسې سړی دجنازې څه حکم دې؟ اود داسې سړی د لور سره نکاح صحیح ده یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اشرف عفی عنه ډاګئ یار حسین صوابي

**الجواب:** که یو کس حلال ګڼړونکې وی او خپل ځان ګنهګار نه ګڼړی نو د کفر د وجې نه﴿۱﴾

---

﴿۱﴾(سورة النساء پاره:۵ آیت :۲۴ رکوع ۱)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: ظاهر حدیث النسائی اما انا فلا اصلی علیه حجة لاحمد، ان الامام لا یصلی علیه، ویصلی علیه غیر الامام لحدیث والصلاة واجبة علی کل مسلم برا کان او فاجراً وان عمل الکبائر رواه ابوداؤد، وعند ابی حنیفة ومالک واحمد یصلی علیه بلا تخصیص وحدیث الباب واقعة عین لا عموم لها، فیحمل علی الزجر کما انه علیه السلام فی اول الامر لا یصلی علی بعض المدیونین زجراً. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۳۶ جلد ۴ باب ماجاء فی من یقتل نفسه لم یصل علیه)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: وقال من استحل حراما قد علم فی دین النبی علیه الصلاة والسلام تحریمه کنکاح المحارم فکافر.

(ردالمحتار ص ۲۹ جلد ۲ مطلب استحلال المعصیة القطعیة کفر باب زکاة الغنم)

﴿۴﴾ قال العلامة ابن عابدین: وقال من استحل حراما قد...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



سوم جلد 15

په ده باندې جنازه کول صحیح نه دی. ﴿۱﴾ اوکه دا ښځه هم دا کار حلال ګڼړی نو د هغې د لور سره هم قبل الاسلام نکاح صحیح نه ده. ﴿۲﴾ او د هغې شهادت د استحلال په وخت کښې مردود دې، او د عدم استحلال په وخت کښې به ئې د فاسق په شان حکم وي، وهوالموفق

## د مړی سر جنوب ته او خپې شمال ته کول او جنازه کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو امام په لاپروهئ کښې جنازه کوله نو د مړی سرئې جنوب ته او خپې ئې شمال ته کړې او جنازه ئې اوکړه مړې ئې خخ کړو، آیا دا جنازه شوې ده یا نه؟ او په دې کښې ګنهګار مقتدیان دی که امام صاحب؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** په دې صورت کښې جنازه اوشوه اګرچه خلاف سنت ده او چه کله په دې کار کښې عمد او قصد نه وی نو هیڅ قسم ګناه هم نشته دې. ﴿۳﴾ وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) علم فی دین النبی علیه الصلاة والسلام تحریمه کنکاح المحارم فکافر.

(ردالمحتار ص ۲۹ جلد ۲ مطلب استحلال المعصیة القطعیة کفر باب زکاة الغنم)

﴿۱﴾ وقال العلامة شرنبلالی: وشرائطها ستة اولها اسلام المیت لقوله تعالیٰ ولا تصل علی احد منهم مات ابداً، یعنی المنافقین وهم الکفرة ولانها شفاعة للمیت اکراما له وطلبا للمغفرة والکافر لا تنفعه شفاعته ولا یستحق الاکرام. (امداد الفتاح ص ۶۱۷ فصل فی صلاة الجنازة)

﴿۲﴾ قال الشرنبلالی: کصبی سبی ای اسرمع احد ابویه من دار الحرب ثم مات لانه تبع له لقولهﷺ کل مولود یولد علی الفطرة فابواه یهودانه اوینصرانه او یمجسانه...... الا ان یسلم احدهما. (امدادالفتاح ص ۶۲۸ مطلب ما یفعل بالمستهل)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: وصحت لو وضعوا الرأس موضع الرجلین واساؤا ان تعمدوا ولو اخطؤا القبلة صحت الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۴۱ جلد ۱ باب صلاة الجنائز)

سوم جلد 15

## د نیولونه مخکښې چه قطاع الطریق قتل کړې شول نو جنازه به ئې نشی کولې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په سړک باندې درې ډاکوان ناست وو چه ناڅاپه پولیس راغلل نو په هغوې کښې یو کس را پُاڅیدو تهانړه دار ئې مړ کړو، او اوتښتیدو او باقی دوه ئې اونیول دویم تهانړا دار راغې هغه دواړه ئې مړه کړل اوس به هغوی باندې جنازه کولې شی یا نه؟ ځکه چه دوی قطاع الطریق دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالجلیل...۲۴۱۳۱۱۹۷۴ء

**الجواب:** قطاع الطریق چه د نیولو نه مخکښې قتل کړې شی نو د هغوی د جنازې مونځ به نشی کولې، (کما فی ردالمحتارج۱:ص۸۱۴ ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د نابالغه د جنازې نیت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه نابالغه هلک یا جینئ مړه شی نو دهغې دجنازې دمونځ نیت مونږ داسې کوو، څلورتکبیرونه د جنازې د مونځ فرض کفایه خاص الله تعالی دپاره او دوروود په پیغمبر علیہ السلام دعا د پاره ددې حاضرمړی په دې حاضرامام پسې مخ مې دکعبې شریفې په طرف الله اکبر...اوس بعضې خلق وائی چه دعا د خپل ځان دپاره وایئ، ځکه چه ماشوم بخلې شوې دې، نوتاسواووایئ چه کوم یونیت صحیح دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: علی اصغر سیرئی هزاره.....۴ نومبر ۱۹۷۴

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: (قوله اذا قتلوا فی الحرب ولو بعده صلی علیهم) قال الزیلعی واما اذا قتلوا بعد ثبوت ید الامام علیهم فانهم یغسلون ویصلی علیهم وهذا تفصیل حسن اخذ به کبار المشائخ لان قتل قاطع الطریق فی هذه الحالة حد او قصاص ومن قتل بذلک یغسل ویصلی علیه.

(...المحتار هامش الدرالمختار ۱ : ۶۴۲ باب صلاة الجنائز)



**الجواب:** په عالگیریه په صفحه ۱۷۴ جلد اول کښې د جنازې نیت لیکلې شوې دې، ﴿۱﴾ په هغې کښې دا لفظ چه دعا دپاره د مړی نشته، لهذا که دا پریخودې شی نو هیڅ حرج به پکښې نه وی او که ذکر کړیشی نو صرف د با لغینو په جنازه کښې د ې ذکر شی لیکن د غیر بالغینو په جنازه کښې ذکر کول به هم غلط نه وی کما فی روایة واعذه عذاب القبر ﴿۲﴾ وهوالموفق

## که د مړی صرف سره او مونډلې شی نو د جنازې څه حکم دې؟

**سوال:** فقهائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د مړی صرف سر اومندلې شی نو سر باندې به د جنازې څه حکم وي؟ حال داچه د مړی په باقی حصه باندې یو ځل جنازه شوی ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم......۱۷ جمادی الثانی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** صرف په سره باندې جنازه کول غیر مشروع دی.

**لما فی شرح التنویر وجد رأس آدمی او احد شقیه لا یغسل ولا یصلی علیه بل یدفن (هامش ردالمحتار ص ۸۰۴ جلد ۱ ) ﴿۳﴾. وهوالموفق**

## د دروغژن د امامت حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دیوې ښځې د جنازې

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: فالامام والقوم ینوون ویقولون نویت اداء هذه الفریضة عبادة لله تعالیٰ متوجها الی الکعبة مقتدیا بالامام.

(فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۶۴ جلد ۱ الفصل الخامس فی الصلاة علی المیت)

﴿۲﴾ عن سعید بن المسیب قال صلیت وراء ابی هریرة علی صبی لم یعمل خطیئة قط فسمعته یقول اللهم اعذه من عذاب القبر ، رواه مالک.

(مشکواة المصابیح ص ۱۴۷ جلد ۱ باب المشی بالجنازة)

﴿۳﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۳۴ جلد ۱ باب صلاة الجنائز)

مونځ په سُنی طریقه باندې شوې وو، او پوره کلي ددې خبرې عینی شاهد دي، مګرجنازې والاسړی په عدالت کښې سرباندې قرآن کیښود چه ما د شیعه ګانو په طریقه جنازه کړې ده، حال دا چه هغه پخپله هم سنی دې لهٰذا دداسې دروغژن امام څه حکم دې؟ اودهغه دامامت څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: ملک حیات مرزا اټک.....۵ جمادی الثانی.....۱۴۰۱ھ

**الجواب:** واضحه دې وی چه د یو سړی یا ښځې د سُنی یا شیعه کیدلو دارمدار په اعتقاد او اقرار باندې دې نو چه د کومې ښځې متعلق د شیعه کیدلو څه ثبوت نه وی نو په هغې باندې د شیعه ګانو شان جنازه کول ناجائز دي، او په هغې باندې د سنیانو پشان جنازه کولو باوجود غلط بیانی کول ګناه دپاسه د ګناه ده، اوکه په قوم کښې ددې غلط بیان والا نه دینی حیثیت سره بهتر سړې موجود وی نو دهغه پسې اقتداء کول مکروه تحریمی دې، او دا امام واجب العزل دې ګڼې په بل صورت کښې به رندو کښې یوې سترګې والا راجه وې، (ماخوذ از بحر ص ۳۴۹ جلد ۱) وهو الموفق

## په مړی باندې د ولی ابعد د جنازې کولو نه پس د ولی اقرب په دویم ځل جنازه کول

**سوال:** عمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې په قطر کښې مړشو او (ولی ابعد ئې جنازه اوکړه اوس چه میت پاکستان ته راورسی او خراب شوې نه وی نو آیا په وطن کښې پرې ولی اقرب په دویم ځل جنازه کولې شي؟ احقر په دې باره کښې د شامي، بحر، بدائع وغیره ژوره مطالعه اوکړه، ځما رائې داده چه ولی اقرب په مذکوره صورت کښې جنازه کولې شی لیکن په علاقه کښې بعضې علماء د احقر د رائې خلاف کوی نو ستاسو صاحبانو رائې څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مفتی معین الدین صاحب دارالافتاء انجمن تعلیم القرآن کوهاټ ۲۴ ستمبر ۱۹۸۴

**الجواب:** کومه جنازه چه دولی اقرب داجازت نه بغیر اوکړې شی نو ولی اقرب

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والا فلا. (البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)



دهغې اعاده کولې شی. ﴿۱﴾ خو چه په کوم ځائې کښې ولی اقرب موجود نه وی نو دهغه حق به دکوم ځائې نه ثابتوی. ﴿۲﴾

**كما فی عقد الا بعد عند غيبوبة الاقرب الا ان الاقرب له حق العقد ثمه ﴿۳﴾ لان النكاح لا يشترط له حضور المولاة بخلاف الجنازة فانها لا تصح على الغائب فافهم.**

## په مړی باندې پلیت څادر یا کفن واچولې شی یا د رینبمو په کپړو کښې وی نو د جنازې څه حکم دې؟

**سوال:** علمائې دینځ دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که مړې چرته په نجس ځائې یا نجس کټ یافرش باندې کیښودې شی یا څادر پرې واچولې شی یا په نجس کفن یا رینبمی کفن وغیره کښې کیښودې شی، آیا په ده باندې جنازه صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: پشم خان

**الجواب:** په دې کښې د فقهاؤ اختلاف دې،

**فی شرح التنویر عن القنیة الطهارة من النجاسة فی ثوب وبدن ومکان وستر العورة شرط فی حق المیت والامام جمیعاً ﴿۴﴾ انتهیٰ. وفی**

﴿۱﴾ قال العلامة ابن الهمام: (قوله فان صلی غیر الولی والسلطان اعاد الولی) هذا اذا کان هذا الغیر غیر مقدم علی الولی فان کان ممن له التقدم علیه کالقاضی ونائبه لم یعد.
(فتح القدیر ص ۸۳ جلد ۲ فصل فی الصلاة علی المیت)

﴿۲﴾ قال العلامة ابی بکر بن علی الحداد الیمنی: وللاقرب ان یقدم علی الابعد من شاء لانه لا ولایه للابعد معه فان غاب الاقرب فی مکان تفوت الصلاة بحضوره فالابعد اولی وهو ان یکون خارج البلد فان قدم الغائب غیره بکتاب کان للابعد ان یمنعه والمریض فی المصر بمنزلة الصحیح یقدم من شاء ولیس للابعد ان یمنعه.
(الجوهرة النیرة شرح القدوری ص ۱۲۸ جلد ۱ باب الجنائز)

﴿۳﴾ قال العلامة ابوبکر الحداد الیمنی: (قوله واذا غاب الولی الاقرب غیبة منقطعة جاز لمن هو ابعد منه ان یزوج خلافا لزفر) والاصل ان عندنا ان الولی الابعد اولیٰ من السلطان، الخ. (الجوهرة النیرة ص ۷۲ جلد ۲ کتاب النکاح)

﴿۴﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۴۰ جلد ۱ باب صلاة الجنائز)

ردالمحتار فی التتارخانیة سئل قاضی خان عن طهارة مکان المیت هل تشترط لجواز الصلوٰة علیه قال ان کان المیت علی الجنازة لا شک انه یجوز والا فلا روایة لهٰذا وینبغی الجواز وهکذا اجاب القاضی بدر الدین، قلت وروایة القنیة لا تعارض بروایة قاضی خان...... لان النجاسة ان کان من بدن المیت فلا تضر والا فتمنع الصلوٰة. (ردالمحتار ص ۸۱۲)﴿۱﴾ الحریر لا یمنع صحة الصلوٰة عند احد من الائمة. وهوالموفق

## د جنازې د تکرار اجازت نشته

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یو مړی جنازه یو ځلې ادا کړې شوې ده اوس بعضې خلقو نه پاتې شوې دي، هغوې اصرار کوی چه جنازه دې په دویم ځل د بل امام په امامت کښې ادا کړیشی نو دویمه جنازه به ادا کولې شی یا فوراً به دفن کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام جیلانی امام مسجد اندر کوټ بیروټ مری ۲۴\شوال\۱۴۰۸ھ

**الجواب:** د جنازې تکرار مشروع نه دې،

کما فی الهندیة ص ۱۶۳ جلد ۱ ولا یصلی علی میت الامرة واحدة والتنفل بصلاة الجنازة غیر مشروع الخ، وقلت وعلیه تعامل السلف الصالحون ﴿۲﴾. وهوالموفق

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۶۴۰ جلد ۱ مطلب فی صلاة الجنازة باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ص ۱۶۳ جلد ۱ الفصل الخامس فی الصلاة علی المیت)

وقال الکاسانی: ولنا ماروی ان النبی ﷺ صلی علی جنازة فلما فرغ جاء عمر ومعه قوم فاراد ان یصلی ثانیا فقال له النبی ﷺ الصلاة علی الجنازة لا تعاد ولکن ادع للمیت واستغفرله وهذا نص فی الباب وروی ان ابن عباس وابن عمر فاتتهما صلاة علی جنازة فلما حضرا ما زادا علی الاستغفار له الخ.

ائع الصنائع ۲:۴۷ کیفیة الصلاة علی الجنازة)



## دامام الحئ په موجود ګئ کښې د بل سړی جنازه کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه اسلامی بادشاه یا نائب یا قاضی نه پس د جنازې حق امام الحئ ته دې دهغه نه پس ولی ته دې لیکن که پخپله د امامت اهلیت نه لري، آیا بل سړې دامام الحی د رضا نه بغیر جنازې د پاره مخکښې کولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا فضل احمد بابړه.....۳ جولائي ۱۹۷۵

**الجواب:** که دا مړې په ژوند کښې ددې امام الحئ پسې د علت صحیحه په وجه اقتداء کولو نه ناراضه نه وو. نو ددې ولی جنازه کول یعنی امامت کول یا بل سړې امام جوړول (د امام الحئ د اجازت نه بغیر) بهتر نه وي،

یدل علیه مافی الدرالمختار ثم امام الحی فیه ایهام وذلک ان تقدیم الولاة واجب وتقدیم امام الحی مندوب، فقط بشرط ان یکون افضل من الولی، وفی ردالمحتار ص ۸۲۳ جلد ۱ وانما کان اولی لان المیت رضی بالصلوٰة خلفه فی حال حیاته فینبغی ان یصلی علیه بعد وفاته، قال فی شرح المنیة فعلی هذا لو علم انه کان غیر راض به حال حیاته ینبغی ان لا یستحب تقدیمه، قلت هذا مسلم ان کان عدم رضاه به لوجه صحیح والا فلا فتامل ﴿۱﴾ انتهیٰ ما فی ردالمحتار، قلت لما کانت الجنازة عبارة عن التکبیرات دون الاذکار فکان اکثر العوام اهلا لها. وهوالموفق

## د مړ پیدا شوی بچې د جنازې حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یوې ښځې د اوو

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۶۳۹ جلد ۱ مطلب فی بیان من هو احق بالصلاة علی المیت باب صلاة الجنائز)

میاشتو مړېچې پیدا شو، په هغه باندې د جنازې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالغنی.............. ۳جون ۱۹۷۵

**الجواب:** کوم بچې چه مړ پیدا شوې وي، په هغه به د جنازې مونځ نه کیږي، اګر که بدن ئې مکمل شوې دي، (رد المحتار) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د جنازې په نیت کښې د فرض په ځائې کفائې وئیل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائیلي دی چه مونږ د جنازې په نیت کښې فرض کفائی وایو اوس یو صاحب وائی چه کفائی وئیل صحیح نه دي، دا غلط دي، بلکه فرض کفایه وئیل پکار دې، آیا دا کفائی وئیل غلط دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل هادی محکمه تعمیرات ایس ډی او بلډنګ مردان ۲۱۷۱۱۹۶۹

**الجواب:** عربی لفظ کفایه دې، ﴿۲﴾ او په پښتو کښې کفائی وئیلې کیږی، وهوالموفق

## مړې ویستل او بل ځائې ته وړل او په هغه باندې په دویم ځل د جنازې حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دفن کولو نه پس مړې راویستل او بل ځائې ته وړل څنګه دي؟ او په هغه باندې په دویم ځل د جنازې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عبدالاحد شاهین مارکیټ مردان......ز۱۹۸۴ء۶۱۸۱

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وما لم یتم وفیه خلاف والمختار انه یغسل ویلف فی خرقة ولا یصلی علیه کما فی المعراج والفتح والخانیة والبزازیة والظهیریة شرنبلالیة وذکر فی شرح المجمع لمصنفه ان الخلاف فی الاول وان الثانی لا یغسل اجماعاً.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۶۵۵ جلد ۱ باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: (قوله وهی فرض کفایة) ای الصلاة ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



**الجواب:** دا د مړی ویستل بغیر د ضرورتِ شرعی نه ناجائز دي، ﴿۱﴾ او په دویم ځل جنازه کول په هر حال کښې ممنوع دي، (شامي) ﴿۲﴾ وهوالوفق

## د مرزائې جنازه کول یا ئې د جنازه پسې تلل ناجائز دی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چی د مرزائی (قادیاني) جنازه کول یا ئې د جنازې سره تلل جائز دی یانه؟ او آیا په کونکی باندې ښځه حرامیږی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید محمد صغیر شاه کیمل پوراټک..... ۱۹۷۰ء۲۰۱۹۱

**الجواب:** په مرزائی باندې د جنازې مونځ کول او د هغه د جنازې سره تلل ناجائز دی. ﴿۳﴾ لیکن کفر نه دې، لهٰذا په دې سره په نکاح باندې اثرنه غورځیږی. فقط

## د څو ورځونه پس د جنازې مونځ کول

**سوال:** علمایې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که دیو مړی جنازه نه

(بقیه حاشیه) علیه للاجماع علی افتراضها وکونها علی الکفایة. (البحر الرائق ص ۱۷۹ جلد ۲ فصل فی السلطان احق بصلاته)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ولا یخرج منه بعد اهالة التراب الا لحق آدمی.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱:۶۶۲ باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله لان تکرارها غیر مشروع) ای عندنا وعند مالک خلافا للشافعی رحمه الله والادلة فی المطولات.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۶۵۲ قبیل مطلب فی کراهة صلاة الجنازة فی المسجد)

﴿۳﴾ قال العلامة الشرنبلالی: وشرائطها ستة اولها اسلام المیت لقوله تعالی: ولا تصل علی احد منهم مات ابداً، یعنی المنافقین وهم الکفرة ولانها شفاعة للمیت اکراماً له، وطلبا للمغفرة، والکافر لا تنفعه شفاعته ولا یستحق الاکرام.

(امداد الفتاح: ۶۱۷ شرائط صحة الصلاه علی الجنازة فصل فی صلاة الجنازة)

وی شوې نو د څو ورځو تیریدلو نه پس د جنازې مونځ کول صحیح دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرشید کوهاټ.....١٢صفر ١٣٩٢ھ

**الجواب:** چه تر څو پورې مړې تکړې تکړې شوی نه وی او دهغه بدن ټول یا اکثر صحیح روغ رمټ وی نو په هغه باندې د جنازې مونځ کول جائز دی. اګر که د څو میاشتو نه پس وی. (ما خوذ من الشرح الکبیر ومن الـــدرالمختار ورد المحتار ١: ٨٠٤، ٨١٢ ﴿١﴾ وهوالموفق

## جنازه تر څلویښتو قدمونو پورې وړل سنتِ زائده (مستحب) دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه هر سړې چه جنازه څلویښت قدمونه وړی او باقاعده قدمونه شمارلې کیږي، لکه چه په بعضې کتابونو کښې ددې په اصل سنت او کمالِ سنت سره تشریح شوې، که څوک انکار اوکړی نو هغه به د انکار کولو والا شمار کیږی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی الطاف الرحمان ماړی شرقی ناګی ضلع هزاره ١٠محرم ١٣٩٢

**الجواب:** مړې څلویښت قدمونه وړل سنتِ زائده یعنی مستحب دی. فلیراجـــع الی رد المحتار وغیره، ﴿٢﴾ وهوالموفق

---

﴿١﴾ قـال العلامة الحلبی: ومن دفن ولم یصل علیه صلی علی قبره ما لم یغلب علی الظن انه تفسخ. (غنیة المستملی المعروف بالکبیری ٥٣٢ فصل فی الجنائز)

وقـال الـحصکفی: وان دفن بغیر صلاة صلی علی قبره استحسانا مالم یغلب علی الظن تـفسخه من غیر تقدیر هو الاصح وظاهره انه لو شک فی تفسخه صلی علیه لکن فی النهر عن محمد لا کانه تقدیما للمانع. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ١: ٦٥٢ باب الجنائز)

﴿٢﴾ قـال العـلامة الـحـصـکفی: واذا حـمـل الـجنازة وضع ندبا مقدمها علی یمینه عشر خطوات لحدیث من حمل جنازة اربعین خطوة کفرت عنه اربعین کبیرة الخ. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ١: ٦٥٧ باب صلاة الجنائز)...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د والدینو قاتل. قطاع الطریق او د خود کشی کولو والا جنازه.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه:

(١) کوم کس چه د پلار قاتل وِی نود دغه قاتل جنازه شرعاً جائز ده یا نه؟

(٢) کوم کس چه خود کشی اوکړی ددغه خودکشی کونکی جنازه جائزده یانه؟

(٣) ډاکو یعنی قطاع الطریق که قتل کړې شونو دهغه جنازه جائز ده یا نه؟

بینوا توجروا

المستفتی: عبدالمنان..........١٩٧٥ء٫٥٫١١٫٢

**الجواب: وبالله التوفیق** ! د والدینو په قاتل باندې به جنازه نشی کولې. کما فی شرح التنویر، ولا یصلی علی قاتل احد ابویه اهانة له(هامش الدر، ١: ٨١٥)﴿١﴾ دغه شان قطاع الطریق چه کله د ډاکې په دوران کښې قتل کړې شی نو په هغوی به جنازه نه شی کولې، کما فی شرح التنویر وقطاع الطریق فلا یغـــسلوا ولا یصلی علیهم اذا قتلوا فی الحرب (هامش رد المحتـــار١: ٨١٤) ﴿٢﴾ او په خودکشی کونکی باندې جنازه جائز ده، لما فی شرح التنویر من قتل نفسه ولو عمداً یغسل علیه وبه یفتی وان کان اعظم وزراً من قاتل غیره، البته که خواص ترې نه ډډه اوکړی نو ګنجائش شته، لحدیث مسلم (هامش الرد ١: ٨١٥) ﴿٣﴾ وهوالموفق

---

بـقیه حـاشیه) وقال الحلبی: ویستحب ان یحملها من کل جانب عشر خطوات لما روی عنه علیـه الـصلاة والسلام انه قال من حمل جنازة اربعین خطوة کفرت عنه اربعین کبیرة الخ. (غنیة المستملی شرح منیة المصلی ٥٣٣ کتاب الجنائز فصل فی الحمل)

﴿١﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ١: ٦٣٣ باب صلاة الجنائز)

﴿٢﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ١: ٦٣٢ باب صلاة الجنائز)

﴿٣﴾ قـال الـحـصکفی: ورجح الکمال قول الثانی بما فی مسلم انه علیه السلام اتی برجل قتل نفسه فلم یصل علیه. (الدرالمختار علیٰ هامش ردالمحتار ١: ٦٣٣ باب صلاة الجنائز)

## د بالغه او نابالغه يوځائي جنازه کښي د نيت او دعا مسئله

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه يو بالغ سړي او يو نابالغه جينئ د اتو کالو مړه شول، ددوی دواړو جنازه په يو نيت سره کول جائز دی يا نه؟ جواب راکړئ،؟ بينوا توجروا

المستفتی:محمد اکرام سرگودها،،،،۶۱۲۱۱۹۸۹

**الجواب:** ګڼرو مړو باندي يوځائي جنازه کول جائز دي، اګر که بعضي پکښي نابالغه وي، کما فی جنائز شرح التنوير فالافضل الرجل مما يليه فالصبی فالخنثی ﴿۱﴾ واضحه دي وی چه د جنازي د مونځ دارومدار په تکبيرات اربعه دي په اذکارو نه نو چه دريم تکبير نه پس صرف د بالغانو دعا اولوستلي شی نو ذمه فارغه کيږی. ﴿۲﴾ وهوالموفق

## په مقبره او سړک باندي د جنازي مونځ کول

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه په قبرستان کښي جنازه ګاه ده،مغرب طرف دري خلور قبرونه هم دي، او د قبرونو او جنازه په مينځ کښي وني دي، يو مولوی صحاب وائی چه دا ونه ستره ده، او جنازه صحيح ده،او دويم سړي وائی چه دي ځائي کښي جنازه کول مکروه دي،

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۱: ۶۴۹ باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ قال العبد الرحمن الجزيرى: الحنفية قالوا: الدعاء يكون بعد التكبيرة الثالثة ولا يجب الدعاء بصيغة خاصة بل المطلوب الدعاء بامور الآخرة والاحسن ان يدعو بالماثور فى حديث عوف بن مالك ...... هذا اذا كان الميت رجلاً فان كان انثى يبدل ضمير المذكر بضمير الانثىٰ...... وان كان طفلا يقول: اللهم اجعله لنا فرطا...... فان كان لا يحسن المصلى هذا الدعا دعابماشاء. (الفقه على المذاهب الاربعة ۱: ۴۵۴ اركان صلاة الجنازة)



بلکه د سره کيږی نه.ايا واقعی دا مکروه دي، دغه شان په سړک باندي جنازه کول صحيح دی يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبيدالرحمان متعلم دارالعلوم حقانيه ......۱۳ذی قعده ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** که دا قبرونه دري څلور ګزه لري وی يا ددي قبرونو او جنازه کونکو په مينځ کښي حائل موجود وي، نو په دي کښي هيڅ نقصان نشته دي ګني نو صاحب بدائع په بدائع کښي ليکلی دي، چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد په مقبره کښي د جنازي مونځ کول بهتر نه دي، په هرحال کښي جائز دي،﴿۱﴾ او په سړک باندي عندالضرورة د جنازي مونځ کول جائز دی او بلا ضرورت ممنوع دي، ﴿۲﴾ وهوالموفق

## دامام الحئ نه د خفګان په وجه دويم امام
## د پاره جنازه کول خلاف سياست دي

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه يو سړی د مسلمان کيدلو باوجود امام الحئ (پيش امام)، ته قصداً ګنځلي کوی او په دي وجه تري پيش امام چه ناراضه دي، که ددي سړي جنازه يا نکاح د امام الحئ نه بغير اجازت د بل ښارخوک امام اوکړی نوآيا بل امام دپاره داجائزدي؟ بينواتوجروا

المستفتی: عزيز الرحمان امام مسجد هزاره...۱۰۱۱۱۹۷۵

---

﴿۱﴾ قال العلامة الكاسانى: قال ابوحنيفة رحمه الله تعالىٰ ولا ينبغى ان يصلى على ميت بين القبور، وكان على وابن عباس يكرهان ذلك، وان صلوا اجزاهم لما روى انهم صلوا على عائشة وام سلمة بين مقابر البقيع والامام ابو هريرة وفيهم ابن عمر. (بدائع الصنائع ۲: ۶۵ سنن الدفن)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: ولزم ان لا يصلى فى عمره على جنازة نعم قد توضع فى بعض المواضع خارج المسجد فى الشارع فيصلى عليها ويلزم منه فسادها من كثير من المصلين لعموم النجاسة وعدم خلعهم نعالهم المتنجسة مع انا قدمنا كراهتها فى الشارع واذا ضاق الامر اتسع فينبغى الافتاء بالقول بكراهة التنزيه الذى هو خلاف الاولىٰ كما اختاره المحقق ابن الهمام واذا كان ما ذكرنا عذرا فلا كراهة اصلا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۵۴ مطلب فى كراهة صلاة الجنازة فى المسجد)

الجواب: بغير وجې مسلمان ته کنځلې کول خصوصاً چه کله امام هم وی فسق دي قال رسول الله ﷺ سباب المسلم فسوق(رواه مسلم﴿۱﴾ اود امام الحئ د اجازت نه بغير بل سړي دپاره نکاح او جنازه کول خلافِ شريعت نه دی البته خلافِ سياست دي، ﴿۲﴾ وهوالموفق

## په خودکشی کونکی باندې د جنازې مونځ جائز بلکه راجح دې

سوال: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دقاتل النفس جنازه کول څنګه دي، په بحر ۲۰۲۱۲ شامي ۹۱۰۱۱طحطاوی علی مراقی الفلاح ۳۳۱۱ کښې په تائيد د حديث پاک په قول دامام ابو يوسف چه په قاتل نفس به زجراً د جنازې مونځ نه کولې کيږي، دغه شان په ابو داود او کشف الغمه کښې حديث پاک موجود دي او دغه شان په نورالايضاح، قدوري، زاد اللبيب، کبيری جوهره او خطبه تقرير ترمذی کښې د شيخ الهند رح چه د طرفينو په قول باندې ادا کيږي. عالمګيری ليکلی دی که يو قاضی حکم اوکړی چه د جنازې مونځ په نه کيږی نو دويم قاضی ئې نه شی ادا کولې ددې مسئلې صحيح نوعيت څه دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوی عبدالحئ مسجد دهوبيان اکبر پوره ۲۹ جنوری ۱۹۷۵

الجواب: واضحه دې وی چه په خودکشئ کونکې باندې جنازه کول جائز بلکه راجح دی. کمافی الدرالمختار من قتل نفسه ولو عمداً يغسل ويصلی عليه وبه يفتیٰ﴿۳﴾ انتهیٰ. وبمعناه فی اکثر الفتاویٰ.

---

﴿۱﴾ (الصحيح المسلم ۱: ۵۸ باب بيان قول النبی ﷺ سباب المسلم فسوق وقتاله کفر)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدين: (قوله ثم امام الحی) ای الطائفة وهو امام المسجد الخاص بالمحلة وانما کان اولیٰ لان الميت رضی بالصلاة خلفه فی حال حياته فينبغی ان يصلی عليه بعد وفاته قال فی شرح المنية فعلی هذا لو علم انه کان غيرراض به حال حياته ينبغی ان لا يستحب تقديمه، قلت هذا مسلّم ان کان عدم رضاه به لو جه صحيح والا فلا تامل. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۳۹ مطلب فی بيان من هو احق بالصلاة علی الميت)

﴿۳﴾ (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ۱: ۶۴۳ باب صلاة الجنائز)



او ددې باوجود جنازه نه کونکې د حنفيت نه خارج نه دي.

لان المحقق ابن الهمام رجح ترک الصلوٰة وهو قول ابی يوسف کما فی ردالمحتار ۱: ۸۱۵ ﴿۱﴾ وکذا اختاره الامام السعدی قلت ويؤيده ظاهر حديث مسلم لا اصلی عليه لعدم ورود صلوا علی صاحبکم، بخلاف المفلس المديون والاصل فی افعاله عليه السلام التشريع دون التخصيص ﴿۲﴾

بلکه چه په کومه علاقه کښې دا بد کار په بې باکئ سره کيږی نو سداً للباب به په ترک الصلوة باندې فتویٰ ورکول ډير زيات مناسب وی. وهوالموفق

## که په درياب کښې زوړ او بد بو دار لاش اوموندلې شی نو غُسل او جنازه به ئې کولې شي

سوال: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په درياب کښې د يو سړی لاش اوموندلې شي، اوهغه زوړ او بدبويه وی نو آيا د هغې جنازه به کولې کيږی او آيا غسل به ورته هم ورکولې کيږی؟ او دا هم ده چه پته نه لګی چه مسلمان دې يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: خليل الرحمان....۱۱۹جمادی الاولی ۱۳۹۳ھ

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله ورجح الكمال قول الثانی بما فی مسلم انه عليه السلام الخ) ای قول ابی يوسف انه يغسل ولا يصلی عليه اسمعيل عن خزانة الفتاویٰ وفی القهستانی والكفاية وغيرهما عن الامام السغدی الاصح عندی انه لا يصلی عليه لانه لا توبة له قال فی البحر فقد اختلف التصحيح لکن تأيد الثانی بالحديث. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۴۳ باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: (قوله فلم يصل عليه النبی ﷺ) ظاهره حجة لابی يوسف لان النبی ﷺ يقتدی به امته فی افعاله ولکن ظاهر حديث النسائی اما انا فلا اصلی عليه حجة لاحمد، ان الامام لا يصلی عليه، ويصلی عليه غير الامام لحديث والصلاة واجبة علی کل مسلم برا کان او فاجراً وان عمل الکبائر رواه ابوداؤد وعند ابی حنيفة ومالک واحمد يصلی عليه بلا تخصيص، وحديث الباب واقعة عين لا عموم......

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

**الجواب:** که ټول بدن (انساني شکل) یا اکثر باقي وي نو هغه ته غسل ورکول او د جنازې مونځ کول ضروري دي، که د پړ سیدلو او بد بویه کیدلو پورې خبره رسیدلې وي، او که نیم یا د هغې نه کم بدن باقي وي او باقي بدن متغیر یا معدوم شوې وي نو هغې ته به غسل نه ورکولې کیږي او د جنازې مونځ به هم نشي کولې او داوطن دارالمسلمین دې لهٰذا په غالب باندې به احکام بناء کیږي، ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په قادیاني باندې جنازه کول حرام دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه قادیاني د شریعت په رڼا کښې کافر دي یا نه؟ او دهغوی جنازه کول جائز ده یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ولی الله........ ۱۹۷۳ء/۱۲/۱۰

**الجواب:** قادیا نیان بغیر د شک شبهې نه کافران دي دهغوی جنازه کول حرام دي، ﴿۲﴾ وهوالموفق

## په پلیت ځائې چه ولاړوی نو جنازه به صحیح نه وي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ ځائې کښې په یو میدان کښې د جنازې مونځ کیږي، کله کله کوچیان هلته د ګډو بیزو

---

(بقیه حاشیه) لها، فیحمل علی الزجر، کما انه علیه السلام فی اول الامر لا یصلی علی بعض المدیونین زجراً، فحمل حدیث الباب علی الزجر اولی من حمله علی تخصیص الامام لان ثبوت الزجر اسهل من ثبوت الخصوصیة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۴: ۲۳۶ باب من یقتل نفسه لم یصل علیه)

﴿۱﴾ قال الحصکفی: وجد رأس آدمی او احد شقیه لا یغسل ولا یصلی علیه بل یدفن الا ان یوجد اکثر من نصفه ولو بلا رأس...... لو وجد میت فی الماء فلا بد من غسله ثلاثا لانا امرنا بالغسل فیحرکه فی الماء بنیة الغسل ثلاثا...... ولو لم یدر أمسلم ام کافر ولا علامة فان فی دارنا غسل وصلی علیه والا لا. (الدر المختار علیٰ هامش ردالمحتار ۱: ۶۳۵ قبیل مطلب فی الکفن)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: اما المرتد فیلقی فی حفرة کالکلب....... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)





(چیلو) کنډک کینوی او هغه ځائې د پچو نه ډک شی چه او چې وي، نو آیا په هغه ځائې کښې چه اودریږی نو د جنازې مونځ به صحیح دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی فقیرحسین خطیب باباکرم شاه مسجد نوشهره صدر ۱۹۸۷ء/۱۱/۴

**الجواب:** سوتې او پچې پلیتې دی لهٰذا په دې باندې د ولاړو خلقو د جنازې مونځ به صحیح نه وي، په پاک اوصافا ځائې باندې جنازه کوئ، د یو ځائې متعین کول ضروری نه دی. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په جنازه کښې د کټ دځائې پاکیدل شرط نه دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په جنازه کښې د کټ د ځائې پاکیدل هم ضروری دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی فقیر حسین خطیب بابا کرم شاه مسجد نوشهره صدر

**الجواب:** د کټ دکیښودلو د ځائې پاکیدل مختلف فیه دی،

**والمذکور فی المضمرات علم الاشتراط کما فی الهندیة ۱: ۱۶۴ وطهارة مکان المیت لیست بشرط. ﴿۲﴾. وهوالموفق**

## په مرزائی باندې د جنازه کونکو د نکاح حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو مرزائی مړ شو په

---

(بقیه حاشیه) قال ابن عابدین: ولا یغسل ولا یکفن.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۱: ۶۵۷ مطلب فی حمل المیت باب صلاة الجنائز)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: وکل ما یعتبر شرطا لصحة سائر الصلوٰت من الطهارة الحقیقیة والحکمیة واستقبال القبلة وستر العورة والنیة یعتبر شرطا لصحة صلاة الجنازة هکذا فی البدائع. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۶۴ الفصل الخامس فی الصلاة علی المیت)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۶۲ الفصل الخامس فی الصلاة علی المیت)

هغه باندې مخکښې مرزایانو جنازه اوکړه. بیا پرې اهل اسلام جنازه اوکړه، یو مولوی صاحب فتویٰ جاری کړه چه کومو مسلمانانو ددې مرزائی جنازه د مسلمان کیدلو په حیثیت کړې وی په هغوی باندې ښځې طلاقې دی، توبه دې اوکړی دوباره ورته نکاح صحیح کول پکار دی. او بل طرفته بعضې خلقو ددې خبرې نه انکار اوکړو نو شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی محبوب الرحمان رحمانی کامرس کالج
جناح کالونی ایبټ آباد ۲۳ رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دیو منسوخ او حرام کار مستحل (حلال ګڼړونکې) مسلمان نشی پاتې کیدې: لما فی ردالمحتار باب المرتد اما الجاهل فلا یفرق بین الحرام لعینه ولغیره وانما الفرق فی حقه ان ما کان قطعیا کفر به والا فلا ﴿۱﴾ انتهی، قلت والنهی عن الصلاة علی الکافر قطعی ﴿۲﴾ وامر مجمع علیه فلا مخلص من تجدید النکاح للمستحل ﴿۳﴾.
وهو الموفق

## د قبل البلوغ لیونی او بعدالبلوغ لیونی په جنازه کښې فرق

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په بالغ لیونی باندې به د ماشومانو پشان جنازه کولې شی یا د بالغانو پشان، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مظفر شاه چراټ نوشهره... ۱۳\۲\۱۹۸۲ء

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۳۱۱ مطلب ما یشک فی انه ردة لا یحکم بها باب المرتد)
﴿۲﴾ قال الجلال: ولما صلی النبی ﷺ علی ابن ابی نزل (ولا تصل علی احد منهم مات ابدا ولا تقم علی قبره) لدفن او زیارة (انهم کفروا بالله ورسوله وما توا وهم فسقون) کافرون. (تفسیر الجلالین ۱: ۲۰۰ سورة التوبة آیت: ۸۴)
﴿۳﴾ قال الملا علی القاری: ان استحلال المعصیة صغیرة کانت او کبیرة کفر اذا ثبت کونها معصیة بدلالة قطعیة.
(شرح فقه الاکبر ۱۵۲ استحلال المعصیة کفر)



**الجواب:** که لیونې داسې وی چه د بالغ کیدلو نه مخکښې هم لیونې وو نو په هغه باندې به جنازه د نابالغو پشان کولې شي، کما فی الدرالمختار علی هامش (ردالمحتار ج۱ ص۶۱۲) ولا یستغفر فیها لصبی و مجنون ومعتوه لعدم تکلیفهم ﴿۱﴾ او که مجنون بعدالبلوغ د مخکښې نه عاقل وو روستو لیونې شو نو په ده باندې به د غټو سړو پشان جنازه کوې شی. کما فی الشامیة تحت (قوله ومجنون ومعتوه) هذا الاصل فان الجنون والعته الطارئین بعد البلوغ لا یسقطان الذنوب السابقه کما فی شرح المنیة ﴿۲﴾ وهو الموفق

## دعا بعد الجنازه صفونو ماتولو نه پس جائز ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دجنازې نه پس د صفونو ترتیب ختم شی او یو ځل سورت فاتحه او درې ځلې سورة اخلاص اولولی او په اجتماعی حالت سره د ټولو قبرستان والو د پاره د مغفرت دعا اوغواړي، نو په دې کښې اختلاف پیدا شوې دې یو صاحب وائی چه دا بدعت دې دحضور ﷺ او صحابه کرامو نه دا دعا ثابت نه ده او فقهائې کرام هم منع کوي، دویم صاحب وائی چه مذکوره د ثواب او ایصال طریقه نه بدعت دې او نه سنت دې بلکه جائز دي، حضور ﷺ د جنګ موته شهید حضرت جعفر طیار او زید بن حارثه رضی الله عنهم د شهادت نه پس دجنازې مونځ اوکړو او د هغوی دپاره ئې دعا اوغوښتله او صحابه کرامو ته ئې اووئیل چه تاسو هم د دوی دپاره دعائې مغفرت اوکړئ عبارت داسې دې، (فصلی علیه رسول الله ﷺ ودعاله وقاله استغفرواله، (فتح القدیر ۲: ٤٥٦ فصل فی الصلوة علی المیت مطبوعه مصر) د فقهائې احناف بعضې بزرګان دعا بعد السلام ته مکروه وائی. او د بعضو په نزد (لاباس به ای بالدعاء بعدالتسلیم کما فی البحر عن الفضلی، که دا مسئله جائزه ده یا بدعت دې نو تفصیلی اولیکئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: خالد محمود عثمانی.... ۲۲ ذی الحجه ۱۳۹۴

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ٦۴۵ باب صلاة الجنائز)
﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ٦۴۵ باب صلاة الجنائز)

**الجواب:** که عوام دا ضروری نه ګڼړی نو بدعت به نه وی بلکه سنت به وی.

**لان السنة لا تنحصر فی فعل الرسول بل تعم القول والفعل والتقریر کما صرحوا به،**

او ایصالِ ثواب د احادیثو او فقهي نه ثابت دي که مالی عبادت وي او که بدنی وی لهٰذا دا کار به مشروع او مسنون وی او دعا بعد الجنازه چه کُله بعد کسر الصفوف وی نو په دي کښي هیڅ باك نشته.

**لان اکثر الفقهاء قالوا بعدم الجواز ولکن لم یعللوه بعدم الوجود فی خیر القرون کما هو دأب الطائفة السلفیة والنجدیة. وهو حجة علیهم فی ترجمة القرآن بالهندیة والسلیمانیة وغیرها، وکذا فی تدوین العلوم بل عللوه بالتشبیه بالزیادة کما قال القاری فی المرقاة ولا یدعو للمیت لانه یشبه الزیادة فی صلوة الجنازة ۲:۶۴ ویؤدیه التعبیر بلا یقوم بالدعاء ونظیره کراهة قعود الامام متوجها الی القبلة بعد صلوة الفجر والعصر. فافهم**

## د کسر الصفوف نه پس دُعا بعد الجنازه باندي بل سوال

**سوال:** د دعا بعد الجنازه متعلق د جناب د طرفنه جواب ملاؤ شو لیکن اوس هم هغه شکونه لری نه شول، تاسو لیکلی چه د کسر الصفوف نه پس دعا بعد الجنازه وی نو دي کښي هیڅ حرج نشته او په بل جز کښي لیکلی شوي دی که عوام دا ضروری نه ګڼړی نو بدعت به نه وي، بلکه سنت به وی. مؤدبانه التماس دي چه کله د حضور ﷺ نه د دعا بعد الجنازه ثبوت نشته او د صحابه کرامو معمول نه دي فقهائي کرام ورته مکروه وائی نو بیا دا سنت څنګه شوه؟ بینوا توجروا

المستفتی: خالد محمود عثمانی. ۳۰ محرم الحرام ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** د السلام علیکم نه پس دي دا خبره واضحه وی چه بدعت د هغه څیز نوم دي چه په خیر القرون کښي نه بنفسه موجود وی او نه بدلیله موجود وی نو حیلي او دعا بعد الصلوة والجنازة او په اردو وغیره کښي د قران پاک



ترجمه کول، مدرسي جوړول او تالیف او تصنیف کول به بدعت نه وی. ﴿۱﴾ او که بدعت د هغه څیز نوم وی چه په هغه وخت کښي بنفسه موجود نه وی نو بیا به دا ټول کارونه بدعت وي، هم دا ځائي دي چه نجدی خلق پکښي پخپله هم په غلطئ کښي دی او نور مسلمانان هم ګمراه کوي، دغه شان واضحه دي وی چه حِل او حرمت دواړه شرعی امور دی، بغیر د دلیل نه نه حِل ثابتیږی او نه حُرمت ثابت کیدیشی ﴿۲﴾ په نجدیانو باندي تعجب دي چه هغوی د حُرمت د دعوي کولو باوجود هیڅ دلیل نشی پیش کولي، تاسو دا اصول مخي ته کیږدئ ټول نجدیت ختمولي شئ هم دا ددي عبارت تفصیل دي، وهو الموفق

## د دعا بعد الجنازه. شرعی حیثیت

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه د جنازي د مونځ نه پس فوراً د دفن کولونه مخکښي دعا غوښتل جائز دی یا نه؟ بعضي علماء

---

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله صاحب بدعة) ای محرمة والا فقد تکون واجبة کنصب الادلة للرد علی اهل الفرق الضالة وتعلم النحو المفهم للکتاب والسنة ومندوبة کاحداث نحو رباط ومدرسة وکل احسان لم یکن فی الصدر الاول ومکروهة کزخرفة المساجد ومباحة کالتوسع بلذیذ المآکل والمشارب والثیاب کما فی شرح الجامع الصغیر للمناوی عن تهذیب النووی ومثله فی الطریقة المحمدیة للبرکلی.**

**(ردالمحتار هامش الدر المختار ۱:۴۱۴ مطلب البدعة خمسة اقسام)**

**﴿۲﴾ عن ابن عباس ...... فبعث الله نبیه ﷺ وانزل کتابه واحل حلاله وحرم حرامه فما احل فهو حلال وما حرم فهو حرام وما سکت عنه فهو عفو.**

**(سنن ابی داؤد ۲:۱۸۳ باب مالم یذکر تحریمه)**

**وعن سلمان...... وما سکت عنه فهو مما عفی عنه رواه ابن ماجة والترمذی وقال هذا حدیث غریب وموقوف علی الاصح. (مشکوٰة المصابیح ۲:۳۶۷ کتاب الاطعمة)**

فرمائی چه په مذکوره طریقې سره دعا غوښتل بدعت دي بعضې فرمائی چه صفونه مات شی او منتشر حالت کښې دعا او غواړی نو څه ګناه نه ده، بهر حال په عوام الناس کښې انتشار جوړ شوې دې، ددې مسئلې وضاحت اوکړئ ډیر مشکوربه یو؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالخالق مدرسه تعلیم القرآن مری.. ۲۳/۱۱/۱۹۷۵

**الجواب:** دکسر الصفوف نه پس دعا کول جائز دي،

**لان الامام الفضلی جوزه کما فی البحر ﴿۱﴾ وسائر الفقهاء وان کرهوه لاکن لا لاجل علم الوجود فی خیر القرون کما هو داب الفرقة النجدیة السلفیة لانه منقوض بترجمة القرآن فی السلیمانیة والهندیة وتدوین الکتب وتنظیم المدارس وغیره، بل لانه یشبه الزیادة فی صلوة الجنازة کما فی المرقاة ولا یدعو للمیت لانه یشبه الزیادة فی الصلوة الجنازة ۴: ٦۴ مطبوعه ملتان) ولذا عبروا بلا یقوم بالدعاء.**

البته دا به هم ضروری او لازم ګڼړل بدعت وی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

**﴿۱﴾ قال ابن نجیم: لانه لا یدعو بعد التسلیم کما فی الخلاصه وعن الفضلی لا بأس به. (البحر الرائق ۲: ۱۸۳ فصل السلطان احق بصلاته کتاب الجنائز)**

**﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: ولان ذکر الله تعالیٰ اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشئ دون شئ لم یکن مشروعاً حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع. (البحر الرائق ۲: ۱۵۹ باب العیدین)**

...



# المقالة فی الدعاء بعد الجنازة

د نورو فرعی مسائلو پشان د دعا بعد الجنازه مسئله هم د عوامو او خواصو په مینځ کښې د انا مسئله جوړه شوې ده، اوپه دې بنیاد کفراوشرک او بدعت او تکفیر شروع شو دارالافتاء دارالعلوم حقانیه ته هم په ګڼړ تعداد کښې دا مسئله راتلل شروع شو. حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم په دې مقاله اولیکله اوپه مقالات کښې ئې شائع کړه، دکتاب الجنائز سره د مناسبت په بناء باندې په فتاویٰ کښې دعام فائدې دپاره شامل کولې شی. (از مرتب)

په دې مقاله کښې د دعا بعد الجنازه مسئله ذکر کولې شي، د جنازې نه پس د کسر الصفوف نه مخکښې دعا کول مکروه دي، او د کسر الصفوف نه پس دعا کول جائز دی البته دعا قبل السلام باندې اکتفاء کول د سلفو د تعامل سره موا فق دي،

د پیغمبر علیه السلام او سلف صالحین نه ددې دعا کولو یا نه کولو متعلق د احا دیثو ذخیره چُپ ده، په هغې کښې نه ددعا کولو روایت موجود دي او نه دنه کولو متعلق، که څوک د دا دعویٰ اوکړی چه پیغمبر علیه السلام او سلف صالحینو دا دعا نه ده کړې نو دا په پیغمبر علیه السلام باندې دروغ تړل دي، بهر حال دعا پخپله عبادت او دعبادت مغز دي، لیکن دا خاص دعا نه مطلوب ده او نه ممنوع بلکه مباح ده. ځکه چه اصل په اشیاؤ کښې اباحت دي. (کما صرح به ابن الهمام وغیره ویؤیده ما رواه ابو داؤد ان ماسکت عنه فهو عفو.. (سنن ابی داؤد ۲: ۱۸۳ باب مالم یذ کر تحریمه)

او ددې دعا په اذان د صلوٰة عید باندې قیاس کول غلط قیاس دي، ځکه چه ددې دعا متعلق عدمِ ذکرعدمِ روایت او سکوت ثابت دي اواذان د اخترونو د مونځ باره کښې ذکرعدم ثابت دي، (وهوما رواه ابوداؤد: ان رسول الله صلی الله علیه وسلم صلی العید بلا اذان ولا اقامة وابابکروعمررضی الله عنهما(۱: ۱٦۹) دعدم ذکر

نه عدم جوړول د سلفیانو او دهغوی دمتبعینو عادت دي.

که څوك دا اعتراض اوکړی چه د پیغمبر علیه السلام اوبعضې صحابه کرامو رضی الله عنهم نه دا دعا ثابته ده چه پیغمبر علیه السلام فرمائی:

اذا صلیتم علی المیت فاخلصوا له الدعاء (رواه ابو داؤد ۲: ۱۰۰)

اوامام کاسانی فرمائی چه د حضرت عمر رضی الله عنه نه یوځل جنازه اوشوه نو دوباره ئې د جنازې کولو اراده اوکړه نو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل (الصلاة علی الجنازة لا تعاد ولکن ادع للمیت واستغفرله) (بدائع ۱: ۳۱۱) او دغه .شان امام کاسانی د ابن عباس ابن عمر او عبدالله بن سلام رضی الله عنهم اجمعین نه روایت کړې دي چه کله به ددوی نه جنازه اوشوه نو په دعا به ئې اکتفاء کوله (بدائع ۱: ۳۱۱) ﴿۱﴾

ددې اعتراض جواب دادې چه ټولو محدثینو او فقهاؤ حدیث د ابوداؤد په دعا قبل السلام باندې حمل کړې دې، او ددې نورو روایتونو نه جواب دادې چه د چانه جنازه اوشی او دعا اوکړی نو دا محل د نزاع نه ده. محل د نزاع د جنازې کونکو دعا ده.

[فائده] د ډیرو مفسرینو اوفقهاؤ د کلام نه ددې دعا منع معلومیږي، او اکثرو پکښې څه دلیل نه دې ذکرکړې او بعضو دلیل ذکرکړې دې مثلاً صاحب د بزازیه فرمائی. (لا یقوم بالدعاء بعد صلاة الجنازة لانه دعاء مرة لان اکثرها دعاء (هامش هندية) ٤: ۸۰) یعنی جنازه دعا ده او که د هغې نه پس دعا اوکړې شی نود جنازې تکرار به لازم شي، د بزازیه ددې عبادت نه دا مراد نه دې چه

﴿۱﴾ قال الکاسانی: ولنا ماروی ان النبی صلی الله علیه وسلم صلی علی جنازة فلما فرغ جاء عمر ومعه قوم فاراد ان یصلی ثانیا فقال له النبی صلی الله علیه وسلم الصلاة علی الجنازة لا تعاد ولکن ادع للمیت واستغفرله وهذا نص فی الباب وروی ان ابن عباس وابن عمر رضی الله عنهم فاتتهما صلاة علی جنازة فلما حضرا ما زادا علی الاستغفار له، وروی عن عبد الله بن سلام انه فاتته الصلاة علی جنازة عمر رضی الله عنه فلما حضر قال ان سبقتمونی بالصلاة علیه فلا تسبقونی بالدعاء له. (بدائع الصنائع ۲: ۴۸ کیفیة الصلاة علی الجنازة)



که د سلام نه مخکښې یو ځل دعا اوشی او بیا د سلام نه پس په دوئم ځل دعا اوشی نو تکرار د دعا به لازم شی. که ددې عبارت نه هم دا مراد واخستلې شی نو د هر مونځ نه پس به ددعا منع لازم شي، ځکه چه د سلام نه مخکښې یو ځل مسنون دُعا شته یا لکه څنګه چه صاحب مرقاة ملا علی قاری رحمه الله فرمائی (لانه یشبه الزیادة فی صلاة الجنازة (٤: ٦٤) الفصل الثالث باب المشی با لجنازة) او تکرار د جنازې او په هغې باندې زیاتوالې هغه وخت لازمیږی چه په صفونو کښې ولاړ وي، او دعا کوي، او چه کله صفونه مات شی نو بیا دا توهمات نه لازمیږی او دې نکتې ته هغې فقهائې کرامو اشاره کړې ده کوم چه د لایقوم بالدعاء نه طویل تعبیر کوی او د لایدعو نه په مختصر تعبیر نه کوي، او هم دا حکمت دې دفرائضو پسې متصل د فرضو په ځائې کښې د سنتو د منع کولو،

کوم خلق چه ددې د کراهیت ثابتولو د پاره دا دلیل پیش کوی چه دا دعا پیغمبر علیه السلام او سلفو صالحینو نه ده کړې نو دا حنفی دلیل نه دې بلکه سلفی دلیل دې. او دا دلیل د دریو وجوهاتو په بنا باندې غلط دې.

(۱) دا په پیغمبر علیه السلام او سلفو صالحینو باندې دروغ تړل دي، د هغوی نه ددې دعا متعلق هیڅ روایت موجود نه دې. او د عدم ذکر اود ذکرعدم په مینځ کښې فرق نه کول غباوت یا غوایت دي، ﴿۱﴾

(۲) دعدم فعل نه عدم جوازنه ثابتیږي، ځکه چه حدیث صرف فعل ته نه وئیلې کیږی بلکه قول، فعل او تقریردرې واړو ته وئیلې کیږی ﴿۲﴾ او فقهائې

﴿۱﴾ مفتی کفایت الله دهلوی فرمائی چه د یو څیز د نه ذکر کیدلو سره د هغې عدم نه لازمیږی (فان عدم الثبوت لا یستلزم ثبوت العدم وهذا ظاهر جداً (کفایت المفتی ۳: ۳۴۸ فصل سوم د فرائض نه بعد د دعا مقدار)

﴿۲﴾ قال السید شریف الجرجانی: المرفوع هو ما اضیف الی النبی صلی الله علیه وسلم خاصة من قول او فعل او تقریر سواء کان متصلاً او منقطعاً.
(الرسالة فی فن اصول الحدیث الملحقه بالجامع الترمذی ص ۲)

کرام او مشایخ کله د ا تعبیر کوی نو دیکښې اختصار کیږی د هغوی مراد داوی چه نه ئې کړې دې نه ئې وئیلې دی او نه ئې قرار ګرځولې دي (فلراجع الی التعلیق الممجد علی ها مش موطاءالامام محمد ۱۴۴)

(۳) دا دلیل جمعًا او منعًا منقوض دې، پیغمبر علیه السلام په اردو او پښتو کښې د قرآن ترجمه نه ده کړې او د محققینو په نزد اذان ئې هم نه دې کړې او د صحیح روایاتو مطابق ئې پرتوګ نه دې اغوستې او دغه شان د رکوع په وخت کښې ئې رفع الیدین کړې او په مونځ کښې ئې خبرې کړې دې، فافهم که څوک اعتراض اوکړی چه دعبادت دپاره دخپل طرفنه څه وخت مقررکول مکروه دی لکه چه صاحب د بحرالرائق د یو تعلیل په ضمن کښې فرمائیلې دی:

**ولان ذکر الله اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشیئ دون شیئ لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع (۲:۱۵۹)**

نو ددې جواب دادې چه شرع او وحې ددې دعا متعلق ساکت دی نو د ابوداؤد دحدیث په بناء چه (وما سکت عنه فهو عفو﴿۱﴾ دا دعا به عفو او مباح وی او مشروع نه یعنی فرض، واجب به نه وی او مکروه به هله وی چه د جنازې د لواحقاتو او مکملاتو په طور باندې اوکړې شی ګنې مکروه به نه وی لکه چه صاحب بحر ورته اشاره کړې ده.

**حیث قال فی البحر ۲:۱۵۹ ولا یکبر فی طریق المصلی عند ابی حنیفة ای حکما للعید ولکن لو کبر لانه ذکر الله تعالیٰ یجوز ویستحب﴿۲﴾انتهیٰ﴿۳﴾.**

---

﴿۱﴾ (سنن ابی داؤد ۲:۱۸۳ باب مالم یذکر تحریمه)

﴿۲﴾ (البحر الرائق ۲:۱۵۹ باب العیدین)

﴿۳﴾ وفی منهاج السنن: قد ثبت الدعاء بعد صلاة الجنازة ممن فاتته الجنازة مثل ابن عمر وعبد الله بن سلام، واما الدعاء ممن صلیٰ علیها فذخیرة الاحادیث ساکتة عنه فمن ادعیٰ انه علیه الصلاة والسلام دعا بعدها او ادعی انه لم یدع بعدها فدخل فی حدیث من کذب علی متعمداً فلیتبؤ مقعده من النار ولو قال الخصم لو دعا بعدها لبلغ الینالجاز لنا ان نقول لو لم یدع لبلغ الینا کما بلغ الینا انه ما اذن وما اقام لصلاة العید،...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د غائبانه جنازې حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د مړی په عدمِ موجود ګئ کښې جنازه کیدیشی یا نه؟ یعنی غائبانه د جنازې مونځ لکه څنګه چه د شاه فیصل بادشاه په مرګ باندې ډیرو ملکونو کښې شوې وه؟ بینوا توجروا

المستفتی: خلیل الله تهائی لینډ...... ۲۰\۱ اپریل ۱۹۷۵

**الجواب:** محترم المقام محمد خلیل الله صاحب سلامت اوسیږي

د السلام علیکم نه پس دې واضحه وی چه د احنافو او موالکو په نزد جنازه علی الغائب مشروع نه ده، او د شوافعو او حنابله په نزد مشروع ده، هغوی وائی چه پیغمبر علیه السلام په نجاشی باندې غائبانه جنازه کړې ده، (متفق علیه﴿۱﴾ او حقیقت دادې چه پیغمبر علیه السلام نجاشی نه علاوه چرته په بل غائب باندې د جنازې مونځ نه دې کړې، حال دا چه پیغمبر علیه السلام ته په بعضې وختونو کښې په وخت خبرشوې دې، لکه چه امام بخاری رحمه الله روایت کړې چه زید، جعفر او ابن رواحه رضی الله عنهم چه په غزوه موته کښې شهیدان شوی وو...

---

(بقیه حاشیه) وبالجملة انه لا بد من الفرق بین عدم الروایة وبین روایة العدم نعم منع عنه الفقهاء، واکثرهم لم یذکروا دلیل المنع، والبعض عللوا المنع بالزیادة علی الجنازة والبعض الآخر عللوه بتکرار الجنازة، وکلتا القبیحتین انما تلزمان اذا ادعا قائما فی الصف دون بعد کسر الصف، وکذا اکثر الفقهاء یعبرون بلفظ طویل ای لا یقوم بالدعاء، ولا یعبرون بلفظ مختصر ای لا یدعو، فیکون الدعاء بعد کسر الصف عفو او مباحا لحدیث ما سکت عنه فهو عفو رواه ابوداؤد. نعم کم من مباح یصیر ممنوعا لعارض مثل الالتزام وغیره واعلم ان الفقهاء الحنفیة لم یعللوا هذا المنع بانه لم یوجد فی خیر القرون فانه دلیل سلفی منقوض جمعاً ومنعاً. (منهاج السنن شرح جامع السنن ۳:۲۱۶ باب ماجاء فی الصلاة علی القبر)

﴿۱﴾ عن ابی هریرة ان رسول الله صلی الله علیه وسلم نعی النجاشی فی...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

د هغوی د مرګ خبر پیغمبر علیه السلام ته شوې وو، (رواه البخاري) ﴿۱﴾ لهٰذا دا خاص فعل خوبه یا په دې حمل کړې شي چه د نجاشي بدن اوجسد حاضر کړې شوې وو، اود منځ نه حجاب لرې کړې شوې وو. لکه څنګه چه امام واقدي په ابن عباس رضی الله عنه باندې حواله ورکړې ده. ﴿۲﴾ اویا به دا دنجاشي په خصوصیت باندې حمل کولې شي. وهو الظاهر ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) الیوم الذی مات فیه وخرج الی المصلیٰ فصف بهم وکبر اربعا. (صحیح البخاری ۱: ۱۶۷ باب الرجل ینعیٰ الی اهل المیت بنفسه)

﴿۱﴾ عن انس بن مالک قال قال النبی صلی الله علیه وسلم اخذ الرایة زید فاصیب ثم اخذها جعفر فاصیب ثم اخذها عبد الله بن رواحة فاصیب وان عینی رسول الله صلی الله علیه وسلم لتذرفان ثم اخذها خالد بن الولید من غیر امرة ففتح له. (صحیح البخاری ۱: ۱۶۷ باب الرجل ینعیٰ الیٰ اهل المیت بنفسه)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: والجواب عن حدیث الصلاة علی النجاشی انه رفع الحجاب کما ذکره الواقدی عن ابن عباس ورواه ابوعوانة وابن حبان فی صحیحه عن عمران بن حصین فان قیل یعارضه ما اخرجه الطبرانی من حدیث مجمع بن جاریة قال فصففنا خلفه صفین وما نری شیأ قلنا لعلها کشفت لبعض دون بعض، او نقول کشفت للنبی صلی الله علیه وسلم دون الصحابة وهو کاف لصحة صلاة المقتدین.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۴: ۲۱۷ باب صلاة النبی صلی الله علیه وسلم علی النجاشی)

﴿۳﴾ قال الحصکفی: وشرطها ایضا حضوره ووضعه امام المصلی فلا تصح علی غائب ...... وصلاة النبی صلی الله علیه وسلم علی النجاشی لغویة او خصوصیة قال ابن عابدین: (قوله لغویة) ای المراد بها مجرد الدعا وهو بعید (قوله او خصوصیة) او لانه رفع سریره حتیٰ رآه علیه الصلاة والسلام بحضرته فتکون صلاة من خلفه علی میت یراه الامام وبحضرته دون المأمومین وهذا غیر مانع من الاقتداء...... من جملة ذلک انه توفی خلق کثیر من اصحابه صلی الله علیه وسلم من اعزهم علیه القراء ولم ینقل عنه انه صلی علیهم مع حرصه علی ذلک.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۱: ۶۴۱ باب صلاة الجنائز)



## د بالغانو او نابالغانو په مشترکه جنازه کښې به دواړه دعا ګانې لوستلې کیږي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د څلورو کسانو په یو ځائې جنازه بهتر ده، (چه دوه زنانه بالغې او دوه بچې وي) او که نه جدا جدا؟ او د بالغ او نابالغ د پاره چه کومې دعا ګانې دی کومې به لوستلې کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی صادق صوابی مردان........ ۱۳۱۲۱۱۹۷۲

**الجواب:** په دې صورت کښې یوه جنازه کول صحیح دی.

یشیر الیه ما فی الهندیة (۱: ۱۷۵) فیصف الرجال الی جهة الامام ثم الصبیان ثم الخناثیٰ ثم النساء ثم المراهقات ولو کان الکل رجالا روی الحسن الخ ﴿۱﴾ وبمعناه فی الدرالمختار والشرح الکبیر وغیره

لیکن بهتر داده چه ځان ځانته مونځ پرې اوکړی شي.

ی الدرالمختار ۱: ۸۲۱ اجتمعت الجنائز فافراد الصلاة علی کل واحدة اولیٰ من الجمع ﴿۲﴾ (هامش ردالمحتار ۱: ۸۲۱)

لیکن د دریم تکبیرنه پس به اللهم اغفر لحینا الخ، او اللهم اجعله لنا..الخ دواړه دعا ګانې جمع کولې شي.

(فتاویٰ دارالعلوم دیوبند ۵: ۳۶۳) ﴿۳﴾ قلت هو مقتضی القواعد ایضا فافهم. وهو الموفق

## په قاتل، غل، لاره شوکونکي، مفرور او باغی باندې د جنازې حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو کس اجرتی قاتل،

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۶۵ الفصل الخامس فی الصلاة علی المیت)
﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۸۴ باب الجنائز)
﴿۳﴾ (فتاویٰ دارالعلوم دیوبند ۵: ۳۶۳ فصل خامس نماز جنازه)
وقال الشرنبلالی: بقی ما اذا کان فهیم مکلفون وصغار والظاهر انه یأتی بدعاء الصغار بعد دعاالمکلفین کما مر. (حاشیة الطحطاوی ۵۹۳ باب احکام الجنائز)

غل ډاکو، لاره شوکونکي مفرور او باغی وی او بیا په ډاکه یا غلا کښې مړ شی آیا د داسې کس جنازه او هغه ته غسل ورکول جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم ۱۲|۱|۱۹۸۲

**الجواب:** په داسې کس دې څلور پنځه کسان جنازه اوکړی. د جماتونو په امامانو او علماؤ باندې دا ضروری نه ده چه په داسې کس باندې جنازه اوکړی ځکه چه جنازه فرض کفایه ده، او سړې د اکرام او عزت قابل نه دې. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د سخت باران په وجه جمات کښې جنآزه کول جائز دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کله مسلسل باران وی د جنازې د مونځ د پاره به د کوم ځائې منتخب کول موزون وي؟ که د باران په وجه جمات کښې جنازه ادا کړې شی نو دې صورت کښې د مړی مخ لیدل مناسب دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد یعقوب قریشی ایبټ اباد مانسهره.... ۲۳|۸|۱۹۷۳

**الجواب:** د باران وغیره په وجه جمات کښې د جنازې مونځ کول جائز دي، **کما فی ردالمحتار ۱:۸۲۹ انما تکره فی المسجد بلاعذر فان کان فلا ومن الاعذار المطر کما فی الخانیة والاعتکاف کما فی المبسوط﴿۲﴾**

او د مړی مخ کتل اګرچه جائز دي،

---

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: واذا ثبت الحکم فی البغاة ثبت فی قطاع الطریق، لانهم فی معناهم اذهم یسعون فی الارض بالفساد کالبغاة فکانوا فی استحقاق الاهانة مثلهم...... وقال ابویوسف یصلی علیه وکذلک من یقتل علی متاع یاخذه والمکابرون فی المصر بالسلاح لانهم یسعون فی الارض بالفساد فیلحقون بالبغاة والله اعلم.

(بدائع الصنائع ۲:۴۹ قبیل فصل فی کیفیة الصلاة علی الجنازة)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۶۵۴ مطلب فی کراهة صلاة الجنازة فی المسجد)



**کما فی الهندیة ۵:۳۸۷ ولا باس بان یرفع ستر المیت لیریٰ وجهه وانما یکره ذلک بعد الدفن ﴿۱﴾**

لیکن مړې د جنازې نه پس په جمات کښې ایسارول مکروه دی. ﴿۲﴾

وهوالموفق

## د جنازې په درود کښې د درود ابراهیمی نور الفاظ ثابت دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په جنازه کښې درود ابراهیمی لوستلې کیږی لیکن بعضې خلق پکښې نور الفاظ هم شاملوی لکه (وسلمت وبارکت ورحمت وترحمت الخ د بنده خیال دې چه دا بدعت دې دا آخری الفاظ خلقو د ځان نه جوړ کړې دی شرعاً څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ عبدالرزاق غزنی مسجد حضرو اټک.... ۲۹|۷|۱۹۸۹ء

**الجواب:** ټولو فقهائې کرامو لیکلی دی چه په جنازه کښې به دا د مونځ والا درود ابراهیمی لوستلې کیږی. ﴿۳﴾ او دا نور الفاظ هم په غیر مشهور روایاتو کښې ثابت دي، ﴿٤﴾ کما لا یخفی علی من راجع

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۵۱ الباب السادس عشر فی زیارة القبور وقرأة القرآن)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: وهذا الاطلاق فی الکراهة بناء علی ان المسجد انما بنی للصلاة المکتوبة وتوابعها من النوافل والذکر وتدریس العلم وقیل لا یکره اذا کان المیت خارج المسجد وهو مبنی علی ان الکراهة لاحتمال تلویث المسجد.

(البحر الرائق ۲:۱۸۷ فصل السلطان احق بصلاته)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله کما فی التشهد) ای المراد الصلاة الابراهیمیة التی یأتی بها المصلی فی قعدة التشهد. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۶۴۴ مطلب هل یسقط فرض الکفایه بفعل الصبی باب الجنائز)

﴿۴﴾ عن کعب بن عجرة قال قلت یارسول الله هذا السلام علیک قد علمناه فکیف الصلاة علیک؟ قال: قولوا: اللهم صل علی محمد وعلیٰ آل......(بقیه حاشیه اګلے صفحه پر)

الی شروح دلائل الخیرات، لهذا دا زیادت بدعت گرځول پخپله بدعت دي﴿۱﴾ وهو الموفق

## د خنثیٰ مشکل د جنازې طریقه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د خنثی مشکل جنازه به د ښځو پشان کولې شی یا د سړو پشان، په دې مسئله کې د امامانو راجح قول بیان کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: شهزادگل شیوه مردان..... ۲۴۱۸۱۱۹۷۵

(بقیه حاشیه)محمد کما صلیت علی ابراهیم وعلیٰ آل ابراهیم وبارک علی محمد وعلیٰ آل محمد کما بارکت علی ابراهیم وعلیٰ آل ابراهیم انک حمید مجید. قال: ابو محمد عبد الرحمن کوثر البرنی فی تعلیقه: فی اسناد المصنف یزیدبن ابی زیاد وهو ضعیف کان شیعیا، انظر التقریب (رقم ۲:۳۶۵) ومن طریقه اخرجه احمد فی مسنده (۴:۲۴۴) لکن اصل الحدیث ثابت صحیح من حدیث الصحیحین ففی صحیح البخاری عن عبد الرحمن بن ابی لیلیٰ قال: لقینی کعب ابن عجرة فقال: الا اهدی لک هدیة سمعتها من النبی ﷺ فقلت: بلی فاهدها لی، فقال: سألنا رسول الله ﷺ فقلنا: یا رسول الله کیف الصلوٰة علیکم اهل البیت، فان الله قد علمنا کیف نسلم علیک، قال: قولوا" اللهم صل علیٰ محمد وعلیٰ آل محمد کما صلیت علی ابراهیم وعلیٰ آل ابراهیم انک حمید مجید، اللهم بارک علیٰ محمد وعلیٰ آل محمد کما بارکت علیٰ ابراهیم وعلی آل آبراهم انک حمید مجید، اخرجه البخاری فی الانبیاء (رقم: ۳۱۹۰) واخرجه مسلم (۱:۱۷۵) الا انه لم یقل (وعلیٰ آل ابراهیم) واخرجاه من حدیث ابی حمید الساعدی رضی الله عنه ایضا ببعض اختلاف فی اللفظ.

واخرجه مسلم من حدیث ابی مسعود الانصاری رضی الله عنه ایضا وفی آخره: کما بارکت علیٰ آل ابراهیم فی العالمین انک حمید مجید.

(عمل الیوم واللیلة لابن السنی ۸۵ باب کیف الصلاة علی النبی ﷺ)

وهکذا جمع الشیخ المحدث مولانا محمد ذکریا الکاندهلوی عدة صیغ الصلاة الابراهیمیة فی رسالته "فضائل درود شریف" فلیراجع. (ازمرتب)

﴿۱﴾ وفی المنهاج: اعلم انه لم یرد فی هذه الروایة اجتماع ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



**جواب:** لم اجده صریحا فالاحوط ان یرجع الیه ضمیر المذکر بتاویل الشخص او ضمیر المونث بتاویل النفس فافهم فانه لا اشکال بعد البلوغ﴿۱﴾. وهو الموفق

## د مسلمانې مور یا مور پلار د متابعت د وجې نه به په بچې باندې جنازه کولې شي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو ماشوم مړشو، نو مولوی د جنازې کولو نه انکار اوکړو او هغوی وئیل چه د بچی د مور پوره حال معلوم نه دې، چه د فلانکی کس نه د حمل جوړیدلو نه مخکښې ئې نکاح کړې ده یا روستو خاوند او ښځه دواړ وائی چه مونږ په فلانکی مولوی صاحب باندې چه د پیښور او سیدونکې دې نکاح تړلې ده، نو دلته د پښتون گرئ نه هغه مولوی له لاړلو پیښور ته لیکن هغه عالم سره ملاؤ نه شو، دلته وارثانو

(بقیه حاشیه) ابراهیم وآل ابراهیم وخلت اکثر طرق حدیث کعب بن عجرة عن اجتماعهما فادعی ابن تیمیة وصاحبه ابن القیم عدم صحة اجتماعهما وعدم ثبوتهما فی روایه صحیحة وهذه غفلة وعجلة فقد ثبت ذلک فی حدیث کعب بن عجرة فی صحیح البخاری فی کتاب الانبیاء ۱:۴۷۷ وکذا فی الشطر الثانی من حدیث ابی سعید الخدری فی الصحیح من الدعوات ۲:۹۴۰ وفی التفسیر ۲:۲۰۸ کذا فی معارف السنن.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۳:۳۵ باب صفه الصلوٰة علی النبی ﷺ)

﴿۱﴾ چه کله خُنثیٰ مشکل بالغ وی نو بیا خو هیڅ اشکال نشته ځکه چه د بالغانو ښځو سړو یوشان جنازه کولې کیږی. په هغې کښې ددعا په وخت کښې د ضمیر فرق نه وی. البته چه نا بالغه وی نو د بالغینو دعا ځانته ده چه په هغې کښې د مذکر او د مؤنث د ضمیر فرق موجود دي.

حیث قال العلامة شرنبلالی: اما اذا کان صغیراً او مجنونا فلیقل اللهم اجعله لنا فرطاً واجعله لنا ذخراً واجعله لنا شافعا ومشفعاً (الجوهرة النیرة ۱:۱۳۰)

پس په خنثیٰ مشکل کښې دواړه طرفونه موجود دی لهٰذا چه هر یو ضمیر ورته راجع کړې نو جائز دی، وهٰکذا فی فتاوىٰ دارالعلوم دیوبند ۵:۳۵۰ قال الشیخ عزیزالرحمٰن: اللهم اجعله لنافرطا بضمیر مذکر او وائی ځکه چه دا مؤنث طرفته هم په تاویل د شخص راجع کیدیشي، او د مونث په ضمیر سره هم صحیح دی په تاویل د نفس سره.. فقط (ازمرتب)

هغه مړې دفن کړو بغیر د جنازې نه.اوس چه دا مولوی صاب د پیښور نه واپس راغې نو په قبر ئې جنازه اوکړه نو آیا داسې کول صحیح دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: میاں زرین مدرسه تعلیم القران پشون ګړهی نوشهره۱۹۲۹،۲۰۱۱۱۱

**الجواب:** چونکه دا ماشوم د والدینو یا صرف د مور د متابعت په وجه مسلمان دې، (۱)او فقهائې کرام په ده باندې د جنازې کولو نه منع نه کوی. لهٰذا په ده باندې جنازه نه کول غلطی ده. او په قبر باندې جنا زه کول.(د ریزه ریزه کیدلو نه مخکښې) جائز او صحیح ده. فلیراجع الی الشرح الکبیر والدر المختار وغیرهما (۲) وهوالموفق

## د حرامی په غوږ ونو کښې د اذان او جنازې حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ولد الحرام یعنی ولد الزنا چه د چا پلار معلوم نه وی د هغه په غوږ کښې به د شریعت مطابق اذان او اقامت وئیلې کیږی یا نه؟ دغه شان که دا بچې مړشو نو په ده باندې د جنازې کولو شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل کریم خطیب راجګان کهوټه راولپنډي

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين: اى فان الصبى يصير مسلما لان الولد يتبع خير الابوين دينا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۵۶ مطلب فى حمل الميت باب صلاة الجنائز)

(۲) قال العلامة الحصكفى: فيصلى على قبره ما لم يتمزق وان دفن واهيل عليه التراب بغير صلاة او بها بلا غسل او ممن لا ولاية له صلى على قبره استحسانا مالم يغلب على الظن تفسخه من غير تقدير هو الاصح وظاهره انه لو شك فى تفسخه صلى عليه.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۱: ۶۵۲ باب صلاة الجنائز)

(وهكذا فى الغنية المستملى المعروف بالكبيرى ۵۴۲ الرابع فى الصلاة فصل فى الجنائز)



**الجواب:** دا هلک به صرف د مور طرفته منسوب کیږی زانې(زنا کار) طرفته نه که مور ئې مسلمانه وه نو دا هلک به هم مسلمان وي. لان الولد يتبع خير الابوين، والمحقق هنا الحصر فى الام(۱)او په ده باندې جنازه کول جائز دی ځکه چه دا هلک د مور د متابعت د وجې نه مسلمان دې،دغه شان په زانی او زانیه هم جنازه کول جائز دی.(الحديث رواه ابوداؤد صلوا على كل بروفاجر(۲) نو ولد الزنا چه مجرم هم نه دې په هغه به په طریق اولٰی سره جنازه کولې کیږی.او کوم مړې چه د جنازې نه مستثنٰی کړې شوې دي دا دهغوی نه خارج دي فليراجع الى الدرالمختار باب الجنائز (۳) نو په ده به د مسلمانانو ماشومانو احکامات جاری کیږی. وهوالموفق

## که په اوقاتِ مکروه کښې جنازه حاضره شی نو جنازه مکروه نه ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که جنازه عندالطلوع، عندالزوال،اویا عندالغروب تیاره شی نوآیا به دې اوقاتوکښې دجنازې مونځ کول جائزدي؟ که جائز نه وی نوشامی جلداول عالمګیری جلد اول ولې فتوٰی ورکړې چه سجده تلاوت مؤخر کړئ او د جنازې په حاضریدلو باندې تاخیر مه کوئ ځکه چه دا مکروه دي، د جنازې مونځ فوراً ادا کړئ، او د حدیث نه هم دا واضح دی چه حضور ﷺ حضرت علي رضی الله عنه ته فرمائیلې وو

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين: قال فى شرحه او اسلم احد ابويه يجعل مسلما تبعا سواء كان الصغير عاقلا اولم يكن لان الولد يتبع خير الابوين دينا.

(ردالمحتار ۱: ۶۵۵ مطلب فى حمل الميت باب صلاة الجنائز)

(۲) (سنن ابى داؤد ۱: ۳۵۰ باب فى الغز ومع ائمة الجور كتاب الجهاد)

(۳) قال العلامة الحصكفى: وهى فرض على كل مسلم مات خلا اربعة بغاة وقطاع طريق فلا يغسلوا ولا يصلى عليهم اذا قتلوا فى الحرب وكذا اهل عصبة ومكابر فى مصر بسلاح وخناق خنق غير مرة فحكمهم كالبغاة.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۱: ۶۴۲ باب صلاة الجنائز)

چه په څلور ځیزونو کښې ناوخته کوه مه، په هغې کښې یوه جنازه هم ده،او هغه شامی او شرح الیاس هم نقل کړی دي، د جواز اوعدم جواز په صورت کښې چه کومه فیصله وی د هغې نه مونږ خبر کړئ؟بینوا توجروا

المستفتی: میر ولی الله بټل مانسهره.....۱۹۷٦/۵/۱۳

**الجواب:** جنازه چه کله په دې وختونو کښې حاضره شی نو جنازه کول به مکروه نه وی،(لما ذکر المستفتی لکن معرفة الحضور امر مهم﴿۱﴾ وهو الموفق

## د جنازې په نیت کښې د بعضې الفاظو پرېخودل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه څمونږ په کلی کښې یو سړې مړ شوې وو،د جنازې کولو والا مولوی صاحب خلقو ته د جنازې نیت په اوچت آواز داسې اوښودلو(څلور تکبیرونه د جنازې مونځ کوم فرض کفایه، ثنا خاص د الله تعالی د پاره، دعا د پاره ددې حاضر مړی په دې حاضر امام پسې مخ مې د کعبې شریفې په لور که الله اکبر. په دې نیت کښې ئې د درود شریف تذکره نه ده کړې ددینه پس یوه بله جنازه کول وو د جنازې شروع کولو

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: (قوله فلو وجبتا فیها) ای بان تلیت الآیة فی تلک الاوقات او حضرت فیها الجنازة...... قوله ای تحریما فانه اذا کان الافضل عدم التاخیر فی الجنازة فلا کراهة اصلا وما فی التحفة اقره فی البحر والنهر والفتح والمعراج لحدیث ثلاث لا یؤخرن منها الجنازة اذا حضرت وقال فی شرح المنیة والفرق بینها وبین سجدة التلاوة ظاهر لان التعجیل فیها مطلوب مطلقا الا لمانع وحضورها فی وقت مباح مانع من الصلاة علیها فی وقت مکروه بخلاف حضورها فی وقت مکروه وبخلاف سجدة التلاوة لان التعجیل لا یستحب فیها مطلقا ای بل یستحب فی وقت مباح فقط فثبتت کراهة التنزیه فی سجدة التلاوة دون صلاة الجنازة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۲۷۵ مطلب فی تکرار الجماعة والاقتداء بالمخالف)



نه مخکښې یو سړې د جنازې د نیت اورولو متعلق امام صاحب ته اووئیل امام په دویم ځل نیت اوښودلو نو په هغې کښې امام صاحب ته اووئیلې شو چه درود د پیغمبر علیه السلام د پاره ولې نه ښائې؟ امام صاحب ورته جواب ورکړو چه درود په مینځ کښې راځی ددینه پس خلق ډیر فساد ته نزدې شول چه امام صاحب د پیغمبر علیه السلام سره دشمنئ او بخل نه کار واخستلو، په دغه وخت کښې څومره خلق موجود وو کنځلې ئې کولې او لاړل، ددې متعلق او فرمایئ چه دا جنازه اوشوه یا نه.؟ بینوا توجروا

المستفتی:غلام حسین کیملپور......۱۹٦۹/۵/۲۰

**الجواب:** په جنازه کښې د جنازې نیت کول ضروری نه دې او صرف اراده کافی ده،﴿۱﴾ او باقی دا الفاظ چه درود شریف واسطې پیغمبر علیه السلام ددې وئیل اونه وئیل برابر دي، لهذا امام صاحب په حقه دې او خلق د بې علمئ په وجه په غلطئ دي، وهو الموفق

## په قبرستان کښې د جنازې مونځ او د مړی منتقل کولو په وجه د دویمې جنازې حکم

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) د پخوانئ زمانې نه یو قبرستان دې اوس پکښې نه قبرشته اونه د قبرنښه وغیره بلکه یو صفا میدان پاتې شوې دې، آیا په دې د جنازې مونځ کول جائز دی.؟ (۲) یو مړې چه جنازه، غسل کفن دفن ئې شوې دې، دوه ورځې پس که دا مړې بل ځائې ته منتقل کړی او دفن کوی ئې نو آیا دې مړی د پاره په دویم ځل غسل کفن یا

﴿۱﴾وفی الهندیة: فالامام والقوم ینوون ویقولون نویت اداء هذه الفریضة عبادة الله تعالی متوجها الی الکعبة مقتدیا بالامام ولو تفکر الامام بالقلب انه یودی صلاة الجنازة یصح ولو قال المقتدی اقتدیت بالامام یجوز کذا فی المضمرات.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱٦۴ الفصل الخامس فی الصلاة علی المیت)

جنازه کول صحیح دی؟ مدلل جواب باندې حکم صادر کړئ، واجرکم علی الله

المستفتی: ایم عبد الغفور گهمبیری مری هزاره.... ۱۳۱۱۹۶۹

**الجواب:** (۱) دجنازې مونځ په قبرستان کښې کول جائزدی نوپه هوار میدان کښې به په طریقه اولی جائزوی:

**والدلیل علیه جواز صلاة الجنازة عند محاذاة المیت اجماعا ولان الفقهاء صرحوا بجواز صلاة الجنازة علی القبر فی بعض الصور، فی الدرالمختار: وان دفن بغیر صلاة صلی علی قبره ﴿۱﴾ ولان النبی ﷺ صلی علی القبر ﴿۲﴾.**

(۲) که دا جنازه د بادشاه او قاضی په اجازت سره شوې وی نو اعاده ئې نشته کنې اعاده ئې جائز ده او د غسل اعاده پرې نشته.

**قال فی الهندیة ۱:۱۶۴ رجل مات فی غیر بلده ثم جاء اهله فحملوه الی منزله ان کانت الصلاة باذن السلطان او القاضی لا تعاد کذا فی فتاویٰ قاضی خان ﴿۳﴾. وهو الموفق**

## د تول عمر بیلماځه سړی د جنازې حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوسړې ډیر کمزورې او مرگ ته نزدې دې. تول عمرئې په دې کلی کښې د تیرولو باوجود هم یوسړې دده متعلق د مونځ کولو شهادت نه شی ورکولې، آیا ددې بیلماځه جنازه کول جائز دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عبداللطیف بټل مانسهره.... ۶شعبان ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** که دا سړې د اسلام دعوی کوی او مونځ نه کول گناه گڼړی نو ده باندې

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱:۶۵۲ باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ عن ابن المسیب ان النبی ﷺ صلی علیٰ قبر ام سعد بن عبادة بعد شهر.

(جامع ترمذی ۱:۱۲۳ باب ماجاء فی الصلوة علی القبر)

﴿۳﴾ (الفتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۶۴ الفصل الخامس فی الصلاة علی المیت)



به د جنازې مونځ کولې شي، لکو نه مسلماً مجرماً ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د اغوا په دوران کښې په اغوا کننده مقتول باندې به جنازه نه شی کولې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ علاقه قبائلو ته نزدې ده، په هغوی کښې یو مخصوص قوم دې چه د پیسو د پاره تښتول کوی اوس که دا سړې قتل کړېشی نو ددې شرعاً څه حکم دې؟ او په ده د جنازې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نا معلوم.... ۲۱۹۱۱۹۸۷

**الجواب:** د تښتونکی قتل جائز دې، عام خلق ئې ددې گناه په وخت کښې قتل کولې شی. او حکومت ئې هم هر وخت قتل کولې شی. او چه کله دا سړې د اغوا په وخت کښې قتل شی نو په ده به جنازه نه شی کولې. (فلیراجع الی جنائز رد المحتار ﴿۳﴾) وهو الموفق

---

﴿۱﴾ **وفی الهندیة: ویصلی علی کل مسلم مات بعد الولادة صغیراً کان او کبیرا ذکراً کان اوانثی الا البغاة وقطاع الطریق الخ.**

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۶۳ الفصل الخامس فی الصلاة علی المیت)

﴿۲﴾ **قال العلامه الحصکفی: وهی فرض علی کل مسلم مات خلا اربعة بغاة وقطاع طریق فلا یغسلوا ولا یصلی علیهم اذا قتلوا فی الحرب ولو بعده صلی علیهم لانه حد او قصاص وکذا اهل عصبة ومکابر فی مصر لیلا بسلاح وخناق خنق غیر مرة فحکمهم کالبغاة.**

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱:۶۴۲ باب صلاة الجنائز)

...

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

**فتاوی فریدیه دریم جلد**

## فصل فی الحمل
## والغسل والدفن والتعزیة



.............



بسم الله الرحمن الرحيم

عن ابی هریرة ؓ قال: قال رسول الله ﷺ من شهد الجنازة حتی یصلی علیها فله قیراط، ومن شهد ها حتی تدفن فله قیراطان قیل: وما القیراطان؟ قال: مثل الجبلین العظیمین.

.......(متفق علیه).......

.......

# فصل فی الحمل والغسل والدفن والتعزیة

## چرته چه مرګ شوی وی دهغې ځائې په مقبره کښې دفن کول مستحب دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو خاندان د وطن نه دولس سوه میله لرې اوسیږی او چه کله د هغوی نه څوک مړ شی نو هغوی ئې وطن ته راوړې، اوهلته ئې دفن کوی آیا دا دمړی نقل کول جائزدي؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی غوث الرحمٰن پټهان کوټ حیدرآباد..۱۹۶۹ء۱۲/۲۱/۱۲

**الجواب:** بهتر داده چه سړی کوم ځائې کښې مړ شی نو د هغه ځائې په مقبره کښې دې دفن کړیشی لیکن د دفن کولو نه مخکښې ئې نقل کول هم جائزدی.

فی الهندیة ویستحب فی القتیل والمیت دفنه فی المکان الذی مات فی مقابر اولئک القوم ولو مات فی غیر بلده یستحب ترکه فان نقل الی مصر آخر لا بأس به(۱ :۱۶۷) ﴿۱﴾. وهوالموفق

## د مړی د پاره صندوق جوړول او دفن کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ علاقه کښې مړې په قبر کښې کیښودلو په ځائې باندې په یو جوړ شوی صندوق کښې کیښنو دلې کیږی. آیا دا صندوق جائز دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:حاجی محمد حسن ټل کوهاټ.........۱۹۸۴ء۴/۸/۱

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱ :۱۶۷ الفصل السادس فی القبر والدفن والنقل من مکان الیٰ آخر)



**الجواب:** د زنانه دپاره تابوت په هر حالت کښې جائز دې او د سړو د پاره په وخت دحاجت جائز دې.مثلاً چه زمکه نرمه، شګلنه او خورې والا وی.

کمافی ردالمحتار ۱ :۸۳۶ قوله لابأس باتخاذ تابوت ، ای یرخص ذلک عند الحاجة والا کره کما قدمناه آنفا وفی المحیط واستحسن مشائخنا اتخاذ التابوت للنساء یعنی ولو لم تکن الارض رخوة فانه اقرب الی الستر والتحرز عن مسها عند الوضع فی القبر ﴿۱﴾. وهوالموفق

## مړی ته په دویم ځل غسل ورکول یا ګنډ لې شوې قمیص پر توګ وراچول د (تعامل امت) نه خلاف دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) زمونږ په علاقه کښې مړې ته په دویم ځل د لامبولو رواج جوړشوې دې، یو فوراً د مړکیدلو نه پس او یو د خلقو خبرولو باندې یعنی د فن کولو ته نزدې وخت کښې (۲) د مسنون کفن نه علاوه اوس ګنډلې قمیص پرتوګ وغیره هم وراغوندوی د شرعی حکم نه موخبر کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام سرور ګهوټی راولپنډي

**الجواب:**(۱) په دویم ځل غسل ورکول د امت د تعامل نه خلاف دی.﴿۲﴾ او په دې کښې د مړی دوه ځلې بې پردې کول هم دې،نودا لازم الترک او قبیح دې خصوصاً داچه په دیکښې د اولنی غسل د عدم کفایت وهم موجود دې.(۲) دا رسم هم دتعامل امت نه خلاف دې په دې کښې اسراف او تبذیردې بلکه په دې کښې دمړی د تعذیب خطره هم شته دې. (لکونه راضیا به حال حیٰوته، وهوالموفق

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱ :۶۶۰ مطلب فی دفن المیت)

﴿۲﴾وفی الهندیة: والواجب هو الغسل مرة واحدة..... فان خرج منه شئ غسله ولا یعید غسله ولا وضوءه ثم ینشفه بثوب کیلا تبتل اکفانه. (فتاویٰ عالمگیریة ۱ :۱۵۸ الفصل الثانی فی الغسل)

﴿۳﴾ قال الحصکفی: ویسن فی الکفن ازار وقمیص ولفافة، وقال ابن عابدین: وفی صحیح مسلم عنه ﷺ اذا کفن احد کم اخاه فلیحسن کفنه وروی ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

**بعدالغسل او د جنازې وړلو وخت کښې به د مړی سر او خپې کوم طرفته وي؟ او خلقو لره د دفن نه مخکښې د کتلو وغيره مسئله**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه؟ (۱) بعدالغسل به د مړی سر او خپې کوم طرف ته وی.؟ (۲) د جنازې وړلو وخت کښې به خپې کوم طرفته وي؟ (۳) د جنازې نه پس خلق د خاورې اچولو کښې مدد کولو نه بغير څی آيا دا صحيح دی.؟ (۴) قبر به څومره اوچت وي؟ (۵) د قبر د تيارئ نه پس د قبر سر خپوته او دريدل او څه وئيل څنګه دي؟ (۶) مړې د جمعې په ورځ د فن کولو نه پس په دريمه ورځ چنړې راوړل او هغه دم کول او خوړل څه حکم لري؟ بينو اتوجرو

المستفتی: حافظ رمزاحمد تالهی تهر پارکر سندھ... ۳۱\۱۲\۱۹۷۵

**الجواب:** (۱) په دې حکم کښې تنګی نشته بلکه کومه چه آسانه وی هغه دې اوکړی. (کما فی العالمگيريه (۱:۱۶۷) والاصح انه يوضع کما تيسر ﴿۱﴾

(۲) خپې به شاته اوچتولو والا طرفته کولې شی. (کما فی الهندية ۱:۱۷۶ وفی حالة المشی بالجنازه يقدم الراس کذا فی المضمرات ﴿۲﴾

---

**(بقيه حاشيه) ابوداؤد عنهﷺ لا تغالوا فی الکفن فانه يسلب سلبا سريعا وجمع بين الحديثين بان المراد بتحسينه بياضه ونظافته لا کونه ثميناً حلية وهو فی معنى ما مر عن النهر. (الدر المختار مع ردالمحتار ۱: ۶۳۷ مطلب فی الکفن) وقال الشرنبلالی: ولا يجعل لقميصه کم لانه يکون لحاجة الحی ولا دخريص لانه يفعل للحی ليتسع الاسفل للمشی فيه ولا جيب وهو الشق النازل على الصدر لانه لحاجة الحی ولو کفن فی قميص حی قطع جيبه ولبنته کذا فی التبيين ولا تلف اطرافه لعلم الحاجة اليه. (امدادالفتاح شرح نور الايضاح ۶۱۴ مطلب فی التکفين)**

**﴿۱﴾ (فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۱۵۸ الفصل الثانی فی الغسل)**

**﴿۲﴾ (فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۱۶۲ الفصل الرابع فی حمل الجنازة)**



(۳) جائز دې البته افضل دادی چه د دفن کولو پورې انتظار اوکړی.

**قال رسول اللهﷺ من اتبع جنازة مسلم ايمانا واحتسابا وكان معه حتى يصلى عليها ويفرغ من دفنها فانه يرجع من الاجر بقيراطين كل قيراط مثل احد ومن صلى عليها ثم رجع قبل ان تدفن فانه يرجع بقيراط ﴿۱﴾ متفق عليه (مشكواة ۱۵۸).**

(۴) يوه لويشت اوچتوالې پکار دې: (کما فی الهنديه ۱: ۱۷۶ ويسنم القبر قدر الشبر ﴿۲﴾ (۵) سنت دی:

**کما فی ردالمحتار ۱: ۸۳۸ وکان ابن عمر يستحب ان يقرء على القبر بعد الدفن اول سورة البقرة وخاتمتها ﴿۳﴾.**

---

**﴿۱﴾ (مشکواة المصابيح ۱: ۱۴۴ باب المشی بالجنازة الفصل الاول)**

**﴿۲﴾ (فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۱۶۶ الفصل السادس فی القبر والدفن والنقل من مکان الى آخر)**

**﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدين: فقد ثبت انه عليه الصلاة والسلام قرأ اول سورة البقرة عند رأس ميت وآخرها عند رجليه. (ردالمحتار ۱: ۶۶۵ مطلب فی زيارة القبور باب صلاة الجنائز) وقال ابن قيم الجوزية: وقد ذكر عن جماعة من السلف انهم اوصوا ان يقرأ عند قبورهم وقت الدفن قال عبد الحق: يروى ان عبد الله بن عمر امر ان يقرأ عند قبره سورة البقرة وممن رأى ذلك المعلى بن عبد الرحمن وكان الامام احمد ينكر ذلك اولا حيث لم يبلغه فيه الاثر ثم رجع عن ذلك وقال الخلال فی الجامع القراءة عند القبور: اخبرنا العباس بن محمد الدورى حدثنا يحى بن معين...... قال ابى: اذا انامت فضعنى فی اللحد وقل بسم الله وعلى سنة رسول الله وسن على التراب سناء، واقرأ عند رأسى بفاتحة البقرة فانى سمعت عبد الله بن عمر يقول ذلك (اخرجه البيهقى فی السنن الكبرىٰ باب ما ورد فی قراءة القرآن عند القبر) قال عباس الدورى: سألت احمد بن حنبل قلت: تحفظ فی القراءة على القبر شيأً؟ فقال لا وسألت يحىٰ بن معين فحدثنى بهذا الحديث. وقال الخلال: واخبرنى الحسن بن احمد الوراق وحدثنى على بن موسىٰ الحداد وكان صدوقا، قال: كنت مع احمد بن حنبل ومحمد بن قدامة الجوهرى فی جنازة، فلما دفن الميت جلس رجل ضرير يقرأ...... (بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)**

(۶) ددې چنړو خوړل د ثواب په نیت سره بدعت دي، ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د دفن کولو نه پس د تعزیت وخت شروع کیږی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې په دریاب کښې ډوب شو او لاش ئې ورک شو. بیا څو ورځې پس ئې لاش ملاؤ شو، اوس به تعزیت د کوم وخت نه شروع کیږي. د ډوبیدلو دوخت نه یا د دفن کولو نه پس؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل مولی جلبئ صوابی....۱۹۸۳ء۱۲۱۸۱

**الجواب:** د قواعدو په رڼا کښې ددفن کولو نه پس د تعزیت وخت شروع کیږی، (کما فی رد المحتار ۱: ۲۳۰ ﴿۲﴾، وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) عند القبر، فقال له احمد: یاهذا ان القراءة عند القبر بدعة، فلما خرجنا من المقابر قال محمد بن قدامة لاحمد بن حنبل: یاابا عبد الله ما تقول فی مبشر الحلبی؟ قال: ثقة، قال: کتبت عنه شیأ؟ قال: نعم، فاخبرنی مبشر عن عبد الرحمن بن العلاء بن اللجلاج، عن ابیه انه اوصیٰ اذا دفن یقرأ عند رأسه بفاتحة البقرة وخاتمتها، وقال سمعت ابن عمر یوصی بذلک فقال له احمد: فارجع وقل للرجل یقرأ (اخرجه الطبرانی فی المعجم الکبیر ۴: ۱۵۴) وقال الحسن بن الصباح الزعفرانی: سألت الشافعی عن القراءة عند القبر فقال: لا بأس بها.

(کتاب الروح لابن القیم ۱۸ المسئلة الاولی)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: ولان ذکر الله تعالیٰ اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشیء دون شیء لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به.

(البحر الرائق ۲: ۱۵۹ باب العیدین)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: وهی بعد الدفن افضل منها قبله لان اهل المیت مشغولون قبل الدفن بتجهیزه ولان وحشتهم بعد الدفن لفراقه وهذا اذا لم یرمنهم جزع شدید والاقدمت لتسکینهم جوهرة. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۱: ۶۶۵ مطلب فی زیارة القبور باب صلاة الجنائز)



## د ښځې خاوند یوبل د غسل او دفن وغیره حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی (۱) چه خاوند مړشی نو ښځه د مړ خاوند په کټ کیناستلې شی یا نه؟ (۲) که ښځه مړه شی نو خاوند د ښځې کټ د جنازې په وخت کښې اوچتولې شی یا نه؟ دغه غیر محرم ئې په قبر کښې کوزولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ملک کرم بخش نمبردار کیمپلور...۱۷ مارچ ۱۹۷۵ء

**الجواب:** کیناستلې شی غسل هم ورکولی شي، (شامی وغیره) ﴿۱﴾ (۲) کټ خو پردی خلق هم اوچتولی شی البته په قبر کښې به ئې محارم کوزوی که محارم نه وی یا ناکافی وی نود نورو رشته دارانو نه خاوند مقدم او حقدار دې او ضرورت په وخت کښې ئې پردی خلق هم کوزولې شي (هندیه) ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د خاوند د پاره مړې ښځې ته په غسل ورکولو کښې د تجرید البخاری حدیث نه استدلال صحیح نه دې

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په تجرید البخاری کښې دی چه حضرت فاطمه رضی الله عنها ته حضرت علی رضی الله عنه غسل ورکړې وو، ددې مسئلې باره کښې تحقیق څه دې؟ آیا یو سړې خپلې ښځې ته غسل ورکولې شی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاضی نورالبصر مقام جلوزې پشاور....۱۹۲۹؍۱؍۱۹

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وهی لا تمنع من ذلک، قال ابن عابدین: (تحت قوله وهی لا تمنع من ذلک) ای من تغسیل زوجها دخل بها اولا.

(ردالمحتار ۱: ۶۳۴ مطلب فی حدیث کل سبب ونسب منقطع الاسببی ونسبی صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ذوالرحم المحرم اولی بادخال المرأة من غیرهم کذا فی الجوهرة النیرة وکذا ذوالرحم غیر المحرم اولی من الاجنبی فان لم یکن فلا بأس للاجانب وضعها کذا فی البحر الرائق.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۶۶ الفصل السادس فی القبر والدفن)

**الجواب:** اول خو دا ثابت نه دي، دویم دا په خصوصیت باندې محمول دي، لهذا بل څوک خپلې ښځې ته غسل نشي ورکولې:

فی الدر المختار: ویمنع زوجها من غسلها ومسها لامن النظر الیها علی الاصح وقالت الائمة الثلاثة یجوز لان علیا غسل فاطمة رضی الله عنها قلنا هذا محمول علی بقاء الزوجیة لقوله علیه السلام کل سبب ونسب ینقطع بالموت الا سببی ونسبی مع ان بعض الصحابة انکر علیه ﴿۱﴾ (وفی ردالمحتار ۱:۸۰۳). قال فی شرح المجمع لمصنفه فاطمة رضی الله عنها غسلتها ام ایمن حاضنته ﷺ ورضی عنها فتحمل روایة الغسل لعلی رضی الله تعالیٰ عنه علی معنی التهیئة والقیام التام باسبابه ولان ثبتت الروایة فهو مختص به الا تری ان ابن مسعود رضی الله عنه لما اعترض علیه بذلک اجابه بقوله اما علمت ان رسول الله ﷺ قال ان فاطمة زوجتک فی الدنیا والاخرة فادعاء الخصوصیة دلیل علی ان المذهب عندهم عدم الجواز انتهیٰ. وهوالموفق

## د مړی په غوږونو کښې د اذان کولو هیڅ څه ثبوت نشته

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې کښې څه فرمائی. (۱) مړی ته اذان کول چه په بعضې علاقو کښې مروج دې ددې څه دلیل شته؟ (۲) آیا دارشتیادی چه عشره مبشره کښې د یوصاحب دوفات نه پس پیغمبر علیه السلام دهغه په غوږونو کښې اذان کړې ووکه رشتیا وی نوبیا دامستحب دی که سنت؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورالهادی اسماعیله مردان.....۸جون ۱۹۷۵ء

**الجواب:** (۱) خلاف سنت دي، ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۱:۶۳۳ مطلب فی حدیث کل سبب ونسب باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: فی الاقتصار علی ما ذکر من الوارد اشارة الی انه لا یسن الاذان عند ادخال المیت فی قبره کما هو المعتاد الآن وقد...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



(۲) دا حدیث ثابت نه دي﴿۱﴾ داټول بناء الفاسد علی الفاسد دي، هوالموفق

## په قبرداذان حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د اذان علی القبر شرعی حقیقت څه دې.؟ سنت دی یا بدعت دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: اول شیر ایډوکیټ یا رحسین مردان.....۲۴/۷/۱۹۸۴ء

**الجواب:** د بعضې شوافعو په نزد قبر کښې اذان کول مستحب دي، لیکن محققینو شوافع ددې تردید کړې. (کما فی رد المحتار ۱:۳۵۸ قیل انزال المیت القبر قیاسًا علی اول خروجه للدنیا لکن رده ابن حجرفی شرح اللعاب ﴿۲﴾

---

(بقیه حاشیه) صرح ابن حجر فی فتاویه بانه بدعة وقال ومن ظن انه سنة قیاسا علی ندبهما للمولود الحاقا لخاتمة الامر بابتدائه فلم یصب.

(ردالمحتار ۱:۶۶۰ مطلب فی دفن المیت باب صلاة الجنائز)

﴿۱﴾ امام ربانی رشید احمد گنگوهی فرمائی. د دفن نه پس قبر باندې اذان کول بدعت دي چرته په قرون ثلثه کښې ددې ثبوت نشته لکه علامه شامی په رد المحتار کښې لیکلې دي، (تنبیه: فی الاقتصار علی ما ذکرمن الوارد اشارة الی انه لایسن الاذان عند ادخال المیت، اوعلامه خیرالدین رملی په حاشیه بحرالرائق کښې لیکلی دی،

قیل وعند انزال المیت القبر قیاسا علی اول خروجه من الدنیا لکن رده ابن حجر فی شرح العباب انتهیٰ.

او په درالبحار کښې ئې لیکلې دی،

من البدع التی شاعت فی بلاد الهند الاذان علی القبر بعد الدفن انتهیٰ

او په تو شیح شرح تنقیع محمود البلخی کښې مذکور دی.

ما فی الاثور من الاذان علی القبر ولیس بشئ انتهیٰ کذا فی الفهم المسائل.

(فتاویٰ رشیدیه ۱:۱۳۶ قبرپراذان دینا)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۱:۲۸۳ مطلب فی المواضع التی یندب لها الاذان فی غیر الصلاة)

او د احنافو مشائخو ددې اذان په باره کښې هیڅ تذکره نه ده کړې، البته بعضې محققینو یعنی علامه شامی په رد المحتار ۱: ۸۳۷ کښې په دې باره کښې کراهیت طرف ته اشاره کړې ده. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## مړ پیدا شوې بچې به په قبرستان کښې دفن کولې شي؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو مړ پیدا شوې بچې به په قبرستان کښې دفن کولې شی یاچرته یو خاص ځائې کښې؟ بینوا توجروا

المستفتی: گلزمان کورنگی روډ کراچی نمبر ۴.... ۱۰صفر ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** د کافی تلاش باوجود صریح جزیه ملاؤ نه شوه د قواعدونه داسې معلومیږی چه په عام قبرستان کښې به دفن کولې شی.(لان فیه اکرامًا کما فی الغسل والتسمیة،قال صاحب الدرالمختار والا یستهل غسل وسمي﴿۲﴾ وهوالموفق

## په قبر کښې دمړی سره تولائې وغیره کیښودل خلافِ سنت دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د مړی سره دکفن نه علاوه نور څیزونه لکه تولائی وغیره کیښودل جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالقیوم کوه مری راولپنډي

**الجواب:** د کفن نه علاوه نور څیزونه په قبر کښې کیښودل خلاف سنت دي، (شامی ۱: ۸۳۶) ﴿۳﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الشامی: فی الاقتصار علی ما ذکر من الوارد اشارة الی انه لا یسن الاذان عند ادخال المیت فی قبره کما هو المعتاد الآن وقد صرح ابن حجر فی فتاویه بانه بدعة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۶۰ مطلب فی دفن المیت)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۵۵ باب صلاة الجنازة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ویحسن الکفن) بان یکفن...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د کفن په وخت که قبر او غورزیږی نو بیا دې سم کړې شي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې د دفن په وخت کښې یو قبر او غور زیږی حال دا چه مړې په لحد کښې کیښودلې شوې وو. نو په داسې موقع کښې کوم کار بهتردې نوې قبر جوړکړې شي،یا دا صحیح کړیشی او مړې پکښې دفن کړیشي؟ بیواتوجروا

المستفتی:گل قدم لنډیوا بنوں...... ۱۷۱۸۱۱۹۷۷

**الجواب:** ددې قبر اصلاح کول پکار دی فقهائې کرامو چه د کومو وجوهاتو په بناء باندې د مړې راویستل جائز گرځولې دی په هغې کښې ئې د قبر غورزیدل نه دی شمارکړې، (کما فی شرح التنویر ولا یخرج منه بعد اهالة التراب الا لحق آدمی الخ ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د قبر سرخېو ته د سورة بقرې اول آخرلوستل اود تلقین بعد الممات حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعدالدفن د قبر سر خپو طرفته د سورة البقرې اول آخر لوستل جائز دی یا نه؟ دغه شان د تلقین بعدالممات څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: بانډه سیدان ضلع مانسهره. ۲۲ذی الحجه ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** واضحه دې وی چه د سورة البقره اول اوآخر (دقبر سر اوخپوته) لوستل مسنون دي، (لحدیث ورد بذلک رواه البیهقی عن ابن عمر کما فی المشکوٰة (۱: ۱٦٤) ﴿۲﴾

---

(بقیه حاشیه) بکفن مثله وهو ان ینظر الی ثیابه فی حیاته للجمعة والعیدین وفی المرأة ما تلبسه لزیارة ابویها کذا فی المعراج فقول الحدادی وتکره المغالاة فی الکفن یعنی زیادة علی کفن المثل نهر. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ٦٣٦ مطلب فی الکفن باب صلاة الجنازة)

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ٦٢٢ باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ عن عبد الله بن عمر قال سمعت النبی ﷺ یقول...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

لیکن د تلقین بعد الممات باره کښې د ,,نه این کارمې کنم ونه انکارمې کنم،، طرز عمل معمول ساتل پکاردی.

کما فی شرح التنویر ولا یلقن بعد تلحیده وان فعل لا ینهی عنه (هامش ردالمحتار ۱:۷۹۲) ﴿۱﴾. وهو الموفق

## د دفن نه پس د مړی خپو ته د سورة البقره اول او آخر لوستل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه زمونږ په علاقه کښې دمړی د دفن کولو نه پس بعضې علماء د قبر سر او خپو طرفته اودریږی د سورة البقره آول او آخر لولی او بیا دُعا کوی. آیا دا جائز دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محد مدرس خان بنوں کرکله........ ۱۰\فروری\۱۹۷۵

**الجواب:** د قبر سر او خپو طرفته اودریدل اود سورة البقره ابتدائی او آخری ایتونه لوستل جائز اومشروع دی ﴿۲﴾

کما رواه البیهقی مرفوعا ولیقرء عندراسه فاتحة البقرة

---

(بقیه حاشیه) اذامات احدکم فلا تحبسوه واسرعوا به الی قبره ولیقرأ عند رأسه فاتحة البقرة وعند رجلیه بخاتمة البقرة رواه البیهقی فی شعب الایمان.

(مشکواة المصابیح ۱: ۱۴۹ باب دفن المیت الفصل الثالث)

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱ :۶۲۸ باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ قال الامام جلال الدین السیوطی: واخرج الطبرانی والبیهقی فی الشعب عن ابن عمر رضی الله عنهما قال سمعت رسول الله ﷺ یقول اذا مات احدکم فلا تحبسوه واسرعوا به الی قبره ولیقرأعند رأسه فاتحة الکتاب ولفظ البیهقی فاتحة البقرة وعند رجلیه بخاتمة سورة البقرة فی قبره. واخرج الطبرانی عن عبد الرحمن بن العلاء بن الجلاج قال قال لی ابی یابنی اذا او ضعتنی فی لحدی فقل بسم الله وعلی ملة رسول الله ثم سن علی التراب سنا ثم اقرأ عند رأسی بفاتحة البقرة و خاتمتها فانی سمعت رسول ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



وعند رجلیه بخاتمة البقرة وقال البیهقی والصحیح انه موقوف علی عبد الله بن عمر ﴿۱﴾، قلت لکنه مما لا یدرک بالرائ فافهم، فی ردالمحتار ۱:۸۴۳ فقد ثبت انه علیه السلام قرء اول سورة البقرة عند رأس المیت و آخرها عند رجلیه ﴿۲﴾. وهو الموفق

## د دفن نه پس د میراث مسئله بیانول نه مطلوب دی او نه ممنوع

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې بار کښې څه فرمائې چه په قبر بعد الدفن د میراث مسئله بیانول ضروری دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سمیع الحق پشاور..... ۱۹۷۲\۱۱\۲۲

**الجواب:** د قبرسره ددفن نه پس نه د میراث مسئله بیانول ضروری دی اونه څه

---

(بقیه حاشیه) الله ﷺ یقول ذلک. (شرح الصدور بشرح حال الموتی والقبور ۴۳ باب مایقال عند الدفن والتلقین)

قال ابن القیم الجوزیة: قال عباس الدوری: سألت احمد بن حنبل قلت تحفظ فی القراءة علی القبر شیأ؟ فقال : لا ، وسألت یحی بن معین فحدثنی بهذا الحدیث، قال الخلال: کنت مع احمد بن حنبل ومحمد بن قدامة الجوهری فی جنازة فلما دفن المیت جلس رجل ضریر یقرأ عند القبر فقال له احمد: یا هذا ان القراءة عند القبر بدعة، فلما خرجنا من المقابر قال محمد بن قدامة لاحمد بن حنبل یا أبا عبد الله ما تقول فی مبشر الحلبی؟ قال: ثقة، قال: کتبت عنه شیأ؟ قال: نعم، فاخبرنی مبشر عن عبد الرحمن بن العلاء بن اللجلاج، عن ابیه انه اوصی اذا دفن یقرأ عند رأسه بفاتحة البقرة وخاتمتها، وقال سمعت ابن عمر یوصی بذلک، فقال له احمد: فارجع وقل للرجل یقرأ.

(کتاب الروح لابن القیم ۱۸ هل تعرف الاموات زیارة الاحیاء)

﴿۱﴾ (مشکواة المصابیح ۱ : ۱۴۹ باب دفن المیت الفصل الثالث)

﴿۲﴾ (ردالمحتار ۱ :۶۶۵ مطلب فی زیارة القبور باب صلاة الجنائز)

بل بيان كول ضروري دي، البته قران لوستل او د تثبيت دپاره ورته دعا كول مسنون دي. (كما فى ردالمحتار ۱: ۸۴۳ المطلوب هناک القراءة والدعاء للميت با لتثبيت ﴿۱﴾ او د ميراث مسئله نه مطلوب ده او نه ممنوع ده. وهوالموفق

**د غسل نه پس كه په مړي يوه شپه تيره شي نو د غسل اعاده نشته.**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه مړى ته كه د شپې په وخت كښې غسل وركړيشى او بيا د كفن دفن انتظام او نه شى بلكه د سحر پورې مړې داسې پا تې شى نو آيا سحر ورته بيا غسل وركول ضرور دي؟ بينوا توجروا

المستفتى: عبدالحميد چمكنى پشاور

**الجواب:** د غسل اعاده نشته كه هر څومره وخت پرې تير شى او كه ګندګى اوځى نو صرف هغه ځائې به وينځلې كيږي ﴿۲﴾ هٰكذا فى جميع معتـــبرات الفقه، هوالموفق

**د مړى سره بطور تبرک د حديثو او وظيفو كتابونه دفن كول**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه يو سړى د خپل مرګ نه مخكښې وصيت كړې وو چه ځما د وظيفو كتاب او د قرآن نسخه چرته پرهيزګار سړى ته وركړئ، يا ئې ځما سره دفن كړئ، چا ته د وركولو په ځائې هغه كتابونه د مړى سره بطور تبرک دفن كړې شول. ددې واقعې نه پس زمونږ په علاقه باند د عذاب اثار نازليدل شروع شول فتنې او فسادونه ورځ

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۱: ۶۶۵ مطلب فى زيارة القبور باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ قال الحصكفى: ولا يعاد غسله ولا وضوءه بالخارج منه لان غسله ما وجب لرفع الحدث لبقائه بالموت بل لتنجسه بالموت كسائر الحيوانات الدموية الا ان المسلم يطهر بالغسل كرامة له وقد حصل. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۱: ۶۳۳ باب صلاة الجنائز)



په ورځ زيا تيږى باران هم بند شوې دې، آيا دې باره كښې څه روايت شته چه دا كار جائز دې يا نا جائز؟ بينوا توجروا

المستفتى: مولانا نذيراحمد مسجد سنګريړى هزاره...... ۱۹۷۰ء۱۲۱۹۱

**الجواب:** دمړى سره په لحد كښې دفن كول ناجائزدى او په مستقل ځائې كښې (چه د قبر په خوا كښې جوړ شوې وى او بيا بند شوې وي) دفن كول جائز دي، يدل عليه ما فى ردالمحتار وقد منا عن الفتح انه تكره كتابة القرآن واسماء الله تعالىٰ على الدراهم والمحاريب والجدران وما يفرش وماذلک الا لاحترامه وخشية وطئه ونحوه مما فيه اهانة فالمنع هنا (عند الكتابة على الكفن) بالاولىٰ ما لم يثبت عن المجتهد او ينقل فيه حديث (۱: ۸۴۷)﴿۱﴾ وفى الهندية (۵: ۳۵۸) المصحف اذا صار خلقا لا يقرء منه ويخاف ان يضيع يجعل فى خرقة طاهرة ويدفن و دفنه اولىٰ من الخ﴿۲﴾،

ددې روايتونو نه ددفن كولو جواز معلوميږى چه د نجاست نه لرې وى او ددې متعلق صريح جزئيه ملاؤ نه شوه.

**خنثىٰ مشكل ته د غسل وركولو مسئله**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائيلې دى چه خنثى مشكل ته به غسل څوک وركوي؟ بينوا توجروا

المستفتى: مدرسه رياض القران دته خيل شمالى وزيرستان..... ۸۸ء۱۱\۲۳

**الجواب:** خنثىٰ مشكل چه مړشى نو هغه ته به باقاعده تيمم وركولې شي، او يا

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۶۹ مطلب فيما يكتب على كفن الميت قبيل باب الشهيد)

﴿۲﴾ (فتاوىٰ عالمگيرية ۵: ۳۲۳ الباب الخامس فى اداب المسجد والقبلة والمصحف) شاه عبدالعزيزمحدث دهلوى رحمه الله فرمائى شجره نسب د مړى سره په كفن كښې ياد كفن د پاسه كيښودلولره فقهاء منع كوى په دې سره د بزرګانو د نومونو په باره كښې بې ادبى كيږي، البته دمړى سرطرفته دې په قبر كښې يووركوټې تاخچه جوړه كړې اوپه هغې كښې دې دشجره نسب كاغذ كيږدي (ماخوذ ازرساله فيض عام) (فتاوىٰ عزيزى ۲۰۴ باب التصوف)

﴿۳﴾ وفى الهندية: والخنثىٰ المشكل المراهق لا يغسل رجلا ولا امرأة ولم يغسلها رجل ولا امرأة ويتيمم وراء ثوب كذا فى الزاهدى. (فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۱۶۰ الفصل الثانى فى الغسل)

به ورته په حوض یا دریاب کښې غوپه ورکولې شي. (فلیراجع الی الهندیة)﴿۱﴾ وهو الموفق

## په تعزیت کښې دعا، د جنازې نه پس دعا او په حیله اسقاط کښې د قران د دور حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی!

(۱) زمونږ علاقه کښې د تعزیت طریقه دا ده چه د دفن نه پس خلق راځی چه دعا اوکړئ. ټول یو ځائې دعا کوی دغه شان دا سلسله جاری وي، بیا دعا هم مقرره نه وي، څوک سورت فاتحه وائی څوک د جنازې دعا وغیره. صحیح طریقه څه ده.؟ (۲) د جنازې نه پس په صفونو کښې ناسته باندې یا چه صفونه مات کړې او اجتماعی دعا کوی بعضې خلق دې دعا ته سنت وائی چه حضور ﷺ د حضرت جعفر رضی الله عنه د مرګ په خبر باندې په مدینه منوره کښې جنازه اوکړه او دعائې اوکړه، بحواله فتح القدیر، نصب الرایه کبیري، او بعضې علماء دا دعا منع کوی اوس اوس په ۲۳ جنورې د حضرت مولا نصیر الدین صاحب شیخ الدیث غور غشتوی. په جنازه کښې دا دعا نه ده شوې، هلته کښې غالباً حضرت مولانا عبد الحق صاحب هم موجود وو، دا خبر بنده په رساله تعلیم القران میاشت جنوری کښې لوستلې دې، (۳) ایا حضرت عمر رضی الله عنه د حبیبه بنت عرید زوجه قلاب په جنازه کښې د حیله اسقاط په دروان کښې دورِ د قرآن کړې؟ آیا دا روایت واقعې ابو اللیث سمرقندی ذکر کړې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاضی نور عالم رانیکا راولپنډی.....۱۹۶۹ء۲۳\۱۲\۱

---

﴿۱﴾ قال العلامة شرنبلالی: وکذا الخنثیٰ المشکل یتیمم فی ظاهر الروایة وقیل یجعل فی کوارة فیغسل. (امداد الفتاح شرح نور الایضاح ۶۱۱ مطلب فی تغسیل من لا یتمکن من غسله)

**ملاحظه:** که خنثی مشکل ورکوټې ماشوم وو نو هغه ته به غسل ورکولې کیږی که سړې ورته غسل ورکوی یا زنانه. اوکه دا خنثی مشکل غټ یعنی بالغ وو یا د شهوت حد ته رسیدلې وو نو هغه ته به تیمم ورکولې شی غسل نه.

قال العلامة الشیخ الشبلی: ولو کان المیت خنثی مشکلا فانه ینظر ان کان صغیراً غسل علی کل حال سواء کان الغاسل رجلاً او امرأة وان کان بلغ حد الشهوة لا یغسل للتعذر بل یتیمم ثم ان کان المتیمم ذارحم منه یتممه بغیر خرقة وان کان غیر محرم فبخرقة ویعرض عن ذراعیه. (هامش تبیین الحقائق شرح کنز الدقائق ۱:۲۳۵ باب الجنائز) ......(ازمرتب)



**الجواب:** (۱) مړی د پاره مغفرت غوښتل هم تعزیت دې:

**یدل علیه ما فی الهندیة ۱:۱۶۷ ویستحب ان یقال لصاحب التعزیة غفر الله لمیتک الخ﴿۱﴾ وفی ردالمحتار ۱:۸۴۱ قوله وبتعزیة اهله ای تصبیرهم والدعاء لهم به ﴿۲﴾.**

(۲) خواصو د پاره نه کول بهتر دی او عوام دې د کسر الصفوف نه پس دعا کولو نه نهٔ منع کوی. ﴿۳﴾ (۳) مونږ سره دا کتاب نشته. لهٰذا د تحقیق کولو نه مونږ معذوره یو. وهو الموفق

## په قبر باندې سیمټی ګټې کینودل او خاورې اچول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ د ملک زمکه ډیر سخته ده نو مونږ نیغ قبر جوړکړو د هغې دواړو طرفونو ته یو نیم ګز اوږدې پنځه شپږ ګټې ږدو چه هغې ته (سنګ لحد) (یعنی د لحد ګټې) وائي، اوس دا مسئله پیدا شوه چه اوږدې اوږدې سنګ لحد نه ملاویږی نو عوامو مشوره اوکړه چه د سیمټو او اوسپنې نه به سنګ لحد جوړوې کړو اوږدو به ئې پکښې، په قبرونو باندې سیمنټ لګول او پخول خو منع دی آیا د سنګ لحد د پاره د سیمټو او اوسپنې نه جوړشوی کانړی او تختې جوړول جائز دی.؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی سلطان ټانک

**الجواب:** په دې زیر تجویز سنګ لحد کښې اورنه استعمالیږی لهذا د دې استعمال جائز دې خصوصاً چه کلَه قدرتی سنګ لحد نه ملاویږی.

**ونظیره التابوت من حدید ووجه عدم الکراهة الحاجة ولان هذا التابوت لا یعمل الا بالنار بخلاف هذه الحجارة**

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۶۷ ومما یتصل بذلک مسائل التعزیة)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۱:۶۶۳ مطلب فی الثواب علی المصیبة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم: وعن الفضلی لا بأس به.

(البحر الرائق ۲:۱۸۳ فصل السلطان احق بصلاته کتاب الجنائز)

المصنوعة (هذا ما اخذه من کلام ردالمحتار ۱: ۸۳۶ فلیراجع) ﴿۱﴾. وهوالموفق

## بعد الدفن د تلقین میت حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مړې ته بعد الدفن تلقین څنګه دې؟ زمونږ ځائې کښې دا طریقه رائج ده چه کله دفن کولې شی نو یو کس قبر ته مخ کړی او وائی اې فلانکیه که هیرشوې وی درنه نو یا د کړه که منکر نکیر درنه تپوس اوکړی نو ورته وایه چه څه مسلمان مړ شوې یم. زه د حضور ﷺ امتی یم ویریږه مه، ددې تلقین شرعی حیثیت څه دې؟
بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمود شاه کرک کوهاټ. ۲۵صفر ۱۴۰۲

**الجواب:** تلقین بعد الدفن نه مطلوب دی او نه ممنوع، نه این کار میکنم ونه انکار میکنم ﴿۱﴾

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۶۰ مطلب فی دفن المیت باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ ☆...... قال الشامی: (قوله ولا یلقن بعد تلحیده وان فعل لا ینهیٰ عنه) ذکر فی المعراج انه ظاهر الروایة ثم قال وفی الخبازیة والکافی عن الشیخ الزاهد الصفار ان هذا علی قول المعتزلة لان الاحیاء بعد الموت عندهم مستحیل اما عند اهل السنة فالحدیث ای لقنوا موتاکم لا اله الا الله محمول علی حقیقته لان الله تعالیٰ یحییه علی ماجاءت به الآثار وقد روی عنه علیه السلام انه امر بالتلقین بعد الدفن الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۲۹ مطلب فی التلقین بعد الموت)

☆......قال العلامة ابن الهمام: واما التلقین بعد الموت وهو فی القبر فقیل یفعل لحقیقة ما روینا ونسب الی اهل السنة والجماعة وخلافه الی المعتزلة وقیل لایؤمر به ولا ینهیٰ عنه.

(فتح القدیر ۲: ۶۸ باب الجنائز)

☆......قال العلامة ابراهیم الحلبی: واما التلقین بعد الدفن فقیل یفعل لحقیقة ما رویناه وقیل لا یؤمر به ولا ینهیٰ عنه...... وانما لا ینهی عنه التلقین بعد الدفن لانه لا ضرر فیه بل فیه نفع المیت یستانس بالذکر علی ما ورد فی الآثار ففی...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



(قاله فی شرح التنویر ولا یلقن بعد تلحیده وان فعل لا ینهی عنه ﴿۱﴾ (هامش رد المحتار ۱: ۷۹۷)، وهوالموفق

## د مړی بل وطن ته منتقل کولو او مسلمان لره
## د اهل کتابو په مقبره کښې دفن کولو مسئله

**سوال:** مایقول العلماء الکبار فی المسائل الاتیة: (۱) هل یجوز نقل المیت من بلد الیٰ بلد وحالة المیت تتغیر بسبب تغیر فی الجو ومضی المدة علیه وما هی طریقة السلف الصالح فی هذا؟ (۲) هل یجوز دفن المیت المسلم فی مقبرة تکون واقعة علیحدة ولکن فی سور واحد مع مقابر اهل الکتاب وهل فیه هناک حدیث النبی ﷺ یمنع هذا؟

المستفتی: دارالاصلاح والدعوة بنوری منزل یوکے...۲۴ ارمضان ۱۴۰۵ھ

**جواب:** (۱) ما فی الهندیة ۱: ۱۶۷ ویستحب فی القتیل والمیت دفنه فی المکان الذی مات فی مقابر اولئک القوم (خلاصه) ﴿۲﴾ وکذا لو مات فی غیر بلده

---

(بقیه حاشیه) صحیح مسلم عن عمرو بن العاص قال اذا دفنتمونی اقیموا عند قبری قدر ما ینحر جزور ویقسم لحمها حتی استأنس بکم وانظر ما اذا اراجع رسل ربی.

(غنیة المستملی المعروف بالکبیری ۵۲۹ فصل فی الجنائز)

☆......وقال الشیخ محمد فرید دامت برکاتهم: (قوله تلقین المریض عند الموت والدعاء له) اشار الیٰ ان المراد من المیت هو قریب الموت لا المیت الحقیقی فانه لا یلقن وهو ظاهر الروایة. (منهاج السنن ۴: ۱۸۹ باب ماجاء فی تلقین المریض عند الموت)

☆...... وفی اعلاء السنن: ولکن الآن صار شعاراً لروافض وترکه اهل السنة ففیه خوف التهمة فلا یلقن. (اعلاء السنن ۸: ۲۴۷ ابواب الجنائز باب ما یلقن المحتضر)

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۲۸ مطلب فی التلقین بعد الموت)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۶۷ الفصل السادس فی القبر والدفن والنقل من مکان الی آخر

یستحب ترکه (قاضیخان)﴿۱﴾ وفی شرح التنویر ولابأس بنقله قبل دفنه ﴿۲﴾. قلت والاصل فیه ما رواه الترمذی من نقل عبد الرحمن بن ابی بکر من الحبشی الی مکة﴿۳﴾ وما روی ان یعقوب ویوسف علیهما السلام نقلا بعد الدفن فقال ابن الهمام فی الفتح القدیر هو شرع من قبلنا ﴿۴﴾ ولا یبعد ان یقال ان اجساد الانبیاء علیهم السلام لا تاکله الارض فلا یقاس علیهم غیر الانبیاء. (۲) انی لم اجده ما حضر عندی من الکتب، نعم کلام الفقهاء کالحلبی یدل علی التعامل بکون مقابر المسلمین منفردة من مقابر المشرکین (فلیراجع الی الشرح الکبیر ۵۵۹) ﴿۵﴾. وهو الموفق

## د دفن نه مخکښې لاش بل ځائې ته وړل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د زید انتقال په لاهور کښې اوشو اوس دده لاش د دفن کولو د پاره پیښور ته وړل څنګه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګل محمد خان کوټ ادو مظفر ګړه.......... ۲۳/۴/۱۹۸۵

**الجواب:** د دفن کولو نه مخکښې مړې خپل وطن ته وړل قابلِ اعتراض نه دی. علامه شامی یو روایت دغه شان هم ذکر کړې دې﴿۶﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾(فتاویٰ خانیة علی هامش الهندیة ۱:۱۹۵ بیان ان النقل من بلد الی بلد مکروه)

﴿۲﴾(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۱:۶۶۳ باب صلاة الجنائز)

﴿۳﴾(سنن ترمذی ۱:۱۲۵ باب ماجاء فی الزیارة القبور للنساء)

﴿۴﴾(فتح القدیر ۲:۱۰۱ فصل فی الدفن باب الجنائز)

﴿۵﴾ قال العلامة الحلبی: واما الدفن فقیل یدفنون فی مقابر المسلمین وقیل فی مقابر المشرکین وقیل تتخذلهم مقابر علی حدة وتسوی قبورهم ولا تسنهم وهو قول ابی جعفر الهندوانی.(غنیة المستملی المعروف بالشرح الکبیر ۵۵۸ فصل فی الجنائز)

﴿۶﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ولابأس بنقله قبل دفنه) ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د پیداشوی مړ بچی نوم کیښودل جائز دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مړ بچې پیدا شو ددې نوزائیده بچی نوم کیښودل جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام عزیز حاجی شاه موړ اټک.....۱۳/ذی الحجه ۱۳۹۴ھ

**الجواب:** د نوزائیده مړی نوم کیښودل جائز دی. (کما فی الدرالمختار والایستهل غسل وسمی عندالثانی وهوالاصح فیفتی به﴿۱﴾ وهو الموفق

## مړی ته د غسل ورکولو حقدار او په اجرت باندې د غسل ورکولو مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په اجرت باندې مړی ته غسل ورکول څنګه دې؟ او د غسل ورکولو ډیر حقدار څوک دې؟

بینوا توجروا

المستفتی: حافظ نور محمد نوشهره..............۱۷/صفر ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** په غسل میت باندې اجرت اخستل جائز دي. اګرکه نورخلق موجود وي، صرح به فی الهندیة ۱:۱۶۹ ﴿۲﴾ او د غسل حقدار اقرب دی. (کذا فی الهندیه والکبیري)

---

(بقیه حاشیه) قیل مطلقا وقیل الی مادون مدة السفر وقیده محمد بقدر میل او میلین لان المقابر البلد ربما بلغت هذه المسافة فیکره فیما زاد قال فی النهر عن عقد الفرائد وهو الظاهر (ردالمحتار ۱:۶۶۳ مطلب فی الثواب علی المصیبة باب صلاة الجنائز)

﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱:۶۵۵ باب الجنائز)

﴿۲﴾ وفی الفتاویٰ الهندیة: والافضل ان یغسل المیت مجانا وان ابتغی الغاسل الاجر فان کان هناک غیره یجوز اخذ الاجر والا لم یجز هکذا فی الظهیریة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۵۹ الفصل الثانی فی الغسل الباب الحادی والعشرون فی الجنائز)

خوئي، نوسي، نیکه، ورور، وراره، تره، وغیره ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د یو لویشت نه اوچت قبر جوړول او په هغې باندې د یوې ونې څانګه ښخول

**سوال:** علمائي دین دي مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د لویشت نه اوچت قبر جوړول او په هغې باندې دونې شنه څانګه ښخول څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتی: شاه محمد فیض العلوم پشین.....۲۲\۱ جولائي ۱۹۸۴

**الجواب:** د یو لویشت نه لږ اوچت قبر جوړول ممنوع نه دی.﴿۲﴾ دغه شان په قبر باندې د کهجورې وغیره څانګه کیښودل هم ممنوع نه دی.﴿۳﴾ وهو الموفق

## د غسل په وخت کښې د مړی خپې قبلې طرفته کول

**سوال:** علمائي دین دي مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د غسل په وخت کښې د مړی خپې ولې قبلې طرفته کولې شي حال دا چه قبلې ته خپې یا شا کول منع دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ابراهیم واه کینټ راولپنډی...۱۲\ستمبر ۱۹۷۹

**الجواب:** مړی ته دغسل ورکولو وخت کښې دهغه خپې قبلې طرفته کول ضروری

﴿۱﴾ وفی الفتاویٰ الهندیة: ویستحب للغاسل ان یکون اقرب الناس الی المیت فان لم یعلم الغسل فاهل الامانة والورع کذا فی الزاهدی.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۵۹ الفصل الثانی فی الغسل الباب الحادی والعشرون فی الجنائز)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: فتحمل الکراهة علی الزیادة الفاحشة وعدمها علی القلیلة المبلغة له مقدار شبراً وما فوقه قلیلا. (ردالمحتار ۱: ۶۶۱ مطلب فی دفن المیت باب صلاة الجنائز)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: وقد ذکر البخاری فی صحیحه ان بریدة بن الخصیب رضی الله عنه اوصی بان یجعل فی قبره جریدتان.
(رد المحتار هامش الدر المختار ۱: ۶۶۸ مطلب فی وضع الجرید باب صلاة الجنائز)



نه دي، په دې کښې توسع ده، (شامی کتاب الجنائز) د معذور مریض د مونځ په طریقې باندې د قیاس کولو تقاضا هم داده، ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د مړی په دریمه ورځ د مړی جامې وغیره وینځل رسم دي

**سوال:** علمائي دین دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه عموماً دا رواج دې چه د مړی د دفن په دریمه ورځ لازماً د مړی د استعمال جامې وینځلې کیږي، دا صفائی جائز ده یا ناجائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحمید ایس وی معلم مډل سکول درازنده ډی آئی خان ۲۶\۱۱\۱۹۷۲

**الجواب:** دا ټول رسومات دی ددې نه بچ کیدل ضروری دي، وهو الموفق

## جُنُب مړی ته دوه ځلې غسل ورکول د هیچا مذهب نه دي

**سوال:** علمائي دین دي مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو کس د ښځې سره جماع اوکړی او بیا مړ شی آیا ده ته به دوه ځلې غسل ورکولې کیږي؟ یا هغه اولنې غسل کافی دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ حجاج ولی نائب خطیب دوسلی کیمپ بنوں ۱۳ جمادی الثانی ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** په جنابت وغیره کښې وفات شوې کسانو ته دوه ځلې غسل ورکول د هیچا مذهب هم نه دي. ﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ویوضع کما تیسر فی الاصح) وقیل یوضع الی القبلة طولا وقیل عرضا کما فی القبر افاده فی البحر.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۳۱ باب صلاة الجنائز مطلب فی القرأة عند المیت)

﴿۲﴾ قال العلامة محمد امین ابن عابدین: (قوله بلا مضمضة واستنشاق) هذا لو کان طاهراً اما لو کان جنبا او حائضا او نفساء فعلا تتمیما للطهارة کما فی الامداد عن شرح المقدسی وفی حاشیة الرملی اطلاق المتون والشروح یشمل من مات جنباً وکذلک اطلاق الفتاویٰ والعلة تقتضیه ولم ارمن صرح به لکن الاطلاق یدخله، وفی حاشیة مسکین انهما لا یفعلان وعزاه الی الزیلعی. (منحة الخالق هامش البحر الرائق ۲: ۱۷۲ کتاب الجنائز)
وقال الشرنبلالیة: وعلی القول بانه بلا مضمضة ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د قبرنه ګیر چاپیره څلور طرفونو ته د ګټو تختي لګول او په مینځ کښې خاورې اچول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د قبرنه ګیر چاپیر څلوروارو طرفونو ته لوئې لوئې تور کاڼي یعنی د سنګِ مرمر تختې چه د تانبې وغیره په ذریعې سره یو ځائې کړې شوې وی او په مینځ کښې قبر کچه دې یعنی دخاورو وي، بعضې خلق دیته جائزوائی آیاداجائزدی؟ بینواتوجروا

المستفتی: معتصم بالله متعلم حقانیه..... ۱۲۲جنوری ۱۹۷۵

**الجواب:** په فتاوی دارالعلوم دیوبند کښې ئې دیته ناجائز وئیلی دي، فلیراجع الیها (۳۷۷\۵، ۳۹۵\۵، ۴۰۲:۵) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## چه قبر تیاروی او جنازه هم شوې وی نو دچا د زیارت د انتظار د پاره مړې کینودل بهتر نه دي

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه قبر تیاروی او جنازه هم شوې وي، بیا ئې هم دچا د راتلو دپاره مړې داسې ایښې دې چه هغه راځی زیارت به کوي، آیا دا جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: محب الله شیرانی مدرسه اشرف العلوم باغبان پوره ګجرانواله ۱۷\۱۱\۱۹۹۰

(بقیه حاشیه) واستنشاق مخصوص بغیر الجنب فلذا قال الا ان یکون جنباً فیتکلف لفعلهما تتمیما لطهارته کما فی شرح العلامة المقدسی قلت و کذا الحائض والنفساء للاشتراک فی افتراض المضمضة والاستنشاق فیما بینهم. (امداد الفتاح ۶۰۹ مطلب فیما یفعل بالمیت)

﴿۱﴾ فتاویٰ دارالعلوم دیوبند ۵: ۳۷۷، ۳۹۵، ۴۰۶ فصل سادس قبر دفن)

وقال المفتی اعظم کفایت الله: دقبرنه ګیر چاپیر ګټو لګولو سره په دې شرط چه قبر پوخ نه وی صرف دا مقصود کیدی شی چه د قبر نخښې ختمې نشی په دې صورت کښې ښکلې او بد رنګې دواړه ګټې یو کار ورکوي، او که دا خیال وی چه خلق ورته اوګوري نو خوشحاله به شی یا ریا او شهرت پکښې مقصود وي، نو په دې صورت کښې ښکلې خوځه کوې بد رنګې ګټې لګول به هم حرام وي. په (۴\۱۴۹) او (۴\۱۴۲) کښې دی. **سوال:** د قبر برنۍ حصه یعنی پوره تعویذ چه کچه پریخو دې شی لکه د چار دیوارۍ دوه فټه اوچت د ځناورو وغیره قبر ته د نقصان رسولو د وجې نه داسې جوړول جائز یا نه؟ **جواب:** دا صورت بهتر نه دي. (کفا یت المفتي ۴\۱۴۲، ۴۹ فصل چهارم قبرو دفن)



**الجواب:** بهتر نه دي، ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د نوازائیده مړ بچی کفن دفن کولو دپاره د خلقو جمع کیدل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کله مړ بچې پیدا شی نو د هغې د دفن کولو دپاره د خلقو د جمع کولو اهتمام او کفن ورکول بدعت مقبوحه دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ثناء الله............ ۷\۱۴\۱۱۹۷۴

**الجواب:** د مړ پیدا شوی بچی دفن کول او په یو کپړه کښې کفن ورکول مشروع دي ﴿۲﴾ لهٰذا ددې د پاره جمع کیدلو کښې هیڅ خبره نشته دې، وهوالموفق

## د جنازې مونځ نه پس سمدستی جنازه اوچتول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په بعضې ځایونو کښې داسې کیږی چه د جنازې د مونځ نه پس فوراً جنازه اوچتوی او بعضې خلق ددې مخالف جوړیږی ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نعمت الله بډه بیر پشاور.... ۱۸\۱ مئ ۱۹۸۸ء

﴿۱﴾ قال العلامة حسن ابن عمار الشرنبلالی: ویستحب الأسراع بها لقوله ﷺ اسرعوا بالجنازة ای مادون الخبب کما فی روایة ابن مسعود: فان تک صالحة فخیر تقدمونها الیه وان تک غیر ذلک فشر تضعونه عن رقابکم وکذا یستحب الاسراع بتجهیزه کله، قال الطحطاوی: ای من حین موته فلو جهز المیت صبیحة یوم الجمعة یکره تاخیر الصلاة علیه لیصلی علیه الجمع العظیم بعد صلاة الجمعة ولو خافوا فوت الجمعة بسبب دفنه یؤخر الدفن. (الطحطاوی علی مراقی الفلاح ۶۰۴ فصل فی حملها ودفنها)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وادرج فی خرقة ودفن ولم یصل علیه. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۵۵ باب صلاة الجنائز)

**الجواب:** داد رائي اختلاف دي چه مذ موم نه دي، البته تشدد مذموم او قبيح دي، صرح به النووى فى شرح المسلم ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د دفن نه مخکښې د مړی د مخ نه کفن لرې کول چه خلق ئې زيارت اوکړي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د جنازې نه مخکښې ټول خلق د مړی مخ کتلو د پاره جمع کيږی او د مړی د مخ نه کفن لرې کړی چه ټول ئې زيارت اوکړی د شريعت په رڼا کښې دا کار جائز دې يا نا جائز دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: غلام عزيز حاجی شاه موړ کيمپلور ............ ۱۸ دسمبر ۱۹۷۴

**الجواب:** د مړی مخ کتلو کښې هيڅ ګناه نشته دې. (کما فى الهندية ۵: ۳۸۷) ولا باس بان يرفع ستر الميت ليرى وجهه وانما يكره ذلك بعد الدفن كذا فى القنية ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال يحىٰ بن شرف النواوى: (قوله اسرعوا بالجنازة) فيه الامر بالاسراع للحكمة التى ذكرها صلى الله عليه وسلم قال اصحابنا وغيرهم يستحب الاسراع بالمشى بها ما لم ينته الى حد يخاف انفجارها او نحوه وانما يستحب بشرط ان لا يخاف من شدته انفجارها او نحوه وحمل الجنازة فرض كفاية قال اصحابنا ولا يجوز حملها على الهيئة المزرية ولا هيئة يخاف معها سقوطها قالوا ولا يحملها الا الرجال وان كانت الميتة امرأة لانهم اقوى لذلك والنساء ضعيفات وربما انكشف من الحامل بعض بدنه وهذا الذى ذكرناه من استحباب الاسراع بالمشى بها وانه مراد الحديث هو الصواب الذى عليه جماهير العلماء ونقل القاضى عن بعضهم ان المراد الاسراع بتجهيزها اذا تحقق موتها وهذا قول باطل مردود بقوله ﷺ فشر تضعونه عن رقابكم وجاء عن بعض السلف كراهة الاسراع وهو محمول على الاسراع المفرط الذى يخاف معه انفجارها وخروج شئ منها.

(شرح النووى تحت الصحيح لمسلم ۱: ۳۰۶ فصل فى الاسراع بالجنازة)

﴿۲﴾ (فتاوىٰ عالمگيرية ۵: ۳۵۱ الباب السادس عشر فى زيارة القبور وقرأة القرآن فى المقابر)



## د تکفين نه پس د مړی مخ کتل

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې مړې د تکفين نه پس کتل څنګه دي؟ د ابن ماجه په صفحه ۱۰۷ باندې روايت دې.

**عن انس بن مالك لما قبض ابراهيم بن رسول الله ﷺ قال لهم النبى ﷺ لا تدرجوه فى اكفانه حتى انظر اليه فاتاه فانكب عليه وبكى،**

په حديث مذکور کښې د حتى انظر د قيد نه بعد از تکفين مما نعت نه معلوميږي؟ بينوا توجروا

المستفتی: شفيع الله شيد ونو شهره.... ۳۱۸۱۱۹۸۲

**الجواب:** بعد از تکفين مړی ته کتل جائز دی،

**لهٰذا الحديث ﴿۱﴾ ولما فى الهندية ۵: ۳۸۷ ولا بأس بان يرفع ستر الميت ليرىٰ وجهه وانما يكره ذلك بعد الدفن كذا فى القنية ﴿۲﴾. وهو الموفق**

**ملاحظه:** هر امر مشروع امر مطلوب ګرځول د منکراتو نه دی ﴿۳﴾

## د مړی په اولنئ شپه د قبر نه ګير چاپيره اور بلول

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د مړی په اولنئ شپه د قبرنه ګير چاپيره زمونږ علاقه کښې اور بلولې کيږي، آيا دا جائز دی يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: رحيم الله..... ۱۱۵۱۱۹۷۴

---

﴿۱﴾ (سنن ابن ماجة ۱: ۱۰۷ باب ماجاء فى النظر الى الميت اذا ادرج فى اكفانه)

﴿۲﴾ (فتاوىٰ عالمگيرية ۵: ۳۵۱ الباب السادس عشر فى زيارة القبور وقرأة القرآن فى المقابر)

﴿۳﴾ قال الحصكفى: لان الجهلة يعتقدونها سنة او واجبة وكل مباح يودى اليه فمكروه، قال ابن عابدين الظاهر انها تحريمية لانه يدخل فى الدين ما ليس منه.

(الدر المختار مع رد المحتار ۱: ۵۷۷ مطلب فى سجدة الشكر)

**الجواب:** که دا اور بلول د یو موذی ځناور نه د بچاؤ د پاره وی نو جائز دی او که دین ئې ګڼړی او د اعتقاد ئې وی نو بد عت دې. ﴿۱﴾وهوالموفق

## د کفن نه مخکښې او روستو دواړو حالتونو کښې تعزیت جائز دې.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د تعزیت دعا د کفن دفن نه مخکښې جائز دی یا نه او که نه صرف د دفن نه روستو به تعزیت کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.......۳\۴\۱۹۷۴

**الجواب:** واضحه دې وی چه د مړی والا خوا ته تلل او دعا کول د تعزیت په طور سره هر وخت جائز دی، که د غسل نه مخکښی وی او که روستو وی.

**لحدیث الترمذی وابن ماجة من عزی مصابا فله مثل اجره﴿۲﴾ وفی روایة ما من مؤمن یعزی اخاه بمصیبة الاکساه الله من حلل الکرامة یوم القیٰمة (رواه ابن ماجه)﴿۳﴾ وفی ردالمحتار والتعزیة ان یقول اعظم الله اجرک واحسن عزاءک وغفر لمیتک (۱:۸۴۱) ﴿۴﴾. وفی الهندیة (۱:۱۶۷) ووقتها من حین یموت الی ثلثة ایام (الی ان قالوا) وهی بعدا لدفن اولیٰ منها قبله وهذا اذا لم یرمنهم جزع شدید فان رؤی ذلک قدمت التعزیة﴿۵﴾. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾وفی الهندیة: وایقاد النار علی القبور فمن رسوم الجاهلیة والباطل والغرور کذا فی المضمرات. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۶۷ قبیل الفصل السابع فی الشهید)

﴿۲﴾اخرجه الترمذی باب ماجاء فی اجر من عزی مصابا (۱:۱۲۷) وابن ماجة باب ماجاء فی ثواب من عزی مصابا(۱:۱۱۶)

﴿۳﴾(ابن ماجة ۱:۱۱۶ باب ماجاء فی ثواب من عزی مصابا)

﴿۴﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۶۶۳ مطلب فی الثواب علی المصیبة باب صلاة الجنائز)

﴿۵﴾(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۶۷ ومما یتصل بذلک مسائل التعزیة)



## دبل چا په ملکیت کښې دفن کول جائز نه دي.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې خپل مړې د بل چا په ملکیت کښې په زور سره دفن کوی نو ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورالحق مغلکی نوشهره..............۲۵\۱جون ۱۹۷۵

**الجواب:** دچا په ملکیت کښې بغیرد اجازت نه تصرف کول ظلم دې. لهٰذا دا دفن کونکې به ظالم وی او د زمکې مالک به ددې مړی د ویستلو مجاز وی.

**کما فی الهندیة ۱:۱۶۷ اذا دفن المیت فی ارض غیره بغیر اذن مالکها فالمالک بالخیار ان شاء امر باخراج المیت وان شاء سوی الارض وزرع فیها کذا فی التجنیس ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## په اخترونو کښې د تعزیت دپاره په دویم ځل تلل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په ښارونو کښې دا رواج دې چه د مړی کور ته په اخترونو کښې په دویم ځل د تعزیت دپاره جمع کیږی چه په جانبینو باندې ګرانه وی لیکن اوس دا (تعامل الناس) جوړ شوې که څوک لاړ نشی نو ملامته کوی نو آیا په اخترونو کښې تعزیت د پاره تلل جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتی:مولوی عبدالودود....۱۹۷۴ء\۳۱\۲۴

**الجواب:** دا دعا د تعزیت دپاره وی او دا د مړی د دریمې ورځې نه پس مکروه ده.او دغه شان په دویم ځل تعزیت هم مکروه دی.

**قال فی الدرالمختار وتکره بعدها الا لغائب وتکره التعزیة ثانیا وفی ردالمحتار ۱:۸۴۲ قوله وتکره بعلها لانها تجدد الحزن الخ ﴿۲﴾. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۶۷ الفصل السادس فی القبر والدفن)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱:۶۶۵ باب صلاة الجنائز مطلب فی زیارة القبور)

## د جُنبی مړی حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړی د خپلې ښځې سره صحبت اوکړو لیکن نه ئې تیمم اوکړو او نه ئې غسل اوکړو او په دې حالت کښې مړ شو دده شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد نثار محمد کوثر پړانګ چارسده........ ۵۱۵۱۱۹۲۹

**الجواب:** جنابت نه د اسلام سره منافات لری او نه د تقویٰ سره لهٰذا دې سړی ته به د نورو مړو پشان غسل ورکولې کیږی. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د جمات په نسبت حجره کښې د تعزیت دپاره کیناستل بهتر دی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په کلی کښې د محلې مشترکه حجره د غم ښادې د پاره موجود وی لیکن بعضې وختونو کښې هلته لوبې ټوقې او تماشې وغیره وی نو آیا په داسې حجره کښې د تعزیت دعا منعقد کول پکار دی یا په جمات کښې؟ بینوا توجروا

المستفتی: باچا استاد زیده صوابی.......... ۲۳۱۱۲۱۱۹۹۰

**الجواب:** دا دعا د جمات په نسبت سره یو قومی حجره کښې بهتره ده. د عوامو مکان او زمان هم جامع وی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ویوضأ من یؤمر بالصلاة بلا مضمضة واستنشاق للحرج وقیل یفعلان بخرقة وعلیه العمل الیوم ولو کان جنبا او حائضا او نفساء فعلا اتفاقا تتمیما للطهارة کما فی امداد الفتاح. قال ابن عابدین: (قوله ولو کان جنبا) نقل ابو السعود عن شرح الکنز للشبلی ان ما ذکره الخلخالی ای فی شرح القدوری من ان الجنب یمضمض ویستنشق غریب مخالف لعامة الکتب. (الدر المختار مع هامش ردالمحتار ۱: ۶۳۲ باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ وفی الفتاویٰ الهندیة ولا بأس لاهل المصیبة ان یجلسوا فی البیت او فی مسجد ثلاثة ایام والناس یأتونهم ویعزونهم. (فتاوی عالمگیریة ۱: ۱۶۷ ومما یتصل بذلک مسائل التعزیة)



## په دویم ځل جنازه او د غسل میت نه مخکښې د تعزیتی دعا حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی:

(۱) چه دلته آزاد کشمیر والا خلق دوه جنازې کوی یوه خپل وطن کښې او دویمه چه کوم ځائې مړی اوشی یعنی په دویم ملک کښې ددې څه حکم دې.

(۱) آیا د غسل نه مخکښې یا د جنازې نه مخکښې د تعزیت دعا مکروه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا فخرالدین بر منګهم انګلینډ...... ۱۵۱۸۱۱۹۷۲

**الجواب:** (۱) که اولنۍ جنازه د ولی (ځوئ، پلار، رور وغیره) یا مسلمان بادشاه یا دقاضی په اجازت سره شوې وی نو په وطن کښې به ئې اعاده نه کیږی ګنی نو اعاده به ئې کیږی. (عالمګیری) ﴿۱﴾ (۲) تعزیت جائز دې ﴿۲﴾ او د دعا التزام کول ناجائز دی. ﴿۳﴾ وهو الموفق

## په کفن باندې سیاهۍ یا خاورې سره مبارک کلمات لیکل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د مړی په کفن باندې په سیاهۍ یا خاورې سره مبارک کلمات مثلاً کلمه طیبه، بسم الله او کلمه شهادت وغیره لیکل څنګه دې؟ دفقه حنفی په رڼا کښې وضاحت مطلوب دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ربانی جهنګ هزاره....یکم جولائی ۱۹۷۵ء

---

﴿۱﴾ وفی الفتاویٰ الهندیة: ولو صلی علیه الولی وللمیت اولیاء اخر بمنزلته لیس لهم ان یعیدوا کذا فی الجوهرة النیرة. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۶۴ الفصل الخامس فی الصلاة علی المیت)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ووقتها (ای التعزیة) من حین یموت الی ثلاثة ایام ویکره بعدها. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۶۷ قبیل الفصل السابع فی الشهید)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم: ولان ذکر الله تعالیٰ اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشئ دو شئ لم یکن مشروعاً حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع. (البحر الرائق ۲: ۱۵۹ باب العیدین)

**الجواب:** صرف په ګوته لیکل جائز دي،

**کما فی ردالمختار ۱: ۸۴۷ نقل بعض المحشین عن فوائد الشرجی ان مما یکتب علی جبهة المیت بغیر مداد بالاصبع المسبحة بسم الله الخ ﴿۱﴾**

او په سیاهئ سره لیکل جائز نه دی. په دې کښې بې احترامی او بې عزتی موجود ده البته که په خاورې سره اولیکلې شی او هغه خط وران شی نو په دیکښې هم څه حرج نشته..وهو الموفق

## برزخی ژوند د ښځې دواده او میراث وغیره سره منافی نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوبنده کله د دنیا نه رخصت شی نو د عدت تیریدلو نه روستو ښځې ته اجازت دې چه دویم واده اوکړی لیکن ځما دا عقیده ده المؤمنون لایموتون بل ینقلون من دارالفنــاء الی دارالبقاء او په قران که دی: ولا تقولوا لمن یقتل فی سبیل الله اموات.. الایة، نو که دوې ژوندي دې نو ښځو ته ئې د نکاح اجازت ولې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالمتین چمکنی میان عمرصاحب پشاور. ۱۴/۲/۱۹۸۴

**الجواب:** د دُنیوی مرګ نه پس هر مړی ته برزخی ژوند ورکولې کیږی چه هغه د ښځې د واده او میراث ورلو سره منافی نه دې ﴿۲﴾ وهو الموفق

## غورزیدلې قبر په دویم ځل جوړول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که یوقبر غورزیدلې

---

﴿۱﴾ (ردالمحتارهامش الدرالمختار ۱: ۶۶۹ مطلب فیما یکتب علی کفن المیت)

﴿۲﴾ بخلاف الانبیاء لان حیاتهم البرزخیة حیاة قویة حتی لا یجوز نکاح ازواجه المطهرات باحاد الامة وهذا اثر الحیاة القویة وکونها امهات المؤمنین وجه آخر لحرمة نکاحهن کما فی الاحزاب: ۶ وایضاً قال الله تعالیٰ: ولا ان تنکحوا ازواجه من بعده ابدا (الاحزاب)......(ازمرتب)



دې بیا د هغې په دویم ځل جوړول څنګه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل منان

**الجواب:** جائز دي،

**کما یشیر الیه جواز التطین قال العلامة الشامی فی ردالمحتار ۱: ۸۳۹ ذکر فی تجرید ابی الفضل ان تطین القبور مکروه والمختار انه لا یکره انتهیٰ ﴿۱﴾ قلت حدیث اتعلم بها قبراخی الخ ﴿۲﴾ ایضا یقتضی جوازه کما یقتضی جواز الکتابة لاتحاد المقصد. وهوالموفق**

## مرزایان او شیعه ګان به د مسلمانانو په قبرستان کښې نشی دفن کولې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) یو مرزائی د مسلمانانو په قبرستان کښې دفن کړې شو ،لس ورځې پس مسلمانانو احتجاج اوکړو چه دهغې په وجه مرزائی راویستلې شو اوپه دویم ځائې کښې دفن کړې شو آیا دا عمل صحیح دې؟ (۲) که واقعی مرزائیان مرتد او اقلیت دی نو په صحابه کرامو او خلفائې راشدینو کښې درې نه منل او کنځلو والا خلق مسلمانان دی یا کافران؟ او هغوی د مسلمانانو په قبرستان کښې دفن کول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ملک سجاد احمد سکهر........۲۷ شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** مرزایان او شیعه ګان دضروریاتِ دین نه د انکار په وجه کافران دی.

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار ۱: ۶۶۲ مطلب فی دفن المیت باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ عن المطلب قال لما مات عثمان بن مظعون اخرج بجنازته فدفن فامر النبی ﷺ رجلاً ان یاتیه بحجر فلم یستطع حمله فقام الیها رسول الله ﷺ وحسر عن ذراعیه قال ...... ثم حملها فوضعها عند رأسه وقال اتعلم بها قبر اخی وادفن الیه من مات من اهلی.

(سنن ابی داؤد ۲: ۱۰۱ باب جمع الموتی فی قبر والقبر یعلم)

دوی به د مسلمانانو په قبرستان کښې نشي دفن کولې (ما خوذاز عالمګیری: ۱:۱۵۹ ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د نا معلومه قاتل مقتول ته به غسل ورکولې کیږی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی

(۱) چه یو سړې د خپل کور مخې ته مړکړې شو او قاتل ئې اوتښتیدلو د هغه پیژندګلو او نه شوه، ایا دې مقتول ته به غسل ورکولې کیږی. (۲) یو سړې په خپله بستره باندې مړ او موندلې شو چه اوکتلې شو هغه په تو پک مړ کړې شوې وو، اوس د قاتل پته نه لګی نو ایا دې مقتول ته به غسل ورکولې کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی سید محمود شاه ګیلانی سخا کوټ ملا کنډا ایجنسي ۱۹ رجب ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** ددې دواړو صورتونو کښی به غسل ورکولې کیږی.

**کما فی شرح التنویر ویغسل من وجد قتیلا فی مصر او قریة ای فی موضع تجب فیه الدیة ولم یعلم قاتله الخ (هامش ردالمحتار ۱: ۸۵۱) ﴿۲﴾. وهو الموفق**

## په مړی باندې د آیة الکرسی او نورو آیاتونو نه د منقش څادر اچولو حکم

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په بعضې څادرونو باندې آیة الکرسی وغیره قرانی کلمات لیکلې شوی وی او دجنازې د کټ دپاسه اچولې کیږی آیا دا جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نوربادشاه ختک شکردره کوهاټ.....۲۳ رمضان ۱۴۰۳:

**الجواب:** دکافی تلاش باوجود څه جزئیه ملاؤنه شوه البته د قواعدو په اعتبار

---

**﴿۱﴾وفی الفتاوٰی الهندیة: واختلف المشائخ فی دفنهم قال بعضهم فی مقابر المشرکین وقال بعضهم فی مقابر المسلمین وقال بعضهم یتخذلهم مقبرة علی حدة کذا فی المضمرات. (فتاوٰی عالمګریه ۱: ۱۵۹ الفصل الثانی فی غسل المیت)**

**﴿۲﴾(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۷۱ باب الشهید)**



سره دا استعمال جائز دې. ځکه چه دیکښې څه توهین نشته. ﴿۱﴾

**بخلاف ما اذا کتب القرآن علی الکفن او البساط فانهم صرحوا بعدم الجواز کما فی آخر الجنائز ردالمحتار وقبیل میاه ردالمحتار ﴿۲﴾. وهو الموفق**

## مړې لس لس قدمونه وړل او درې ځلې کیښودل او اوچتول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې خلق مړې د کورنه اوچت کړی او په لس لس قدمونو باندې ئې ږدی او بیا ئې اوچتوي، ددې طریقې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی غلام نبی کوهاټ.....۱۲۱شعبان ۱۴۰۳ھ

---

﴿۱﴾ زمونږ په دې علاقو کښې عام طور سره د مړو دپاره مخصوص کټ استعمالیږی چه د هغې د پاسه د اوسپنې یا لرګی پنجره وی چه د هغې په وجې سره دا څادر د مړی د بدن نه اوچت وی که د مړی نه څه نا پاکه نرم رطوبت وغیره اوځی نو ددې مخصوص کټ په وجه د څادر د ګنده کیدلو خطره نه وي. دغه شان عوام د تبرک په طور سره او په حفاظت سره د مړی د پاسه اچوی د توهین په طور نه. بیا هم که د توهین ګمان چرته غالب وی یا خالص د مړی په بدن باندې بغیر د څه فاصلې نه کیښودلې شی او د ګنده کیدلو خطره ئې وی نو بیا به ددې نجاست او اهانت د ګمان په وجه اچول جائز نه وی.

**قال العلامة ابن عابدین: وقد افتی ابن الصلاح بانه لا یجوز ان یکتب علی الکفن یٰسٓ والکهف ونحوهما خوفا من صدید المیت...... فالاسماء المعظمة باقیة علی حالها فلا یجوز تعریضها للنجاسة...... وما ذاک الا لاحترامه وخشیة وطئه ونحوه مما فیه اهانة.**

**(ردالمحتار هامش الدر المختار ۱: ۶۶۹ قبیل باب الشهید) ......(ازمرتب)**

**﴿۲﴾ قال الحصکفی: بساط او غیره کتب علیه الملک لله یکره بسطه واستعماله لا تعلیقه للزینة...... قلت وظاهره انتفاء الکراهة بمجرد تعظیمه وحفظه علق او لا زین به اولا.**

**(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۱۳۱ قبیل باب المیاه)**

**قال ابن عابدین: وقد افتی ابن الصلاح بانه لا یجوز ان یکتب علی الکفن یٰسٓ والکهف ونحوهما.**

**(ردالمحتار هامش الدر المختار ۱: ۶۶۸ مطلب فیما یکتب علی کفن المیت قبیل باب الشهید)**

**الجواب:** مړي د څلورو طرفونو نه لس لس قدمونه وړل مستحب دی ﴿۱﴾ لیکن دا هیئت مذکوره (المسطورة فی الاستفتاء) ثابت نه دي، وهو الموفق

## د څلوېښتمې د رسم حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د څلوېښتمې څه حکم دې؟ آیا دا رسم جائز دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: احمد خان ګدوال راولپنډی......۱۹/۱۲/۱۹۸۳

**الجواب:** د څلوېښتمې وغیره تخصیص احداث فی الدین او ممنوع دي، اګر چه صرف خیرات بهترین عبادت دې. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## مړی پسې د ختم کولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په دریمه ورځ دمړی د

---

﴿۱﴾ قال العلامه الحصكفی: واذا حمل الجنازة وضع ندبا مقدمها على يمينه عشر خطوات لحديث من حمل جنازة اربعين خطوة كفرت عنه اربعين كبيرة ثم وضع مؤخرها على يمينه كذلك ثم مقدمها على يساره ثم مؤخرها.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۱: ۶۵۷ باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجيم: ولان ذكر الله تعالىٰ اذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت او بشئ دون شی لم يكن مشروعا حيث لم ير دالشرع به لانه خلاف المشروع.

(البحر الرائق ۲: ۱۵۹ باب العيدين)

وقال ابن البزاز: ويكره اتخاذ الطعام فی اليوم الاول والثالث وبعد الاسبوع والاعياد ونقل الطعام الى القبر فی المواسم الخ.

(فتاویٰ بزازية على هامش الهندية ۴: ۸۱ قبيل حكم المسجد)



ایصال ثواب دپاره د قران شریف ختم کول او لوستل ددې شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجرو

المستفتی: حاجی احمد تونسه ډیره غازی خان

**الجواب:** ایصال ثواب حق دې خو دا رسم نا حق دې. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د عالم د پاره مړو ته غسل ورکول بطور پیشه مکروه دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د عالم دپاره مړو ته غسل ورکول جائز دی یا نا جائز؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی ګل محمد لکی چشمه کوئټه......۲۰ شوال ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** دعالم دپاره مړو ته غسل ورکول مشروع دي ﴿۲﴾ البته دا بطور پیشه او ذریعه معاش جوړول مکروه دي ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن البزاز: ويكره اتخاذ الطعام فی اليوم الاول والثالث وبعد الاسبوع والاعياد ونقل الطعام الى القبر فی المواسم واتخاذ الدعوة بقراءة القرآن وجمع الصلحاء والمقراء للختم او لقراءة سورة الانعام او الاخلاص فالحاصل ان اتخاذ الطعام عند قراءة القرآن لاجل الاكل يكره. (فتاویٰ البزازية على هامش الهندية ۴: ۸۱ قبيل حكم المسجد)

﴿۲﴾ وفی الهندية: غسل الميت حق واجب على الاحياء بالسنة واجماع الامة كذا فی النهاية ولكن اذا قام به البعض سقط عن الباقين كذا فی الكافی.

(فتاویٰ عالمگیرية ۱: ۱۵۸ الفصل الثانی فی الغسل)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفی: والافضل ان يغسل الميت مجانا فان ابتغى الغاسل الاجر جاز ان كان ثمه غيره والا لا لتعينه عليه.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۱: ۶۳۴ باب صلاة الجنازة)......وقال العلامة ابن عابدين: انه ينبغی جريان هذا القيد فی العبد والاعرابی......

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## د مکې مکرمې نه راوړې شوې څادر مړی باندې خوروول

**سوال:** علمائې کرام دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی د مکې معظمې نه راوړلې شوې څادر په مړی باندې اچولې کیږی لکه چه بعضې علاقو کښې ددې رواج دې آیا دا جائز دې یا نه؟ بینواتو جروا

المستفتی: علی الرحمان مهمندی......یکم اپریل ۱۹۷۵ء

**الجواب:** دا عوامی تبرک دې اسلامی تبرک نه دې. البته دا جذبه ښه جذبه ده.

وهوالموفق

---

**(بقیه حاشیه) وولد الزنا ونازعه فی النهر بانه فی الهدایة علل الکراهة بغلبة الجهل فیهم وبان فی تقدیمهم تنفیر الجماعة.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۴۱۴ قبیل مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)**



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه دریم جلد

# فصل فی زیارة القبور وایصال الثواب وغیرها



..............

بسم الله الرحمن الرحيم

عن النبي ﷺ: كنت نهيتكم عن زيارة القبور فزوروها فانها ترق القلب وتدمع العين وتذكر بالآخرة فزوروها ولا تقولوا هجرًا

....رواه البيهقي....

..........

# فصل في زيارة القبور وايصال الثواب وغيرها

## د روضه مطهره د زيارت او د زيارت القبور آداب او مستحبات

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائی چه د اوليائې كرامو او نورو صالحينو مزارونو ته حاضر يدلو وخت كښې د كومو آدابو خيال ساتل پكار وی. دغه شان مزار باندې حاضری كولو وخت كښې ايصال ثواب دپاره مخ په قبله اودريدل بهتر دی يا مخ قبر ته كول او اودريدل؟ خصوصاً سيد نا محمد ﷺ په روضه اقدس باندې حاضری او سلام دعا لوستلو وخت كښې قبر شريف ته مخ كول ناسته يا ولاړه كومه طريقه اختيارول پكار دی؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالعزيز چمكنی مسجد كلاں مياں عمرصاحب ١٤١٣١١٩٢٩

**الجواب:** (١) زيارت القبور د جمعې په ورځ د طلوع شمس نه مخكښې د طهارت په حالت كښې مستحب دې، اودا هم مستحب دی چه اول سلام او بيا ايصال ثواب اوكړی، دغه شان دا هم مستحب دی چه د خپو طرف نه مړی ته مخامخ دقيام په حالت كښې زيارت اوكړې، او كيناستل هم جائزدی، اوداهم ضروری ده چه د سجدې، ښكلولو، طواف، لاسونو اوګوتو كينښودلو او په شا شا تللو نه اجتناب اوكړې.

في ردالمحتار ١ :٨٤٣ بعد تفصيل ما "فتحصل ان يوم الجمعة افضل" وفيه ايضا بعد اسطر قال في الفتح والسنة زيارتها قائماً والدعاء عندهما قائما وفي شرح اللباب ثم من اداب الزيارة ما قالوا من انه يأتي الزائر من قبل رجلي المتوفي لا من قبل رأسه لانه اتعب لبصر الميت ومن ادابها ان يسلم بلفظ السلام عليكم ثم يدعو قائما وان جلس يجلس بعيداً او قريبا بحسب مرتبته في حال حياته انتهىٰ باختصار يسير ﴿١﴾ (وفي الطحطاوى ٣٧٦) قال

---

﴿١﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ١: ٦٦٥ مطلب في زيارة القبور باب صلاة الجنائز)

في الاحياء والمستحب في زيارة القبور ان يقف مستدبر القبلة مستقبلا وجه الميت وان يسلم ولا يمسح القبر ولا يقبله ولا يمسه،قال في شرح المشكوٰة بعد كلام وحديث فيه دلالة على ان المستحب في حال السلام على الميت ان يكون لوجهه وان يستمر كذلک في الدعاء ايضا وعليه عمل عامة المسلمين انتهىٰ باختصار يسير ﴿۱﴾ قلت (وما في شرح الكبير ۵۱۱) ويدعو قائما مستقبل القبلة ﴿۲﴾ فهذا معمول بعض المسلمين وكذا يرده ما سيأتي في الفتح.

(۲) د پيغمبر عليه السلام روضه مطهره سره هم مخ په قبر اودريدل بهتر دي.

قال ابن الهمام في الفتح ۳:۹۵ ثم يأتي القبر الشريف فيستقبل جداره ويستدبر القبلة وما عن ابي الليث انه يقف مستقبل القبلة مردود بما روى ابو حنيفة في مسنده عن ابن عمر رضي الله عنه قال من السنة ان تاتي قبر النبي صلى الله عليه وسلم من قبل القبلة وتجعل ظهرک الى القبلة وتستقبل القبر بوجهک ثم تقول السلام عليک ﴿۳﴾ (باختصار يسير). وهو الموفق

## په قبرستان کښې ددعا او سلام طريقه

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چې په قبرستان کښې يا ديو قبر خواته لاړ شي نو د سلام زيارت او دعا شرعي طريقه څه ده؟ او دعا په وخت کښې لاس اوچتول ثابت دي يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: منصور احمد خان شير شاه کالوني کراچي...۲۵جولائی ۱۹۸۹

**الجواب:** قبرستان ته چه لاړشي نو السلام عليكم يا اهل القبور الخ وئيل پکار دي، ﴿۴﴾ او د مړی نه مغرب طرف ته شه چه مړی ته دې مخ شی او قبلې ته دې

---

﴿۱﴾ (الطحطاوي على مراقي الفلاح ۶۲۱ فصل في زيارة القبور)

﴿۲﴾ (غنية المستملى ۵۶۰ فصل في الجنائز الثامن في مسائل متفرقة من الجنائز)

﴿۳﴾ (فتح القدير شرح الهداية۳:۹۵ مسائل منثوره)

﴿۴﴾ قال الشرنبلالي: والسنة زيارتها قائما والدعاء عندها...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه



شا شي،لاس اوچتول هم جائز دی. (قال في شرح شرعة الاسلام قال في الاحياء والمستحب في زيارة القبور ان يقف مستدبر القبلة مستقبلا وجه الميت ۵۸۰(۱) وهو الموفق

## په مقبره کښې ايصال ثواب مسنون دي او تخصيص د سورت او شمار د التزام په وجه بدعت دي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د جنازې د مونځ نه پس امام صاحب خلقو ته اووائی چه اول آخر درود شريف او يوولس ځلې سورت اخلاص اولوئی او د مړی روح ته ئې ثواب اوبخئ او دعا اوکړئ. آيا دا جائز دي؟بينوا توجرو

المستفتي: عبدالحميد کلاچی ډی آئی خان.....۱۶جمادی الثانی ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** که مقبره کښې دا تلاوت اوکړيشی او ټولو مړو ته ئې ايصال ثواب اوکړيشی نو مسنون دی.

لما في الدر المختار وفي الحديث من قرء الاخلاص احد عشر مرة ثم وهب اجرها للاموات اعطى من الاجر بعدد الاموات انتهىٰ ﴿۲﴾ رواه العيني في شرح البخاري

---

(بقيه حاشيه) قائما كما كان يفعل رسول الله صلى الله عليه وسلم في الخروج الى البقيع ويقول السلام عليكم دار قوم مؤمنين وانا ان شاء الله بكم لاحقون اسأل الله لي ولكم العافيه كذا في الفتح. (امداد الفتاح شرح نور الايضاح ۶۴۳ فصل في زيارة القبور)

وعن ابن عباس قال مر النبي صلى الله عليه وسلم بقبور بالمدينة فاقبل عليهم بوجهه فقال السلام عليكم يا اهل القبور يغفر الله لنا ولكم انتم سلفنا ونحن بالاثر رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن غريب. (مشكواة المصابيح ۱:۱۵۴ باب زيارة القبور)

﴿۱﴾ (الطحطاوي على مراقي الفلاح ۶۲۱ فصل في زيارة القبور)

﴿۲﴾ (الدر المختار على هامش ردالمحتار ۱:۶۶۶ باب صلاة الجنائز)

من غیر نکیر ﴿۱﴾ او که مقبره نه وی نو ایصال ثواب اگرچه جائزدي لیکن تخصیص (دسورت اوشمار) بلا دلیل دي، لهذا دالتزام په وجې سره به بدعت او ناجائز وی.

لما فی البحر ۲: ۱۵۹ ولان ذکر الله اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشئ دون شئ لم یکن مشروعاً حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع ﴿۲﴾. وهو الموفق

## مړی پسې د مختلفو خیراتونو حکم

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښې څه فرمائي چه زمونږ په علاقه کښې د مړی کیدلو په راتلونکی جمعرات (زیارت) باندي فقراؤ او مساکینو له دعوت کیږي چه د هغې نوم کچه دعا ده بیا په څلویښتمه او کال باندې خیرات کوی اګر که د هغې د کولو دپاره زمکه او جائیداد ګانړه کول وی یا قرض اخستل وی ګني نو د مړی وارثانو ته خلق کنجوس او مطعون وائی. په دي باره کښې د مړی د وصیت اعتبار نه کوی او نه د کونډو او یتیمانانو خیال ساتلي کیږي، په دي باره کښې شرعی حکم څه دي؟بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحمید امام مسجد سکنه کرني

**الجواب:** د مړی والو د طرفنه تصدق علی المساکین والطلبه هر وخت جائز دی. خوچه کله په مال کښې دغائب کس او یتیم شرکت نه وی یا مال د وصیت وي ﴿۳﴾....

﴿۱﴾ وفی مراقی الفلاح: وعن علی رضی الله عنه ان النبی ﷺ قال من مر علی المقابر فقرء قل هو الله احد احدی عشرة مرة ثم وهب اجرها للاموات اعطیٰ من الاجر بعدد الاموات رواه الدار قطنی (طحطاوی ۲۶۶) وایضاً اخرج ابو محمد السمرقندی فی فضائل قل هو الله احد عن علی مرفوعاً. (شرح الصدور للسیوطی ۱۳۰)

﴿۲﴾ (البحر الرائق ۲: ۱۵۹ باب العیدین)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: بجواز تبرع الوارث باخراجها وعلیه فلا بأس بادارة الولی للزکاة ثم ینبغی بعد تمام ذلک کله ان یتصدق علی ......(بقیه حاشیه په بله صفحه



او میلمستیا او دعوتونه ورکول دري ورځو پوري ناجائزدي. ﴿۱﴾ او د رسم ورواج پابندی هروخت کښې ناجائزدی، (والتفصیل فی رد المحتار ۱ | ۸۴۲﴿۲﴾ والهندیة ۵: ۳۸۰ ﴿۳﴾ او په مسئوله صورت کښې مذکور امور په دریم قسم کښې داخل دی لهذا ددینه اجتناب ضروری دي. وهو الموفق

## د مړی د ایصال ثواب د پاره د جمعې د شپې او د څلویښتمې د خیرات حکم

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښې څه فرمائي چه د مړی دایصال ثواب د پاره د جمعې د شپې خیرات کول او د څلو یښتمې وغیره څه حکم دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: بسم الله شاه پشاور.....۱۲۷محرم ۱۴۰۱ھ

(بقیه حاشیه) الفقراء بشیئ من ذلک المال او بما اوصی به المیت ان کان اوصی. (ردالمحتار ۱: ۵۴۳ مطلب فی بطلان الوصیة بالختمات و التهالیل باب قضاء الفوائت)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ویکره اتخاذ الطعام فی الیوم الاول والثانی والثالث. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۶۴ باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: وفی البزازیة ویکره اتخاذ الطعام فی الیوم الاول والثالث وبعد الاسبوع ونقل الطعام الی القبر فی المواسم واتخاذ الدعوة لقراءة القرآن وجمع الصلحاء والقراء للختم او لقراءة سورة الانعام او الاخلاص والحاصل ان اتخاذ الطعام عند قراءة القرآن لاجل الاکل یکره وفیها من کتاب الاستحسان وان اتخذ طعام للفقراء کان حسنا او اطال فی ذلک فی المعراج وقال وهذه الافعال کلها للسمعة والریاء فیحترز عنها لانهم لا یریدون بها وجه الله تعالیٰ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۶۴ مطلب فی کراهة الضیافة من اهل المیت باب صلاة الجنازة)

﴿۳﴾ وفی فتاویٰ الهندیة: ولا یباح اتخاذ الضیافة ثلاثة ایام فی ایام المصیبة واذا اتخذ لا بأس بالاکل منه وان اتخذ طعاما للفقراء کان حسنا اذا کانت الورثة بالغین فلن کان فی الورثة صغیر لم یتخذوا ذلک من الترکة کذا فی التتارخانیة. (فتاویٰ عالمگیریة ۵: ۳۴۴ الباب الثانی عشر فی الهدایا والضیافات)

**الجواب:** تصدق (خیرات) او ایصال ثواب بذاتِ خود مشروع دي البته د خپل طرفنه د وخت او قسم وغیره تعین کول مکروه دي،

کما یدل علیه ما فی البحر ۲: ۱۵۹ ولان ذکر الله اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشیئ دون شیئ لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به ﴿۱﴾ وفی البزازیة علی هامش الهندیة ۴: ۹۱ ویکره الطعام فی الیوم الاول والثالث وبعد الاسبوع الخ﴿۲﴾.

خلاصه دا چه خیرات په مسکینانو هر وخت جائز او د رسم رواج پابندی هر وخت ممنوع ده. وهو الموفق

## پنځه کسانو د پاره په ختم القران کښې بې ترتیبی کول په ثواب کښې مخّل نه ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که یو نابینا حافظ

﴿۱﴾ (البحر الرائق ۲: ۱۵۹ باب العیدین)

﴿۲﴾ (البزازیة علی هامش الهندیة ۴: ۸۱ قبیل باب فی حکم المسجد)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: وفی البزازیة ویکره اتخاذ الطعام فی الیوم الاول والثالث وبعد الاسبوع ونقل الطعام الی القبر فی المواسم واتخاذ الدعوة لقرأة القرآن وجمع الصلحاء والقراء ة للختم او لقرأة سورة الانعام او الاخلاص والحاصل ان اتخاذ الطعام عند قرأة القرآن لاجل الاکل یکره وفیها من کتاب الاستحسان وان اتخذ طعاما للفقراء کان حسنا واطال فی ذلک فی المعراج وقال وهذه الافعال کلها للسمعة والریاء فیحترز عنها لانهم لا یریدون بها وجه الله تعالیٰ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۶۴ مطلب فی کراهة الضیافة من اهل المیت باب صلاة الجنازة)

﴿۴﴾ وفی فتاویٰ الهندیة: ولا یباح اتخاذ الضیافة ثلاثة ایام فی ایام المصیبة واذا اتخذ لا بأس بالاکل منه وان اتخذ طعاما للفقراء کان حسنا اذا کانت الورثة بالغین فان کان فی الورثة صغیر لم یتخذوا ذلک من الترکة کذا فی التتار خانیة. (فتاویٰ عالمگیریة ۵: ۳۴۴ الباب الثانی عشر فی الهدایا والضیافات)



قرآن پنځه سرو د پاره ختم قرآن شروع کړی د یو کس د پاره ۲۶ سپارې پورې دویم د پاره اولنئ نه تر ۲۷ پورې دریم او څلورم د پاره اول نه ۲۸ پورې پنځم د پاره ۲۹ سپارې پورې او لوستلو بیا د یو د پاره ختم مکمل کړی آیا ددې ترتیب په سقوط سره ثواب کښې څه نقصان راځی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: خلیل..۱۹ جمادی الاولی ۱۳۹۳ھ

**الجواب:** دا بې ترتیبی په ختم کښې خلل نه راولي، وهو الموفق،

## د دفن کولو په وخت کښې کاڼړو باندې تبارک الذی وئیل او قبر ته غوُرزول او د جنازې نه مخکښې جائې نمازونه تقسیمول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلو باره کښې څه فرمائی (۱) د مړی د فن کولو وخت کښې امامان حضرات په کاڼړو یا لوټو خاورو باندې تبارک الذی لولی او قبر کښې ئې غورزوی ددې څه اصل شته یا نه؟ (۲) د جنازې د مونځ نه مخکښې چه په علماؤ کښې کوم جائې نمازونه تقسیمولې شی اګرچه هغه خیرات کښې شامل کړی لیکن بیا هم ددې څه اصل شته یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم....

**الجواب:** (۱) هیڅ اصل نه لری ﴿۱﴾ بعضې علماء د عمل په طور سره بغیر د

﴿۱﴾ د سورت ملک فضائل په احادیثو راغلی دی. بالخصوص دهغې دلوستونکی د پاره د عذابِ قبر د کموالی او ددې سورت شفاعت کونکی کیدل ثابت دی. لیکن دا ثبوت د قاری د پاره دې. دا نه چه څوک یې اولولی په خاوره ئې دم کړی او قبر کښې ئې او غورزوی که د عمل په طور سره او کړیشی او سنت ئې نه ګڼړی او نه ئې لازم ګڼړی نو نفسِ دا عمل به جائز وی. او د سنت او التزام په صورت کښې به بدعت وی.

قال العلامة عماد الدین فی فضائل سورة الملک: (۱) عن عباس الجشمی عن ابی هریرة عن رسول الله ﷺ قال ان سورة فی القرآن ثلاثین آیة شفعت لصاحبها حتی غفرله، تبارک الذی بیده الملک. (۲) عن انس قال قال رسول الله ﷺ سورة فی القرآن خاصمت عن صاحبها حتی ادخلته الجنة تبارک الذی بیده الملک. (۳) عن ابن عباس قال ضرب بعض اصحاب النبی ﷺ خبائه علی قبر وهو لا یحسب ......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

حوالې نه ذکر کړې دی. چه فلانکې آیت اولولئ په جنازه ئې دم کړئ او قبر کښې غورزول د عذاب کموالی باعث دې. ﴿۱﴾ (۲) که د علماؤ او امامانو تعظیم مقصود وی نو د ثواب کار دې او که درسم پابندی ئې مقصود وی نو مال ضائع کول دی. وهوالموفق

## مړي د جُمعې د پاره کور کښې کینودل، مړی پسې خیرات کول، دعا بعد الجنازه، دائره اسقاط وغیره

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه! (۱) مړې د جمعې د پاره کور کښې کینودل (۲) دمرګ نه پس درې ورځو کښې دننه خیرات نه کول، (۳) د مړی د جنازې نه پس دعا نه کول. (۴) د جنازې نه پس دائره نه جوړول (۵) د یو ولسمې خیرات نه کول. (۶) اولیاء الله پخپله بې بسه دي، (۷) په ختم قران باندې خوراک نه خوړل (۸) د سنت مونځ نه پس دعا نه کول؟ بینوا توجروا

المستفتی: واحد ګل، تورې خان نیو ګرین مارکیټ پشاور. ۱۱۱۴۱۱۹۷۲

**الجواب:** (۱) که د جمعې د مونځ نه مخکښې ئې کفن دفن کیدیشی نو تاخیر ئې ګناه ده. ﴿۲﴾ (۲) تصدق علی المساکین په هروخت کښې ائزدې او رسم و رواج یعنی د خپل عزت باقی ساتلو او شرم لرې کولو دپاره هر وخت مکروه

---

(بقیه حاشیه) انه قبر، فاذا قبر انسان یقرأ سورة الملک تبارک حتی ختمها فقال رسول الله ﷺ هی المانعة هی المنجیة تنجیه من عذاب القبر. (۴) عن ابن عباس انه قال لرجل: الا اتحفک بحدیث تفرح به؟ قال: بلیٰ، قال اقرأ تبارک الذی بیده الملک وعلمها اهلک وجمیع ولدک وصبیان بیتک وجیرانک، فانها المنجیة والمجادلة تجادل او تخاصم یوم القیامة عند ربها لقارئها، وتطلب له ان ینجیه من عذاب النار وینجی بها صاحبها من عذاب القبر، قال رسول الله ﷺ لوددت انها فی قلب کل انسان من امتی. (تفسیر ابن کثیر ۴: ۵۰۷ تفسیر سورة املک)

﴿۱﴾ قال العلامة السید احمد الطحطاوی: وفی کتاب النورین من اخذ من تراب القبر بیده وقرأ علیه سورة القدر سبعاً وترکه فی القبر لم یعذب صاحب القبر ذکره السید.
(حاشیة الطحطاوی علی المراقی ۳۳۵ فصل فی حملها ودفنها)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وکره تأخیر صلاته ودفنه لیصلی علیه جمع عظیم بعد صلاة الجمعة. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۵۷ باب صلاة الجنائز)



دي. او میلستیا درې ورځو پورې ناجائز ده. ﴿۱﴾ شامي (۳) د کسرالصفوف نه پس دعا کولو کښې هیڅ حرج نشته البته نه کول بهتر دي. ﴿۲﴾ (خلاصة الجزئیات) (۴) دائره کول جائز دی خو چه د شرطونو خیال ساتلې شوې وی ګنې نو د اسقاط د ذمې د پاره بې سوده دی. (خلاصة الجزئیات) (۵) یو ولسمه شریف بدعت دي. (۶) کرامت بعد الممات حق دي. ﴿۴﴾ لیکن الله (ج) چاته د حاجت پوره کولو منصب نه دې حواله کړې، (۷) اعزازی طورسره جائز دی دغه شان دخیرات اوبنه سلوک په طریقې سره هم

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وفی البزازیة ویکره اتخاذ الطعام فی الیوم الاول والثالث وبعد الاسبوع ونقل الطعام الی القبر فی المواسم واتخاذ الدعوة لقرأة القرآن وجمع الصلحاء والقراء للختم او لقرأة سورة الانعام او الاخلاص والحاصل ان اتخاذ الطعام عند قرأة لاجل الاکل یکره وفیها من کتاب الاستحسان وان اتخذ طعاما للفقراء کان حسنا.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۶۴ مطلب فی کراهة الضیافة من اهل المیت)

﴿۲﴾ قال ابن نجیم: وعن الفضلی لا بأس به.
(البحر الرائق ۲: ۱۸۳ فصل السلطان احق بصلاته کتاب الجنائز)

﴿۳﴾ قال ابن نجیم: ولان ذکر الله تعالیٰ اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشیئ دون شیئ لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع.
(البحر الرائق ص ۲: ۱۵۹ باب العیدین).

﴿۴﴾ اما مذهب اهل الحق انه تبقی الکرامة بعد الموت کما ان النبوة لا تنقطع بالموت وکما ان ایمان المومن لا ینقطع بالموت، قال الشیخ عبد الغنی النابلسی فی حاشیة الحدیقة الندیة علی الطریقة المحمدیه ۱: ۲۹۲ کرامة الولی لا تنقطع بالموت، وفی سنن ابی داؤد ۱: ۳۴۹ باب مایری من النور عند قبر الشهید عن عائشة کنا نتحدث انه لا یزال نور عند قبر النجاشی وهذا لیس الا الکرامة بعد الموت، وقال الآلوسی فی تفسیر النازعات ۲۸: ۱۰۸ ان الله قد یکرم من شاء من اولیائه بعد الموت کما یکرمه قبل الموت بما شاء، وایضا ذکر فی المشکواة فی باب فضائل القرآن تلاوة سورة الملک من قبر وسماع صحابی فافهم. (ازمرتب)

جائز دی البته د اجرت په طور پکښې اختلاف دې ﴿۱﴾ (۸) په هیئت اجتماعی سره دعا کول د پیغمبر علیه السلام معمول نه وو نه د فرضو نه روستو او نه د سنتو نه پس البته د حدیثِ قولی نه د دواړو جواز معلومیږی او د جمهورو احنافو په نزد بهتر دادې چه د سنتو نه پس او کړیشي. د بعضې احنافو (امام بقالي) په نزد بهتر دادی چه فرضو پسې متصل او کړیشی. والامر اوسع. وهو الموفق.

## د اولیاء په قبرونو باندې گنبد او چا ر دیواری جوړول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د اولیاء الله په قبرونو باندې چار دیواری یا گنبد جوړول ثواب دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: گل مست خان سرحد ټکستائل ملز پشاور

**الجواب:** گنبد جوړول د حدیث او فقهې د تصریح مطابق ناجائز دې. ﴿۲، ۳﴾ او چاردیواری د حفاظت د ضرورت په وخت کښې جائز ده. ﴿٤﴾ کښې فضول خرچی او ناجائز ده، وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: قال تاج الشریعة فی شرح الهدایة ان القرآن بالاجرة لا یستحق الثواب لا للمیت ولا للقاری وقال العینی فی شرح الهدایة ویمنع القاری للدنیا والآخذ والمعطی آثمان فالحاصل ان ماشاع فی زماننا من قرأة الاجزاء بالاجرة لا یجوز...... فاذا لم یکن للقاری ثواب لعدم النیة الصحیحة فاین یصل الثواب الی المستاجر. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۳۹ مطلب تحریر مهم فی عدم جواز الاستیجار علی التلاوة کتاب الاجارة)

﴿۲﴾ وعن جابر قال نهیٰ رسول الله صلی الله علیه وسلم ان یجصص القبر وان یبنیٰ علیه وان یقعد علیه رواه مسلم. (مشکوٰة المصابیح ۱:۱۴۸ باب دفن المیت)

﴿۳﴾ وفی فتاویٰ الهندیة: ویکره ان یبنی علی القبر مسجد او غیره کذا فی السراج الوهاج. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۶۶ الفصل السادس فی القبر والدفن)

﴿٤﴾ قال الشرنبلالی: وکره وضع الآجر...... والخشب...... لان...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د مړی سره قبل الدفن تلاوت کول او په قرانی ایتونو باندې منقش څادر په کټ خورول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه! (۱) قبل الدفن د مړی په خوا کښې یعنی کټ سره نزدې دقرآن تلاوت جائزدې یانه؟ (۲) نن صبا د سړو په دجنازې په کټ باندې داسې څادر اچولې شوې وی چه په هغې آیة الکرسی او نور ایتونه لیکلې شوې وی. نود مړی په جنازه باندې دا څادر اچول مستحب دی یا مکروه یا صرف جوازدې؟ دچا نه مې دا هم اوریدلې دی چه په مجموعة الفتاوی کښې ددې اجازت ورکړې شوې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورالهادی مردان.... ۱۲۲ شوال ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** (۱) د قولِ راجح په بنیاد سره مړې بې اودسه دې پلیت نه دې لهذا د هغه په خواکښې د قرآن تلاوت هر حالت کښې جائز دې. ﴿۱﴾ (والتفصیل فی رد المحتار (۱\۷۹۹) (۲) د قواعدو په رڼا کښې جائز دې. ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) الکراهة لکونهما للاحکام والزینة ولذا قال بعض مشایخنا انما یکره الآجر اذا ارید به الزینة اما اذا ارید به دفع اذی السباع او شیٔ آخر لا یکره.

(مراقی الفلاح شرح نور الایضاح ۶۱۰ فصل فی حملها ودفنها)

﴿۱﴾ قال الحصکفی: تکره القرأة عنده حتی یغسل...... لتجنسه بالموت قیل نجاسة خبث وقیل حدث وعلیه فینبغی جوازها کقراءة المحدث، قال ابن عابدین: فانه اذاجاز للمحدث حدثا اصغر القراءة فجوازها عند المیت المحدث بالاولیٰ.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۱:۶۳۰ مطلب فی القراءة عند المیت)

﴿۲﴾ دا څادر د تبرک په طورسره مړی باندې جنگلې وغیره د پاسه اچولې شی چه په هغې کښې د اهانت هیڅ صورت هم په نظر نه راځی.

بخلاف ما اذا کتب القرآن علی الکفن او البساط فانهم صرحوا بعدم الجواز کما فی آخر الجنائز وقبیل باب المیاه قال الحصکفی: قلت وظاهره انتفاء الکراهة بمجرد تعظیمه وحفظه (الدرالمختار ۱:۱۲۰)

او که د نجاست او اهانت څه گمان موجودوی د بې ادبیٔ [باقی حاشیه په راروانه صفحه]

## د غسل نه مخکښې د مړی په خوا کښې تلاوت
## او د هغه په حق کښې دعا کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې خلق دلته وائی چه د غسل نه مخکښې د مړی خواکښې تلاوتِ قران صحیح نه دې او دهغه دپاره دعا هم صحیح نه ده برائې مهربانی بنده د پاره وضاحت اوکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی.مولانا فخر الدین ابن شیخ الحدیث حضرت مولانا نصیر الدین غورغښتوی رحمة الله علیه بر منګهم.انګلینډ... ۱۳۱۱۰۱ء۱۹۹۰

**الجواب:** دفقهائې کرامو دیکښې اختلاف دې چه دمړی په خوا کښې مخکښې د غسل نه دقران پاک لوستل جائز دی یا نه؟ لیکن تحقیق پکښې د جواز دې. (لان سبب الغسل ان الموت حدث﴿۱﴾ او دعا قبل الغسل هیڅ یو فقیه نه ده منع کړې، وهوالموفق

---

[بقیه حاشیه]..او د مړی نه په وتونکی ګند ګئ سره د ګنده کیدلو خطره وی نو بیا ترې نه احتراز لازمی دې.

قال ابن عابدین: وتکره کتابة القرآن...... علی الدراهم والمحاریب...... وقال ما ذاک الا لاحترامه وخشیة وطئه ونحوه مما فیه اهانة. (ردالمحتار ۱:۲۰۷) (ازمرتب)

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: (قول وقیل حدث) یویده ما ذکره فی البحر من کتاب الطهارة ان الاصح کون غسالته مستعملة وان محمداً اطلق نجاستها لانها لا تخلو من النجاسة غالباً قلت لکن ینافیه ما مر من الفروع الا ان یقال بینائها علی قول العامة قال فی فتح القدیر وقدروی فی حدیث ابی هریرة سبحان الله ان المؤمن لا ینجس حیا ولا میتا فان صحت وجب ترجیح انه للحدث، وقال فی الحلیة وقد اخرج الحاکم عن ابن عباس رضی الله عنهما قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا تنجسوا موتاکم فان المسلم لا ینجس حیا ولا میتا وقال صحیح علی شرط البخاری ومسلم فیترجح القول بانه حدث.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۶۳۰ مطلب فی القرأة عند المیت)



## د چهارشنبې یا زیارت په ورځ دفن شوې
## قبر باندې جمعې پورې د پهرې ورکولو رسم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه کښې چه کله څوک مړې د بدهـ یا جمعرات یاد زیارت په ورځ دفن کړیشی نود جمعې د ماښام پورې هغه باندې د دوه کسانو پهره مقرر کړیشی په دې غرض چه ددې مړی نه په قبر تپوس اونکړیشی آیادا واقعی او ثابته خبره ده چه د جمعې په ورځ دمړې نه تپوسونه نه کیږی اوکه بالفرض دا صحیح وی نو د بدهـ یاجمعرات مړې جمعې پورې دفن کولو کښې څه فائده شته یانه؟ بنیو اتوجروا

المستفتی: رحیم الله چنګلئې بونیر سوات.......... ۱۷۱۱۲۱۱۹۸۵

**الجواب:** د عوامو دا عقیده چه د خلقو په موجودګئ کښې سوال جواب نه کیږی غلطه عقیده ده او د ابوداؤد د حدیث نه مخالف ده.

وهو ما نصه کان رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا فرغ من دفن المیت وقف علیه فقال استغفروا لاخیکم واسالوا له بالتثبیت فانه الآن یسئل ﴿۱﴾ انتهیٰ قلت وحدیث وانه لیسمع قرع النعال اتاه ملکان ﴿۲﴾ محمول علی ما ذا رجعوا بعد الدفن فوراً ﴿۳﴾.

دغه شان د عوامو دا عقیده چه د جمعرات پورې دفن کولو کښې تاخیر کول د تخفیف باعث دی په حدیث کښې دا صفت دهغه چا دپاره دې چه جمعرات یا جمعې ته مړشی. ﴿۴﴾وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (سنن ابی داؤد ۲:۱۰۳ باب الاستغفار عند القبر للمیت فی وقت الانصراف)

﴿۲﴾ (صحیح البخاری ۱:۱۷۸ باب المیت یسمع خفق النعال کتاب الجنائز)

﴿۳﴾ قال الملا علی قاری: (قوله اذا وضع فی قبره وتولی) ای ادبروا عرض عنه اصحابه ای عن قبره والعبرة بالاکثر او عن وضعه...... اتاه ملکان ای قبل ان یمضی زمان طویل الخ. (مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ۱:۳۳۹ باب اثبات عذاب القبر)

﴿۴﴾ عن عبد الله بن عمرو قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ما من مسلم یموت یوم الجمعة او لیلة الجمعة الاوقاه الله فتنة القبر رواه احمد والترمذی وقال هذا ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د مړي چاته په خوب کښې د قبر بدلولو حکم کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یو دیندار سړې مړشوې ددفن کولو نه یوه میاشت پس د هغه ځوئې او یوبل سړې په خوب کښې اولیده چه هغه وائی چه څه کوم ځائې کښې دفن کړې شوې یم دلته څه خوشحاله نه یم دلته نه مې اوباسئ بل ځائې کښې مې دفن کړئ. آیا دا حکم منل جائز دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام حبیب نواب کلی مهمند ایجنسی.....۲۵رمضان ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** د شرالقرون خو بونه د خیرالقرون په خوبونو باندې قیاس کول امر منکر دې. ﴿۱﴾ ددې خوبونو په وجه دا مړې ویستل ممنوع دې. فقهائې کرامو چه د کومو وجوهاتو په بناء باندې ویستل جائز وئیلي دی نو په دې صورت کښې دهغې وجوهاتو نه یوه وجه هم موجود نه ده. بلکه په دې کښې د مړی توهین موجود دې. ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) حدیث غریب ولیس اسناده بمتصل، وفی المنهاج لکن له شواهد اخرجه ابو یعلی والبیهقی وغیره.

(منهاج السنن شرح سنن ترملی ۴: ۲۴۰ باب ماجاء فی من یموت یوم الجمعة)

﴿۱﴾ وفی هدایة القاری: ما یسمعه الراء ی لا یکون حجة لاحتمال الاختلاط من الشیطان بصوته ولان النوم حالة الغفلة ولانه لیس بارفع من الکشف فی حالة الیقظة.

(هدایة القاری شرح صحیح البخاری ۱: ۱۹۶ باب اثم من کذب علی النبی ﷺ)

﴿۲﴾ قال العلامة شرنبلالی: ولا یجوز ای المیت نقله بعد دفنه بان اهیل علیه التراب واما قبله فیخرج بالاجماع ای باجماع ائمتنا طالت مدة دفنه او قصرت للنهی عن نبشه والنبش حرام حقا لله تعالیٰ الا ان تکون الارض مغصوبة...... او اخذت بالشفعة...... وینبش القبر لمتاع کثوب ودرهم سقط فیه وقیل لا ینبش بل یحفر من جهة المتاع...... ولا ینبش بوضعه لغیر القبلة او علی یساره او جعل رأسه موضع رجلیه.

(امداد الفتاح شرح نورالایضاح ۶۴۱ فصل فی حملها ودفنها)



## د یو قبر نه بل ته شعله اوچتیدل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه اکثر دا وینو چه د یو قبر نه بل قبر ته یو شعله شان اوچتیږی او په بل قبر باندې غائبه شی، ددې متعلق شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: شهاب الدین اکوړوی نوشهره....۱۲۱۹۱۱۱۹۸۹

**الجواب:** دا کله روح وی او کله نیک عمل وي، وهوالموفق

## دنابالغه بچو نه د نکیر منکر سوال او جواب

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم نابالغه ماشومان مړه شی او په هغوی باندې جنازه اوکړې شی او کفن دفن کړې شی نو آیا دهغوې نه نکیر منکیر سوال کوی. او دوی ته راځي؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاسم شاه کیران اټک...۴۱۷۱۱۹۸۵

---

﴿۱﴾ واخرج ابن منده وابواحمد والحاکم فی الکنی بسند ضعیف علی طلحة بن عبید الله قال اردت مالی بالغابة فادرکنی اللیل فأویت الی قبر عبد الله بن عمرو بن حزام فسمعت قراءة من القبر ما سمعت احسن منها فجئت الی رسول الله ﷺ فذکرت ذلک له فقال ذلک عبد الله الم تعلم ان الله قبض ارواحهم فجعلها فی قنادیل من زبرجد ویاقوت ثم علقها وسط الجنة فاذا کان اللیل ردت الیهم ارواحهم فلا تزال کذلک حتی اذا طلع الفجر ردت ارواحهم الیٰ مکانها الذی کانت فیه انتهیٰ، ففی هذا الحدیث بیان سرعة انتقال ارواحهم من العرش الی الثریٰ ثم انتقالهـ من الثری الی مکانها ولهذا قال مالک وغیره من الائمة ان الروح مرسلة تذهب حیث شاءت وما یراه الناس من ارواح الموتیٰ ومجیئهم الیهم من المکان البعید امر یعلمه عامة الناس ولا یشکون فیه.

(کتاب الروح لابن القیم ۱۳۵ المسألة الخامسة عشر ومثله فی شرح الصدور ۷۹)

وعن عائشة رضی الله عنها قالت لما مات النجاشی کنا نتحدث انه لا یزال یری علی قبره نور. (سنن ابی داؤد ۱: ۳۴۹ باب فی النور یری عند قبر الشهید)

**الجواب:** د نابالغه ماشومانو نه د منکر نکیر سوال او جواب کښې اختلاف دې بعضې ئې ثابتوی او بعضې ئې نفی کوی.

**والوجه فيه عدم النص فمن نظر إلى عموم الحديث قال بسوال الصبيان ومن نظر الى عدم كونه مكلف انكر عليه والتفصيل فى ردالمحتار ١:٤٩٧ فليراجع ﴿١﴾. وهوالموفق**

## دقبر خاوره تبركا يا علاجاً خوړل يو منكر كار دې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه بعضې خلق د مزارونو د قبرونو نه خاورې راوړی پخپله ئې هم خوری او په نورو ئې هم بطور تبرک خوروي، بعضې خلق خو چه څوک مړ شی او د په مرګ څوک ډیر زيات خفه وی نو هغه باندې دهغه مړی د قبرخاوزه خوړلې کیږی چه زړه ئې صبرشی. آیا

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله ومن لا يسئل) اشار الى ان سوال القبر لا يكون لكل احد ويخالفه ما فى السراج كل ذى روح من بنى آدم يسئل فى القبر باجماع اهل السنة لكن يلقن الرضيع الملك وقيل لا بل يلهمه الله تعالىٰ كما الهم عيسى فى المهد، لكن فى حكاية الاجماع نظر فقد ذكر الحافظ ابن عبد البر ان الآثار دلت على انه لا يكون الا لمؤمن او منافق ممن كان منسوبا الى اهل القبلة بظاهر الشهادة دون الكافر الجاحد وتعقبه ابن القيم لكن رد عليه الحافظ السيوطى وقال ما قاله ابن عبد البر هو الارجح ولا اقول سواه ونقل العلقمى فى شرحه على الجامع الصغير ان الراجح ايضا اختصاص السوال بهذه الامة خلافا لما استظهره ابن القيم ونقل ايضا عن الحافظ ابن حجر العسقلانى ان الذى يظهر اختصاص السؤال بالمكلف وقال وتبعه عليه شيخنا يعنى الحافظ السيوطى ثم ذكر ان من لا يسئل ثمانية الشهيد والمرابط والمطعون والميت زمن الطاعون بغيره اذا كان صابرا محتسبا والصديق والاطفال والميت يوم الجمعة او ليلتها والقارى كل ليلة تبارك الملك وبعضهم ضم اليها السجدة والقارى فى مرض موته قل هو الله احد، واشار الشارح الى انه يزاد الانبياء عليهم الصلاة والسلام لانهم اولى من الصديقين.

(ردالمحتار ١:٦٢٩ مطلب ثمانية لا يسئلون فى قبورهم باب صلاة الجنائز)



دا دواړه طريقې شرعا صحيح دی؟ بينواتوجروا

المستفتی عبدالله مريد حسن راولپنډی.... ٢٤/٣/١٩٧٠

**الجواب:** واضحه دې وی چه د حديثی روايتونو نه د تبرک با ثار الصالحين جواز د رنړا ورځ پشان ثابت دې ليکن په دې تبرکاتو کښې په ددې خبرې خيال ساتلې کيږی چه په خيرالقرون کښې ددې څه نظير بلا نکيرثابت دې يا د شر القرون عوامو په خپل خواهش سره دا جوړکړې دې نو ،اولنې صورت به مشروع وی او دويم به غير مشروع وی اوخاوره خوړل اګر چه پخپله هم مکروه دی

**لمافى الهندية ٥:٣٧٧ اكل الطين مكروه هكذا ذكر فى فتاوىٰ ابى الليث ﴿٢﴾**

ليکن دا تبرکاً خوړل يا علاجًا خوړل په خيرالقرون کښې غير ثابت دې،لهذا دا تبرک او علاج يو امرمنکر دې،دا په حکمت سره بندول په هر مسلمان باندې ضروری دې. فقط. وهوالموفق.

## د ښځو د پاره د خارجی مصلحتونو په بنا زيارة القبور ممنوع دې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د ښځو دپاره د زيارة القبور څه حکم دې؟ او په مقبره کښې ددغې زيارتونو په خواکښې ددعا څه حکم دې؟ شرعی حکم راته اوښايئ؟ بينوا توجروا

المستفتی:منصف شاه ګدر مردان....١٥رجب ١٤٠١ھ

**الجواب:** په اصل مذهب کښې زيارة القبور د ښځو دپاره مسنون دې لحديث الا فزوروها ﴿٣﴾...

﴿١﴾ وعن اسماء بنت ابى بكر انها اخرجت جبة طيالسة كسروانية لها لبنة ديباج وفرجيها مكفوفين بالديباج وقالت هذه جبة رسول الله ﷺ كانت عند عائشة فلما قبضت قبضتها وكان النبى ﷺ يلبسها فنحن نغسلها نستشفى بها رواه مسلم.

(مشكواة المصابيح ١:٣٧٤ كتاب اللباس)

﴿٢﴾ (فتاوىٰ عالمگيرية ٥:٣٤٠ الباب الحادى عشر فى الكراهة فى الاكل وما يتصل به)

﴿٣﴾ عن بريدة قال قال رسول الله ﷺ نهيتكم عن زيارة القبور فزوروها...... رواه مسلم

وعن ابن مسعود ان رسول الله ﷺ قال كنت نهيتكم عن ......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

البته د خارجي مصلحتونو په بنا ممنوع دي. ونظیره حضورهن المساجد﴿١﴾ واضحه دي وی اهل القبور حاجت رواه او مشکل کشا منل شرک دي او د هغوی په توسل سره دعا غوښتل جائز دی. ﴿٢﴾ وهوالموفق.

## په مزارونو باندې د بعضې عوامی کارونو شرعی وضاحت.

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې زمونږ ځائې کښې یو مزاردې په هغې باندې بعضې خلق اعتراض کوی چه تاسو کومه شکرانه اخلئ دا حرامه ده ددې خر خول هم حرام دی. دغه مزار ونو راتلونکې ښځې دمؤل او په هغوی باندې جارو وهل جائز دی یا نه؟ بینوا بالتفصیل وتوجروا عند الجلیل

المستفتی: اعجازحسین پبی نوشهره.. ١٩٨٤ء | ١٠ | ١٥

**الجواب:** د زیارة القبوربعضې احکام(١) د سړو دپاره زیارة القبورمسنون دي. ﴿٣﴾

---

(بقیه حاشیه) زیارة القبور فزوروها فانها تزهد فی الدنیا وتذکر الآخرة رواه ابن ماجة، وعن ابی هریرة ان رسول اللهﷺ لعن زوارات القبور، رواه احمد والترمذی وابن ماجة وقال الترمذی هذا حدیث حسن صحیح وقال (ای الترمذی) وقد رای بعض اهل العلم ان هذا کان قبل ان یرخص النبیﷺ فی زیارة القبور فلما رخص دخل فی رخصته الرجال والنساء. (مشکواة المصابیح ١: ١٥٤ باب زیارة القبور)

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدین: وقال الخیر الرملی ان کان ذلک لتجدید الحزن والبکاء والندب علی ما جرت به عادتهن فلا تجوز وعلیه حمل حدیث لعن الله زائرات القبور وان کان للاعتبار والترحم من غیر بکاء والتبرک بزیارة قبور الصالحین فلابأس اذا کن عجائز ویکره اذا کن شواب کحضور الجماعة فی المساجد. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ١: ٦٦٥ مطلب فی زیارة القبور)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدین: وقال السبکی یحسن التوسل بالنبی الی ربه ولم ینکره احد من السلف ولا الخلف الا ابن تیمیه. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٥: ٢٨١ فصل فی البیع)

﴿٣﴾ قال العلامة ابن عابدین: ای لا بأس بها بل تندب ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



اود ښځو دپاره مفتی به قول مطابق ممنوع دي﴿١﴾ (٢) داولیاءالله د قبرونو نه حاجتونه غوښتل شرکیاتو کښې دی. او توسل بالصالحین (چه یا الله څما دا حاجت ددې ولی په حرمت اوطفیل سره پوره کړې) جائزدي. ﴿٢﴾ ددینه منکرین سلفیان او وهابیان دی. (٣) زیارت ته راتلونکی د مول جائزدی لیکن په هغوی باندې جارو وهل خودساخته عوامی تبرک دې ﴿٣﴾ (٤) منجورانوته د اعزازیا تعاون په ارادې سره شکرانه ورکرول منع نه دی البته د اولیاء په نوم نذر او منختې کول اودهغوی د خوشحالئ او نزدیکت دپاره څه ورکول شرکیات دی. ﴿٤﴾

---

(بقیه حاشیه) کما فی البحر عن المجتبی فکان ینبغی التصریح به للامر بها فی الحدیث المذکور کما فی الامداد وتزار فی کل اسبوع کما فی مختارات النوازل قال فی شرح لباب المناسک الا ان الافضل یوم الجمعة والسبت والاثنین والخمیس فقد قال محمد بن واسع الموتی یعلمون بزوارهم یوم الجمعة ویوماً قبله ویوم بعده فتحصل ان یوم الجمعة افضل. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ١: ٦٦٥ مطلب فی زیارة القبور باب صلاة الجنازة)

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدین: وقیل تحرم علیهن والاصح ان الرخصة ثابتة لهن بحر وجزم فی شرح المنیة بالکراهة لما مر فی اتباعهن الجنازة وقال الخیر الرملی ان کان ذلک لتجدید الحزن والبکاء والندب علی ما جرت به عادتهن فلا تجوز وعلیه حمل الحدیث لعن الله زائرات القبور وان کان للاعتبار والترحم من غیر بکاء. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ١: ٦٦٥ مطلب فی زیارة القبور باب صلاة الجنازة)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدین: وقال السبکی یحسن التوسل بالنبی الی ربه ولم ینکره احد من السلف ولا الخلف الا ابن تیمیة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٥: ٢٨١ فصل فی البیع)

﴿٣﴾ عن انس قال رخص رسول اللهﷺ فی الرقیة من العین والحمة والنملة رواه مسلم. وعن عوف بن مالک الاشجعی قال کنا نرقی فی الجاهلیة فقلنا یا رسول الله کیف تری فی ذلک فقال اعرضوا علیی رقاکم لابأس بالرقی ما لم یکن فیه شرک رواه مسلم. (مشکواة المصابیح ٢: ٣٨٨ کتاب الطب والرقیٰ)

﴿٤﴾ قال العلامة الحصکفی: واعلم ان النذر الذی یقع ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

(۵) کومه شکرانه چه په قبر کیښودې شی هغه دمالک د ملکیتِ نه نه اوځی او چه کومه شکرانه د صندوق یا څادر په ذریعې یا لاس په لاس ملاؤ شی هغه د مالک د ملکیت نه اوځی. (۶) نمبر خر څول یا ګانړه کول وغیره باطل او کالعدم کارونه دی. (لان استحقاق الهدایا لیس بمال ولا بحق واجب فلایجری فیه البیع ولا الرهن ولا النزول عن الحق بعوض. وهوالموفق

## د اصحاب کهف سپي ته ایصال ثواب

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې خلق د اصحاب کهف د سپی د ایصال ثواب دپاره صدقه او خیرات کوی آیا دا جائز دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمن شهاب خیل لکی مروت

**الجواب:** سپو ته ایصال ثواب کول بې وقوفانه او جاهلانه کار دې. (لعدم احتیاج الکلب الی الثواب. وهوالموفق

## د دریاب وړلو په وجه د قبرونو منتقل کول.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په یو قبر باندې څلور کاله تیر شوی دې، او دا په داسې ځائې کښې دې چه د دریاب وړلو سخته خطره ده نو داهلِ قرابت په خواهش ایا دا قبر کهلاؤ کولې او دا دانچه محفوظ ځائې ته منتقل کولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی: میجر محمد اسلم پشاور کینټ.....۲۱۱۱۱۹۷۵

(بقیه حاشیه)للاموات من اکثر العوام وما یؤخذ من الدراهم والشمع الزیت ونحوها الی ضرائح الاولیاء الکرام تقربا الیهم فهو بالاجماع باطل وحرام (قوله باطل وحرام) لوجوه منها انه نذر لمخلوق والنذر للمخلوق لا یجوز لانه عبادة والعبادة لا تکون لمخلوق. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۳۹ مطلب فی النذر الذی یقع للاموات قبیل باب الاعتکاف)



**الجواب:** که ددریاب وړلو یقین یا غالب ګمان وی نو د هغې منتقل کول به ناجائز نه وی.

یدل علیه ما فی شرح الصدور ۱۳۲ اخرج مالک ان عمروبن الجموح وعبد الله بن عمرو الانصاریین حفر قبرهما لیغیرا من مکانهما لان السیل حفر قبرهما واخرج البیهقی ان معاویة لما اراد ان یجری کظامة نادیٔ من کان له قتیل باحد فلیشهد فخرج الناس الی قتلاهم فوجدوهم رطابا، واخرج ابن ابی شیبة فی المصنف لما صرف معاویة عینه التی تمر علی قبور الشهداء فاجریت علیهما یعنی علی قبر عبد الله بن عمروبن حرام وعمروبن الجموح فاخرجناهما الخ﴿۱﴾ قلت فلعل مراد الفقهاء من کراهیة الاخراج هو فی غیر محل الضرورة هذا ما عندی ولعل عند غیری احسن منه. وهوالموفق

## د بدعاتو او رسوماتو په وجه قبرونه ورانول جائز نه دی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د جمات سره متصل درې سوه کاله پخوانې دیو ولی قبر دې په هغې باندې سړی او ښځې نذر او منخې رډی او دا عقیده ساتی چه باران کیدل او ړلئ اودریدل هم ددې قبروجه ده د بهر خلق هم ددې قبر په وجه ددې کلی والو احترام کوی. اوس په محله کښې څو کسانو دا مشوره کړې چه دا قبر دې هوار کړیشی چه دا بدعات او رسومات ختم شی او ددې ځائې دې په جمات شامل کړې شی چه طالبانو له پکښې کمره جوړه کړی شی. آیا داسې کول جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحق هزاره..........۱۲\۱جولائی ۱۹۷۵

**الجواب:** واضحه دې وی چه د کومو څیزونو اهانت ممنوع نه وی مثلا بت، اونه، ګنه نو د فتنې ختمؤلو د پاره به د هغې ختمول جائز بلکه واجب وی. او دکومو څیزونو اهانت چه ممنوع وی مثلاً قبر، جمات نو د بدعاتو او شرکیاتو د ختمولو او بندؤلو دپاره دهغې ورانول او ختمؤل به نا جائز او خلافِ تعامل وی. خلافا للطائفة السلفیة النجدیة. وهوالموفق

﴿۱﴾ (شرح الصدور بشرح حال الموتی والقبور للامام السیوطی ۱۳۳ باب نتن المیت وبلاء جسده)

## قبر او تعزیه ښکلول، د قبر د کاڼړي په بدن باندې د مږلو حکم

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي (۱) چه قبرونه ښکلول، تعزیه ښکلول تبرکاً جائز دی یا نه؟ (۲) په قبرونو باندې پراته کاڼړی بدن باندې مږل جائز دی یا نه؟ (۳) یو قبر یا پیر ته سجده کول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.........۱۹۷۵ء۱۱۱۱۹

الجواب: (۱) د قبر ښکلول مکروه دی.

کما فی الهندیة ۵:۳۸۷ ولا یمسح القبر ولا یقبله ﴿۱﴾ قلت فالتعزیة لا تقبل بطریق الاولی لانها لیست من الاشیاء العظمة وکذا هو من شعائر الروافض ﴿۲﴾.

(۲) تبرک مشروع دی. ﴿۳﴾ لیکن مونږ ددې ذمه دار نه یو چه دعوام کالانعام خودساخته تبرکاتو دمشروعیت په غم کښې شو. (۳) سجده او رکوع

---

﴿۱﴾ (فتاوی عالمگیریه ۵:۳۵۱ الباب السادس عشر فی زیارة القبور وقراة القرآن فی المقابر)

﴿۲﴾ علامه شاه عبدالعزیز محدث دهلوی صاحب رحمه الله فرمائی. تعزیه کول چه په عشره محرم الحرام کښې معمول وی او درگاهونه اود قبرونو صورتونه جوړول صحیح نه دي، په دې وجه چه د تعزیه داریٔ نه مراد دادې چه ترک لذت او ترک زینت اوکړی، او خپل صورت د غمگین او مخزون پشان جوړ کړی یعنی د غمژنې ښځې پشان کینی حال داچه د سړی د پاره دا په یو حالت کښې هم شرعاً نه ثابتیږی. او تعزیه داری بدعت دې او دغه شان درگاهونه او د قبرونو صورتونه جوړول او جهنډې لګول وغیره یعنی دا ټول بدعات دي، او ظاهره ده چه دا بدعت [illegible] عت سیئه حال دا دې چه حدیث کښې راغلې دی. (شر الامور [illegible] حدثه بدعة وکل بدعة ضلالة رواه مسلم. دې مجلس کښې د [illegible] ځرا په نیت سره هم حاضری کول نا جائز دی په دې وجه چه دلته هیڅ [illegible] زیارت دپاره لاړ شی او هلته څه لرګی دی چه د تعزیه داریٔ [illegible] شوی وی هغه د زیارت قابل نه دی بلکه د ورانولو قابل دی. [illegible] عزیزی: ۱۸۴۱۱ [illegible] صوف)

عن انس بن مالک [illegible] ل الله صلی الله علیه وسلم اذا صلی...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



کول چه بطور عبادت وی نو شرک دې او که د غیرالله تعظیم دپاره وی نو حرام ده. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د جنازې په وخت کښې غریبانو کښې د جامو تقسیم

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چې د جنازې په وخت کښې غریبانانو او مسکینانو کښې د کپړو تقسیم جائزدې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نا معلوم..........۱۹۷۶ء۱۰۱۱۱

الجواب: دا یو عُرفی اعزاز دې نه مطلوب دې او نه ممنوع دی. وهو الموفق

## د مړی یا قبر په خواکښې د قران مجید د تلاوت حکم

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چې د مړی سره قبل از دفن کور کښې یا روستو د دفن نه په قبر باندې د قران د تلاوت څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا رحیم الله باچا اضاخیل بالا........۲۵۱۹۱۱۹۷۵

الجواب: دمړی خواکښې قران لوستل مطلقا جائزدی. چه په ښکاره باندې وی،

---

(بقیه حاشیه) الغداة جاء خدم المدینة بآنیتهم فیها الماء فما یؤتی باناء الاغمس یده فیه وربما جاءه فی الغداة الباردة فیغمس یده فیها، عن انس قال لقد رأیت رسول الله صلی الله علیه وسلم والحلاق یحلقه واطاف به اصحابه فما یریدون ان تقع شعرة الا فی ید رجل. (رواهما مسلم) وقال النووی وفیه التبرک بآثار الصالحین وبیان ما کانت الصحابة علیه من التبرک واکرامهم ایاه ان یقع شیئ منه الا فی ید رجل سبق الیه.

(الصحیح مسلم مع شرح النووی ۲:۲۵۶ باب قربه صلی الله علیه وسلم من الناس وتبرکهم به)

﴿۱﴾ وفی فتاویٰ الهندیة: من سجد للسلطان علی وجه التحیة او قبل الارض بین یدیه لا یکفر ولکن یأثم لارتکابه الکبیرة هو المختار قال الفقیه ابو جعفر رحمه الله تعالیٰ وان سجد للسلطان بنیة العبادة او لم تحضره النیّة فقد کفر کذا فی جواهر الاخلاطی.

(فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۶۸ الباب الثامن والعشرون فی ملاقاة الملوک والتواضع لهم الخ)

یا د لرې نه وی او یا مړې پټ وی البته د نزدې نه وی او قرآت په ښکاره کولې شی نو بعد الغسل اتفاقاً جائز دې. او قبل الغسل پکښې اختلاف دې احتیاط په نه کولو کښې دې.(والتفصیل فی رد المحتار ۱\۵۷۳ ﴿۱﴾)

او د قبر خوا کښې قران لوستل جائز دی.

کما فی الهندیة ۱:۱۷۷ قرأة القرآن عند القبور عند محمد رحمه الله لا تکره ومشائخنا اخذوا بقوله﴿۲﴾. وهو الموفق

## خاوره د مول په قبرکښې کیښودل اود اچولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې دې مسئلې باره کښې څه فرمائی: (۱) د مړی د دفن کولو وخت کښې څو کسان خاورې دم کړی او د مړی سره ئې دفن کوی دا جائز دی یا نه دې؟د قبر تیاریدلو نه پس متی خاوره واخلی او منها خلقنکم... الخ، ، ایت پرې اولولی او په قبر کښې ئې خخه کړی آیا دا بد عت دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحق..................۱۹۷۴،۳۱\۲۶

**الجواب:** (۱) بې اصله کار دې. ﴿۳﴾ فقهاؤ ورته جائز وئیلې دی.(کما فی الهندیة ۱: ۱۷۶).﴿٤﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ویقرأ عنده القرآن الی ان یرفع الی الغسل. قال ابن عابدین: کرهوا القرأة بعد موته حتی یغسل. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۱:۶۳۰ مطلب فی القرأة عند المیت)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۶۶ الفصل فی القبر والدفن والنقل من مکان الی آخر)

﴿۳﴾ په طحطاوی علی المراقی کښې دی.

وفی کتاب النورین من اخذ من تراب القبر وقرء علیه سورة القدر سبعاً وترکه فی القبر لم یعذب صاحب القبر ذکره السید (۵۰۴)

دغه شان په نورو عملیاتو کتابونو او د سورتونو په فضائلو کښې ئې مختلف اعمال لیکلې دی چه بغیر د حوالې نه د عمل په طور مذکور دی. لهذا د احکام شرع سره د متصادم او منهی عنه نه کیدلو په وجه نه مطلوب دی او نه ممنوع بلکه مباح دی.

لان الاصل فی الاشیاء الاباحة ولحدیث ابی داؤد: وما سکت عنه فهو عفو، البته التزام د ما لا یلزم بدعت دے۔......(از مرتب)

﴿۴﴾ فی الهندیة: ویستحب لمن شهد دفن المیت ان ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## په قبرونو باندې شنه څانګه کیښودل جائز دی او پکښې کیښودل ابداع دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم سړې مړ شی نو دهغه په قبر باندې شنه څانګه لګوی. چه په ده باندې د قبر عذاب آسان شی آیا دا جائز دي؟ او په قبر د څانګې کیښودلو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد سعید راولپنډی...۲۷ جولائي۱۹۷۵

**الجواب:** په قبر باندې شنه څانګه کیښودل جائز دی.

کما ورد فی حدیث صحیح وروی البخاری فی صحیحه ان بریدة بن الخصیب اوصی بان یجعل علی قبره جریدتان (فلیراجع الی ردالمحتار ۱:۸۴۶)﴿۱﴾

لیکن په قبر کښې دننه د څانګې کیښودل په قران، حدیث او فقه کښې صراحت سره نشته بلکه ابداع دی. وهو الموفق

## د قبر پخولو او هغې باندې د غلاف اچولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه! (۱) چه د قبر پخول

---

(بقیه حاشیه)یحثو فی قبره ثلاث حثیات من التراب بیدیه جمیعاً ویکون من قبل رأس المیت ویقول فی الحثیة الاولیٰ منها خلقناکم وفی الثانیة وفیها نعیدکم وفی الثالثة ومنها نخرجکم تارة اخریٰ کذا فی الجوهرة النیرة.(الهندیة ۱:۱۶۶ الفصل السادس فی القبر والدفن والنقل من مکان الی آخر)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: ویؤخذ من ذلک ومن الحدیث ندب وضع ذلک للاتباع ویقاس علیه ما اعتید فی زماننا من وضع اغصان الآس ونحوه وصرح بذلک ایضا جماعة من الشافعیة وهذا اولی مما قاله بعض المالکیة من ان التخفیف عن القبرین انما حصل ببرکة یده الشریفة صلی الله علیه وسلم او دعائه لهما فلا یقاس علیه غیره وقد ذکر البخاری فی صحیحه ان بریدة بن الخصیب رضی الله عنه اوصیٰ بان یجعل فی قبره جریدتان والله تعالیٰ اعلم.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۱:۶۶۸ قبیل باب الشهید مطلب فی وضع الجرید)

جائز دی یا نه؟ (۲) د یو بزرګ عالم یا ولی قبر باندې څادر او غلاف وغیره کیښودل جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: میر احمد کوهاله راولپنډی....... ۱۴\۱۴\۱۹۷۰

**الجواب:** (۱) نا جائز دي لقول الفقهاء ولا يُجصص، خو د سیلاب د خطرې د وجې نه ګیر چاپیره پوخ دیوال جوړکړیشی نو څه خبره نه ده. ﴿۱﴾ (۲) ددې متعلق جواز او کراهیت دواړه مروی دی لهذا نه کول بهتر دی او دلیل هم ددې طرف مضبوط دې. ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د مړی سره قران کیښودل او دامام د جائې نماز مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی (۱) د مړی سره قران کیښودل څنګه دی؟برابره خبره ده چه حیله اسقاط وی یا نه؟ بعضې خلق د مړی د کټ سره قران وړدی او جنازه وړی لا علی التعین، که دا قران د مړی

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: وفى شرح المنية عن منية المفتى المختار انه لا يكره التطيين وعن ابى حنيفة يكره ان يبنى عليه بناء من بيت او قبة او نحو ذلك لما روى جابر نهى رسول الله ﷺ عن تجصيص القبور وان يكتب عليها وان يبنى عليها رواه مسلم وغيره، نعم فى الامداد عن الكبرىٰ واليوم اعتادوا التسنيم باللبن صيانة للقبر عن النبش ورأوا ذلك حسنا وقال ﷺ ما راه المسلمون حسنا فهو عند الله حسن.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۶۶۲ مطلب فى دفن الميت باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ قال ابن عابدين: كره بعض الفقهاء وضع الستور والعمائم والثياب على قبور الصالحين والاولياء قال فى فتاوىٰ الحجة وتكره الستور على القبور ولكن نحن نقول الآن اذا قصد به التعظيم فى عيون العامة حتىٰ لا يحتقروا صاحب القبر ولجلب الخشوع والادب للغافلين الزائرين فهو جائز لان الاعمال بالنيات وان كان بدعة فهو كقولهم بعد طواف الوداع يرجع القهقرى حتى يخرج من المسجد اجلالاً للبيت حتى قال فى منهاج السالكين انه ليس فيه سنة مروية ولا اثر محكي وقد فعله اصحابنا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۲۵۶ قبيل فصل فى النظر والمس)



خپل وی یا د بل چا وی او یا دا قران چرته د جمات وقف قران وی یا د چا د کور نه ئې راخستلې وی. (۲) د جنازې د امام دپاره جائې نماز څه خیز دې؟ دا د کفن جزدې یا څه خیراتی خیز دې؟ یا په دیکښې شرعاً څه تبرک شته؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ نور محمد پیش امام مصری بانډه... ۱۹۲۹ء\۵\۵

**الجواب:** (۱) توسل بالقران نا جائز نه دې لیکن ددې توسل اختراع عبث او خطرناک ضرور دې. (۲) جائې نماز څه ضروری خیز نه دې په کیښودلو یا نه کیښودلو کښې څه ګناه یا ثواب نشته، که د عالم او امام تعظیم مقصود وی نو د ثواب کار دې. وهوالموفق

## د مړی دفن کولو نه پس درې خلې دعا کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د مړی دفن کولو نه پس لاس اوچتول او یو ځل یا درې ځلې دعاغوښتل جائزدی یاناجائز؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی غلام نبی چورنګی کوهاټ....... ۲۱\شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** د زیارت القبور په وخت کښې لاس اوچتول او درې ځلې دعا کولو روایت په صحیح مسلم کښې مسطور دې. ﴿۱﴾ او ددفن کولو نه پس ددعا په مشروعیت کښې هیڅ شک نشته (لحديث واسئلوا له بالتثبيت فانه الآن يسئل او كما قال عليه السلام ﴿۲﴾ لیکن په دې دعا کښې لاس اوچتول نه مطلوب دی او نه ممنوع دی. ﴿۳﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ عن عائشه الا احدثكم عنى وعن رسول الله ﷺ...... حتى جاء البقيع فقام فاطال القيام ثم رفع يديه ثلاث مرات ثم انحرف فانحرفت فاسرع فاسرعت الخ.

(الصحيح مسلم ۱:۳۱۳ باب التسليم على اهل القبور والدعاء والاستغفار لهم)

﴿۲﴾ (سنن ابى داؤد ۲:۱۰۳ باب الاستغفار عند القبر للميت فى وقت الانصراف)

﴿۳﴾ د قبر سره په ناسته لاس اوچتولو سره یا بغیر د لاس اوچتولو نه او بل طرفته په هره طریقه سره دعا جائز او مباح ده، اوپه دعاکښې لاس اچتول دآداب دعانه لهذا دبعض الناس په دې دعاکښې دلاس اوچتولو اباقی حاشیه په راروانه صفح

## په میډیکل کالجونو کښې د مړی په بدن باندې تجربات کول

**سوال:** علمائې دین دی مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په میډیکل کالجونو کښې په انسانی لاشونو باندې مختلف تجربې کولې شی او تر آخره پورې هغه ټکړې ټکړې کوی نو دفن ئې نه کوی آیا دا جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل ربی دوکاندار ټوپی....... ۱۹مارچ ۱۹۷۵

**الجواب:** دانسان ابتذال اوپه ده تجربې کول ناجائزدی. اګرکه یو ویښته ولې نه وی.

**قال الله تعالیٰ ولقد کرمنا بنی آدم ﴿۱﴾ وفی الهدایة ولا یجوز بیع شعور الانسان ولا الانتفاع بها لان الآدمی مکرم لا مبتذل فلا یجوز ان یکون شیئ من اجزائه مهانا مبتذلا (۳: ۵۵) ﴿۲﴾ وبمعناه فی جمیع کتب الفتاویٰ،**

لهذا د انسان په بدن باندې به تجربې کول حرام وی تجربې د ربړ یا پلاسټک وغیره نه جوړ شوی اندامونو باندې هم کیدې شي. وهو الموفق

---

[بقیه حاشیه].. نه مطلقِ منع څه معنی نه لری. په دې کښې یو حدیث د مسلم دې جاء البقیع فاطال القیام ثم رفع یدیه ثلاث مرات، ددې حدیث په ذیل کښې امام نووی فرمائی:

**فیه استحباب اطالة الدعاء وتکریره ورفع الیدین وفیه ان دعاء القائم اعلیٰ من دعاء الجالس فی القبور (نووی شرح مسلم ۱: ۳۱۳)**

په فتح الباری شرح صحیح البخاری کښې دی.

**عن ابن مسعود رأیت رسول الله ﷺ فی قبر عبد الله بن ذی البجادین الحدیث وفیه فلما فرغ من دفنه استقبل القبلة رافعا یدیه اخرجه ابوعوانة فی صحیحه (۱۱: ۱۲۲ باب الدعاء مستقبل القبلة).**

او بهتر دا ده چه قبلې ته مخ کړې او قبر ته مخ هم جائز دې.

**قال العلامة الحلبی: ویستحب زیارة القبور للرجال وتکره للنساء ویدعو قائما مستقبل القبلة وقیل یستقبل وجه المیت وهو قول الشافعی. (غنیة المستملی ۵۶۰ مسائل شتیٰ کتاب الجنازة)......(ازمرتب)**

﴿۱﴾ (سورة بنی اسرائیل پاره: ۱۵ رکوع: ۷ آیت: ۷۰)

﴿۲﴾ (الهدایة علی صدر فتح القدیر ۶: ۶۳ باب البیع الفاسد)



## په قبر باندې د ایتونو، حدیثونو، تاریخ وفات او نوم وغیره لیکلو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په قبر باندې د قران ایتونه، احادیث، تاریخ وفات اود نوم لیکلو څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: رحیم الله باچا خیل نوشهره........ ۲۳\ذی القعده ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د نوم او تاریخ وفات نه علاوه دا نور کارونه خلافِ سنت دی. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د اولیاء الله او صلحاؤ په قبرونو جهنډې لګول او غلاف اچول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي! (۱) آیا د یو شهید، ولي، او نیك سړی په قبر باندې غلاف اچول او جهنډې لګول جائز دي؟ (۱) آیا د رسول الله ﷺ په قبر مبارک باندې څه غلاف یا جهنډه شته؟ (۳) دیو شهید وغیره په قبر باندې غلاف یا جهنډه کیښودلو نه منع کونکې په حق دې یا د څه سزا مستحق دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: لقمان شاه............ ۲۳مارچ ۱۹۷۵

---

﴿۱﴾ **قال العلامة ابن عابدین: (قوله لا بأس بالکتابة) لان النهی عنها وان صح فقد وجد الاجماع العملی بها فقد اخرج الحاکم النهی عنها من طرق ثم قال هذه الاسانید صحیحة ولیس العمل علیها فان ائمة المسلمین من المشرق الی المغرب مکتوب علی قبورهم وهو عمل اخذ به الخلف عن السلف، ویقوی بما اخرجه ابوداؤد باسناد جید ان رسول الله ﷺ حمل حجر فوضعها عند رأس عثمان بن مظعون وقال اتعلم بها قبر اخی وادفن الیه من مات من اهلی فان الکتابة طریق الی تعرف القبر بها نعم یظهر ان محل هذا الاجماع العملی علی الرخصة فیها ما اذا کانت الحاجة داعیة الیه فی الجملة کما اشار الیه فی المحیط بقوله وان احتیج الی الکتابة حتی لا یذهب الاثر ولا یمتهن فلا بأس به فاما الکتابة بغیر عذر فلا حتی انه یکره کتابة شیئ علیه من القرآن او الشعر او اطراء مدح له.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۶۲ مطلب فی دفن المیت باب صلاة الجنائز)**

په اقوالو كښې د دې امام ابو حنيفه رحمه الله او د حديث او قرآن په (١) **الجواب:** غلاف او جهنډې متعلق هيڅ ذكر نشته دې چه تاته د هغې نه جواب دركړې شى، **نعم جاز ان يستبط هذا الحكم من الحديث المسطور (ما امرنا ان نكسر الحجارة الحديث) لكن هذا الاستنباط ليس من مطلوبكم لانه رأى المستنبط وقوله.**

(٢) د پيغمبر عليه السلام د قبر متعلق تپوس كول لا يعنى خبره ده ځكه چه هلته كښې د يو كار كيدل دليل نه دې. (٣) د غلاف متعلق فقهائې كرامو كراهيت هم نقل كړې دې. او بعضې فقهائې كرامو نه جواز هم مروى دې.

**كما فى ردالمحتار ٥: ٣١٩ كره بعض الفقهاء وضع الستور والعمائم والثياب على قبور الصالحين والاولياء قال فى فتاوىٰ الحجة وتكره الستور على القبور ولكن نحن نقول الان اذا قصد به التعظيم فى عيون العامة حتىٰ لا يحتقروا صاحب القبر ولجلب الخشوع والادب للغافلين الزائرين فهو جائز الىٰ آخر ما ذكر فى كشف النور﴿١﴾**

﴿١﴾ نو د قاعدې مطابق محرم نه په ترجيح وركولې كيږى ليكن مخالفينو باندې سختى نه دې پكار. وهو الموفق

## په قبرستان باندې تيريدلو وخت كښې لاس اوچتول دعا كول

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه په قبرستان باندې تيريدلو وخت كښې د اهل قبور د مغفرت د پاره لاس اوچتول او دعا غوښتل پكار دى يا څه سوزت اولولى او بغير د لاس اوچتولو نه په زړه كښې دعا او غوښتلې شى.؟ بينو اتوجرو

المستفتى: خواجه عبد السلام از ارندر چترال.......... ٢٠١٥١١٩٨٤

**الجواب:** لاس اوچتول هم جائز دى. (مسلم شريف) ﴿٢﴾ وهو الموفق

---

﴿١﴾ ردالمحتار هامش الدر المختار ٥: ٢٥٦ فصل فى اللبس كتاب الحظر والاباحة)

﴿٢﴾ جاء النبى صلى الله عليه وسلم البقيع فقام فاطال القيام ثم رفع يديه ثلاث مرات ثم انحرف.

(الصحيح مسلم ١: ٣١٣ فصل فى التسليم على اهل القبور والدعاء والاستغفار لهم)



## د جنازې شريكانو د پاره د مړى په كور كښې خوراك كول

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى د مړى د تدفين نه پس اعلان كول چه په جنازه كښې شريک خلق د مړى په كور كښې ډوډئ اوخورئ څه حكم لري، حال دا چه اوس دا عام رواج جوړ شوې دې؟ بينوا توجروا

المستفتى: اهاليان كنډى هرى پور......١١٨ جمادى الثانى ١٤٠١ھ

**الجواب:** د اهلِ ميت د طرف نه تصدق علي المساكين هر وخت جائز دې. او د رسم ورواج پابندى (فخر او ريا) هر وخت ناجائز دى. ﴿١﴾ او دعوت او ضيافت درې ورځو پورې ناجائز دى پس دا دعوتِ مسئوله نا جائز دې. (٢) (ماخوذ از شامى ١: ٨٤٢ وهنديه ٥: ٣٨٢) وهو الموفق

## د مړى په باره كښې مختلفې مسئلې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى (١) هره جمعه باندې قبرستان ته تللو سره د انسان ګناه معاف كيږى يا نه؟ (٢) مړې خپل قبرته راتللو والا پيژنى يا نه؟ (٣) مړې د ژوندى مدد كولې شى يا نه؟ (۴) ژوندى لره د

---

﴿١﴾ **قال العلامة ابن عابدين: بجواز تبرع الوارث باخراجها وعليه فلا بأس بادارة الولى للزكاة ثم ينبغى بعد تمام ذلک كله ان يتصدق على الفقراء بشئ من ذلک المال او بما اوصى به الميت ان كان اوصى.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ١: ٥٤٣ مطلب فى بطلان الوصية بالختمات والتهاليل)**

﴿٢﴾ **قال العلامة الحصكفى: ويكره اتخاذ الطعام فى اليوم الاول والثانى والثالث.**

**(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ١: ٦٦٤ باب صلاة الجنائز) وفى الهندية: ولا يباح اتخاذ الضيافة ثلاثة ايام فى ايام المصيبة واذا اتخذ لا بأس بالاكل منه كذا فى خزانة المفتين.**

**(فتاوىٰ عالمگيرية ٥: ٣٤٤ الباب الثانى عشر فى الهدايا والضيافات)**

مړی نه مدد غوښتل جائز دی یا نه؟ (۵) قبرونو ته ګډې چیلۍ او روژې وړل او خوړل جائز دی یا نه؟ (۶) مړی په خپل قبر باندې ناستې مرغې کښې نر او ښځه پیژندلې شی یانه؟ (۷) مړې غسل ورکولو والا د کټ سره تللو والا کفن دفن کولو والا پیژنی یا نه؟ (۸)مړی ته شرقاً غسل ورکول چه خپې قبلې ته وی د امام اعظم د مذهب نه خلاف دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی شاه محمد خان عبدالقاسم خان اټک...۲۰۱۷۱۱۹۷۸

**الجواب:** علی ترتیب السوالات: (۱) د جمعې په ورځ زیارت القبور سنتِ رسول ﷺ دي﴿۱﴾ (۲) پیژني ﴿۲﴾ (۳) باذنه تعالٰی کولې شی(۴) توسل بالصالحین جائز دې چه دهغې نه په استمداد یا لغیر سره تعبیر جائز دې البته استمداد من الغیر مافوق الاسباب شرک دې. ﴿۳﴾

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: وتزار فی کل اسبوع کما فی مختارات النوازل قال فی شرح الباب المناسک الا ان الافضل یوم الجمعة والسبت والاثنین والخمیس فقد قال محمد بن واسع الموتی یعلمون بزوارهم یوم الجمعة ویوما قبله ویوما بعده فتحصل ان یوم الجمعه افضل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۶۵ مطلب فی زیارة القبور باب صلاة الجنائز)

﴿۲﴾ قال الملا علی القاری: واخرج ابن عبد البر فی الاستذکار والتمهید عن ابن عباس قال قال رسول الله ﷺ ما من احد یمر بقبر اخیه المؤمن کان یعرفه فی الدنیافیسلم علیه الاعرفه ورد علیه السلام صححه عبد الحق واخرج ابن ابی الدنیا والبیهقی فی الشعب عن ابی هریرة قال اذا مر الرجل بقبر یعرفه فسلم علیه ردعلیه السلام وعرفه واذا مر بقبر لا یعرفه فسلم علیه رد علیه السلام ای ولم یعرفه.

(مرقاة المفاتیح شرح المشکوٰة ۴: ۱۱۶ باب زیارة القبور الفصل الثالث)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: ومنها انه ان ظن ان المیت یتصرف فی الامور دون الله تعالیٰ واعتقاده ذلک کفر اللهم الا ان قال یا الله انی نذرت لک ان شفیت مریضی او رددت غائبی او قضیت حاجتی ان اطعم الفقراء الذین بباب السیدة......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)





(۵) دا اعمال شرک دی (چه کله د نذر بغیر الله د قبیلې نه وي) (۶) ممکن دي(۷) د قواعدو په رڼا کښې پیژندل اقرب معلومیږی ﴿۱﴾ (۸) په دې کښې توسع ده ﴿۲﴾ وهوالموفق

## په قبرستان کښې د خوراک کولو حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په قبرستان کښې خوراک خوړل جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: از جنا کوړ خانی خیل غازی شاه..۹ جمادی الاول ۱۳۹۷ه

**الجواب:** په قبرستان کښې خوراک کول مکروه نه دی البته التزام د ما لا یلزم او تخصیص بلا مُخصِصْ بدعتِ سیئه دې. ﴿۳﴾ وهوالموفق

(بقیه حاشیه) نفیسة او الامام الشافعی او الامام اللیث او اشتری حصر المساجدهم او زیتا لو قودها او دراهم لمن یقوم بشعائرها الی غیر ذلک مما یکون فیه نفع للفقراء والنذر لله عزوجل وذکر الشیخ انما هو محل لصرف النذر لمستحقیه القاطنین برباطه او مسجده فیجوز بهذا الاعتبار.

(ردالمحتار ۲: ۱۳۹ قبیل باب الاعتکاف مطلب فی النذر الذی یقع للاموات من اکثر العوام)

﴿۱﴾ قال الملا علی القاری: وقد اخرج احمد والطبرانی وابن ابی الدنیا والمروزی وابن منده عن ابی سعید الخدری ان النبی ﷺ قال ان المیت یعرف من یغسله ومن یحمله ومن یکفنه ومن یدلیه فی حفرته. (مرقاة المفاتیح ۴: ۴۲ باب المشی بالجنازة والصلاة علیها)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ویوضع کما مات کما تیسر فی الاصح.

(قوله فی الاصح) وقیل یوضع الی القبلة طولا وقیل عرضا کما فی القبر.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۳۱ باب صلاة الجنائز)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم: ولان ذکر الله تعالیٰ اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشیئ دون شیئ لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع.

(البحر الرائق ۲: ۱۵۹ باب العیدین)

## زیارة القبور جائز او عبادة القبور ناجائز دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کرامت الاولیاء بعد الموت حق دې یا نه؟ او د زیارة القبور څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: صاحبزاده ګل ظریف خان بتګرام........۵|۲|۱۹۸۹ء

**الجواب:** کرامتِ د اولیاء الله حق دې په ژوند کښې هم او بعد الموت هم. البته په الوهیت او ولایت کښې فرق کول ضروری دی. ﴿۱﴾ او دِ سړو ښځو دپاره زیارة القبور جائز دې. ﴿۲﴾ البته عبادة القبور د نارینو او زنانو دواړو دپاره ناجائز دې. وهو الموفق

## قبر ته تیارشي دننه پکښې سورت یٰس لوستل په خاوره دمول او په قبر کښې خورول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه کښې دوه کسانو جنازه اوکړه د مړی ښخولو نه مخکښې په قبر کښې دننه یو سرته یو بل خپو ته اودریدو او سورت یٰسین ئې تلاوت کړو په خاوره ئې دم کړو او خاوره ئې د لاش لاندې خوره کړه آیا دا طریقه شرعی لحاظ سره صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: نا معلوم..........۱۱|۲|۱۹۷۴

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: وعبارة النسفی فی عقائده و کرامات الاولیاء حق فتظهر الکرامة علی طریق نقض العادة للولی من قطع المسافة البعیدة فی المدة القلیلة وظهور الطعام و الشراب واللباس عند الحاجة والمشی علی الماء والهواء و کلام الجماد والعجماء واندفاع المتوجه من البلاء و کفایة المهم من الاعداء وغیر ذلک من الاشیاء.

(ردالمحتار ۲: ۶۸۴ مطلب فی ثبوت کرامات الاولیاء والاستخدامات فصل فی ثبوت النسب)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: وان کان للاعتبار والترحم من غیر بکاء والتبرک بزیارة القبور الصالحین فلا بأس اذا کن عجائز. (ردالمحتار ۱: ۶۶۵ مطلب فی زیارة القبور باب صلاة الجنائز)



**الجواب:** په مقبره کښې سورت یٰسین لوستل جائز دی. ﴿۱﴾ لیکن په دې باندې خاوره دمول او په قبر کښې اچول بدعت دې ﴿۲﴾ نه د قران او حدیث نه ثابت دي، نه په خیرالقرون کښې چرته وئیلې شوې دي، او نه دائمه دین او فقهائې کرامو نه مروی دی. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: من دخل المقابر فقرء سورة یٰس خفف الله عنهم یومئذ و کان له بعدد من فیها حسنات بحر. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۶۶ مطلب فی القرأة للمیت و اهداء ثوابها له باب صلاة الجنائز)

وقال الجلال السیوطی: اخرج عبد العزیز صاحب الخلال بسنده عن انس ان رسول الله ﷺ قال من دخل المقابر فقرأ سورة یٰس خفف الله عنهم و کان له بعد دفن فیها حسنات وقال القرطبی فی حدیث اقرء واعلی موتاکم یٰس هذا یحتمل ان تکون هذه القراءة عند المیت فی حال موته ویحتمل ان تکون عند قبره قلت وبالاول قال الجمهور کما تقدم فی اول الکتاب وبالثانی قال ابن عبد الواحد المقدسی فی الجزء الذی تقدمت الاشارة الیه وبالتعمیم فی الحالین قال المحب الطبری من متأخری اصحابنا وفی الاحیاء للغزالی والعاقبة لعبد الحق عند احمد بن حنبل قال اذا دخلتم المقابر فاقرء وا بفاتحة الکتاب والمعوذتین وقل هو الله احد واجعلوا ذلک لاهل المقابر فانه یصل الیهم قال القرطبی وقد قیل ان ثواب القراءة للقاری وللمیت ثواب الاستماع ولذلک تلحقه الرحمة قال الله تعالیٰ واذا قرئ القران فاستمعوا له وانصتوا لعلکم ترحمون، قال ولا یبعد فی کرم الله تعالیٰ ان یلحقه ثواب القراءة والاستماع معا ویلحقه ثواب ما یهدی الیه من القراءة وان لم یسمع کالصدقة والدعاء وفی فتاویٰ قاضی خان من الحنفیة من قرأ القرآن عند القبور فان نویٰ بذلک ان یؤنسهم صوت القرآن فانه یقرأ وان لم یقصد ذلک فالله یسمع القراءة حیث کانت. (شرح الصدور ۱۳۰ باب قراءة القرآن للمیت او علی القبر)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: ولان ذکر الله تعالیٰ اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشیئ دون شیئ لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع. (البحر الرائق ۲: ۱۵۹ فصل فی العیدین)

## د بعضې ځناورو جنت ته تلل

**سوال:** آیا چرته په یو روایت کښې شته چه سپې به جنت ځي؟ بیّنوا توجروا
المستفتی:سمیع الرحمان محمودآبادګړهی کپوره مردان۲۳شوال ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** حموی په شرح اشباه کښې صفحه ۳۹۹ باندې د مقاتل نه د لسو ځناورو متعلق روایت کړې چه جنت ته به ځی. وعد منها کلب (اصحاب الکهف). ﴿۱﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾قال العلامة سید احمد بن محمد الحموی: وفی شرح شرعة الاسلام قال مقاتل عشرة من الحیوانات تدخل الجنة ناقة محمد ﷺ وناقة صالح علیه السلام وعجل ابراهیم علیه السلام وکبش اسماعیل علیه السلام وبقرة موسیٰ علیه السلام وحوت یونس علیه السلام وحمار عزیر علیه السلام ونملة سلیمان علیه السلام وهدهد بلقیس علیه السلام وکلب اهل الکهف کلهم یحشرون کذافی مشکاة الانوار. (غمزعیون البصائر علی الاشباه والنظائر ۱:۲۶۱ الفن الثالث فائدة یدخل فی الجنة خمس حیوان)

قال العلامة آلوسی: وجاء فی شان کلبهم انه یدخل الجنة یوم القیامة فعن خالد بن معدان: لیس فی الجنة من الدواب الاکلب اصحاب الکهف وحمار بلعم ورأیت فی بعض الکتب ان ناقة صالح وکبش اسماعیل ایضا فی الجنة، ورأیت ایضا ان سائر الحیوانات المستحسنة فی الدنیا کالظباء والطواولیس وما ینتفع به المؤمن کالغنم تدخل الجنة علی کیفیة تلیق بذلک المکان وتلک النشاه ویس وما ینتفع به المؤمن کالغنم تدخل الجنة علی کیفیة تلیق بذلک المکان وتلک النشأة ویس فیما ذکر خبر یعول علیه فیما اعلم، نعم فی الجنة حیوانات مخلوقة فیها، وفی خبر یفهم من کلام الترمذی صحته التصریح بالخیل منها، والله تعالیٰ اعلم وقد اشتهر القول بدخول هذا الکلب الجنة.
(تفسیر روح المعانی ۹:۳۲۷ سورة کهف آیت:۱۸)



## مسئله اطعام من اهل المیت

د مړی د طرف نه د خوراک ورکولو مسئلې د عوامی غلو او افراط او تفریط په وجې سره یو متنازعه شکل اختیار کړې وو. تر دې چه تکفیر او ابداع پورې دا سلسله اورسیدله. حضرت مفتی صاحب دامت کاتهم په مقالات کښې د نور مسئلو پشان د فقهی حوالو سره د افراط او تفریط نه پاکه امت ته پیش کړه د عام فائدې د پاره په فتاوٰی کښې شامل کولې شی......از مرتب

داهل میت د طرفنه تصدق علی المساکین هر وخت جائزدې چه کله په وارثانو کښې نا بالغه او غائبین نه وی. (کما فی الهندیة ۵:۳۴۴ وان اتخذ طعامًا للفقراء کان حسنا اذا کانت الورثة بالغین فان کان فی الورثة صغیر لم یتخذوا ذلک من الترکة کذا فی التتارخانیة،او د اهلِ میت د طرفنه د رسم او رواج پابندی هر وخت نا جائزه ده.

کما فی البزازیة علی هامش الهندیة ۴:۸۱ ویکره اتخاذ الطعام فی الیوم الاول والثالث وبعد الاسبوع والاعیاد وفی جنائز ردالمحتار عن المعراج، قال هذه الافعال کلها للسمعة والریاء فیحترز عنها لانهم لا یریدون بها وجه الله تعالیٰ.

اوداهلِ میت دطرفنه ضیافت او دعوت درې ورځو پورې ممنوع دې. یعنی دا کار منع دې خوراک منع نه دې. (کما فی الهندیة ۵:۳۴۴ ولا یباح اتخاذالضیافة ثلاثة ایام فی ایام المصیبة واذا اتخذ لا باس بالاکل منه، کذا فی خزانة المفتین،البته خواص به خپل ځان د خوړلونه بچ کوی که خواص د خوراک نه بچ کیږی نۀ،نو عوام به د پخولونه منع نشی.اود اهلِ میت دطرفه دحاجت اوضرورت طعام جائزدې مثلاً داهلِ میت متعلقین نه وی یابې مروته وی اودطعام د اخستلو خرڅولوځه انتظام نه وی اوهم دامحمل دې د اثر د ابوذر رضی الله عنه چه هغه وصیت کړې وو چه ځما میلمنو د پاره به یو ګډ ذبح کړې. (کما فی البدایة والنهایة ۷:۱۲۵)

بعضې فقهاء فرمائی چه د اهل ميت د طرفنه دعوت او ضيافت جائز دې او د هغې دپاره دليل د ابوداؤد شريف حديث دې. (فلما رجع ﷺ استقبله داعى امرءته فجاء، فجيئ بالطعام فوضع يده الى اخر الحديث، چه پيغمبر عليه السلام د اهلِ ميت دطرفه دعوت قبول کړو اود خوراک اراده ئې اوکړه. ليکن معلومه شوه، ورنه چه دا ګډه د مالک د اجازت نه بغير ذبح شوې ده نو بيا ئې اونه خوړله.

(رواه ابوداؤد فی باب اجتناب الشبهات من کتاب البيوع)

ليکن نورو فقهاؤ ددې سره موافقت نه دې کړې ځکه چه په حديث کښې دوه نسخې دی يوه نسخه د داعی امراة بغير د اضافت نه او دا نسخه صحيح ده. او په دې نسخه باندې دهغې بعضې فقهاؤ استدلال صحيح نه دې او دويمه نسخه ده داعی امراته، په اضافت سره يعنی د مړی ښځه، بيا استدلال صحيح کيږی دا حديث معارض دې حديث د ابن ماجه او حديث د مسند امام احمد سره، چه دوی د جرير رضی الله عنه نه روايت کړې. (کنا نعد الاجتماع الى اهل الميت وصنعهم من النياحة، او دا حديث قولی دې او محرِم دې او تشريع عام دې نو دا حديث عام دې نو دا حديث به دابوداؤد نه راجح وی ځکه چه هغه فعل دې او مبيح دې او جزوی واقعه ده او يا حديث د ابوداؤد به په طعامِ دحاجت باندې حمل کړې شی او دغه شان دعائشه رضی الله عنها حديث دې.

انها کانت اذا مات الميت من اهلها فاجتمع لذلک النساء ثم تفرقن الا اهلها وخاصتها امرت ببرمة من تلبينة فطبخت ثم صنع ثريد فصبت التلبينة عليها قالت کلن منها، فانی سمعت رسول الله ﷺ يقول التلبينة مجمة لفواد المريض تذهب ببعض الحزن (رواه البخاری ۲:۸۱۵)

دا په طعامِ دحاجت باندې محمول دې چه د کور خلق ئې او خوری او طبيعت نه ئې بوج سپک شی.



## په زوړ قبر کښې فلش ګټر (Gutter) جوړول

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ په خپلِ کور کښې فلش ګټر جوړولو نو د قبر تختې پکښې راوختلې او بيا د مړی د بدن ډيره خاوره هم راوختله مخکښې دا ځائې د فصل زمکه وه او دلسو کالو نه دلته ځمونږ کور جوړ دې او د مړی زړه خاوره څلور فټه باندې راختلې ده او فلش ګټر به لسو فټو پورې ژور جوړول وې، نو آيا دې ځائې کښې به ګټر جوړول جائز وی يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: ظهور احمد.........۳۱۱۱۱۱۹۹۰

**الجواب:** د مړی بدن او اعضاء واجب الاحترام وی ﴿۱﴾ د انقلاب نه پس احکامات بد ليږی خو بيا هم دا مخصوصه خاوره پاک ځائې کښې کيښودل مناسب وې ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د ماشوم بچی د مړ کيدلو نه پس چيلئ ذبحه کول او هډوکی د قبر خوا کښې د دفن کولو رسم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ځمونږ ځائې کښې چه ماشوم مړشی نود چيلئ بچې ذبحه کړی په دې خيال سره چه دقيامت په ورځ به دې په براق باندې سوريږی چه مور پلار په آسانئ سره جنت ته اورسوې،

﴿۱﴾ قال ابن نجيم: واما الآدمی فقد قال بعضهم ان جلده لا يحتمل الدباغة حتی لو قبلها طهر لانه ليس بنجس العين لکن لا يجوز الانتفاع به ولا يجوز دبغه احتراما له وعليه اجماع المسلمين کما نقله ابن حزم وقال بعضهم ان جلده لا يطهر بالدباغة اصلا احتراما له فالقول بعدم طهارة جلده تعظيم له حتی لا يتجرأ احد علی سلخه ودبغه واستعماله.
(البحر الرائق ۱:۱۰۱ الا جلد الخنزير والآدمی کتاب الطهارة)

﴿۲﴾ وفی الهندية: ويکره ان يبنی علی القبر او يقعد او ينام عليه او يوطأ عليه او يقضی حاجة الانسان من بول او غائط کذا فی التبيين.
(فتاویٰ عالمگيرية ۱:۱۶۶ الفصل السادس فی القبر والدفن)

او هغه د چیلئ د بچی هډوکی د قبر په خوا کښې دفن کولې شي، آیا دې سلسله کښې څه شرعی حکم شته؟ بینوا توجروا

المستفتی: جناب نعیم ګل صاحب خرم ضلع کرک.........۷۱۵۱۱۹۷۳

**الجواب:** دا یو قبیح رسم دې. ﴿۱﴾ هر مسلمان دپاره ضروری دی چه ددې نه بچ شی. دا کارونه صرف په وحی سره معلومیږی او په دیکښې کښې هیڅ وحی ثابته نه ده، ومن ادعی فعلیه البیان او دغه شان یو معمر او معتمد عالم هم ددې حکم نه دې ورکړې. ﴿۲﴾ قال رسول الله ﷺ من احدث فی امرنا هذا ما لیس منه فهو رد اوکما قال ﴿۳﴾. وهوالموفق

## په قبر کښې سورت یسین لوستل، د جنازې دوران کښې ذکر کول او د ناخوانده جنازه کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مړی قبر طرفته وړولو وخت کښې جنازه د قبر سره متصل بهر کیږدی دجمات امامان قبر ته کوزشی سورت یسین لولی. بیا مړی قبرته کوزوی اوداطریقه فرض اولازمی

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: ویکره...... کل ما لم یعهد من السنة والمعهود منها لیس الا زیارتها والدعأ عندها قائما.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۶۶۷ مطلب فی وضع الجرید والآس علی القبور)

﴿۲﴾قال العلامة شرنبلالی: (قوله بدعة) ای قبیحة کالمسمی بالکفارة ذکر ابن الحاج فی المدخل فی الجزء الثانی ان من البدع القبیحة ما یحمل امام الجنازة من الخبز والخرفان ویسمون ذلک عشاء القبر فاذا او صلوا الیه ذبحوا ذلک بعد الدفن وفرقوه مع الخبز وذکر مثله المناوی فی شرح الاربعین فی حدیث من احدث فی امرنا هذا ما لیس منه فهو رد، قال: ویسمون ذلک بالکفارة فانه بدعة مذمومة قال ابن امیر حاج: ولو تصدق بذلک فی البیت سراً لکان عملاً صالحاً. (الطحطاوی ۶۰۶ فصل فی حملها ودفنها)

﴿۳﴾(مشکواة المصابیح ۱:۲۷ باب الاعتصام بالکتاب والسنة)



ګڼلې کیږي، آیا دا فعل ثابت دې؟ که نه وی نو دددې خلقو څه حکم دې؟ بعضې خلق په قبرستان کښې دنیاوی خبرې کوی او بعضې ذکر بالجهر آیا دا صحیح دې؟ او چه کله خلق خبرې کوی نو دې وخت کښې دا قران خوانی کول جائز دې؟ دیو عالم او متقی خطیب په موجودګئ کښې یو ناپوهه سړې دجنازې مونځ ورکړی نو آیا دا جنازه صحیح کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مقبول الرحمان مولیا کوهاله مري

**الجواب:** (۱) دا طریقه د تخصیص بلامخصص کیدلو په وجه بدعت ده، قال صاحب البحر ۲:۱۵۹ ولان ذکر الله اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشیئ دون شیئ لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به انتهیٰ﴿۱﴾. قلت نعم ورد الشرع بقرأته علی الموتی والمراد منهم الذی قربوا الموت او المقبورون فافهم﴿۲﴾.

(۲) دغه شان که دا امر مستحب که څوک فرض اوګڼړی نو مبتدع به وي، (لان التزام ما یلزم بدعة کما هو مبر هن فی

﴿۱﴾ (البحر الرائق ۲:۱۵۹ باب العیدین)

﴿۲﴾عن معقل بن یسار قال قال رسول الله ﷺ اقرؤا سورة یٰسٓ علی موتاکم رواه احمد وابوداؤد وابن ماجة، وقال السیوطی ورواه ابن ابی شیبة والنسائی والحاکم وابن حبان واخرج ابن ابی الدنیا والدیلمی عن ابی الدرداء عن النبی ﷺ قال ما من میت یقرأ عند رأسه سورة یٰسٓ الا هون الله علیه، وفی روایة صحیحة ایضا یٰسٓ قلب القرآن لا یقرؤها عبد یرید الدار الآخرة الاغفر الله له ما تقدم من ذنبه فاقرؤها علی موتاکم، قال ابن حبان المراد به من حضره الموت ویؤیده ما اخرجه ابن ابی الدنیا وابن مردویه ما من میت یقرأ عنده یٰسٓ الاهون الله علیه وخالفه بعض محققی المتأخرین فأخذ بظاهر الخبر فقال بل یقرأ علیه بعد موته وهو مسجی وذهب بعض الی انه یقرأ علیه عند القبر ویؤیده خبر ابن عدی وغیره من زار قبروالدیه او احدهما فی کل جمعة فقرأ عندهما یٰسٓ غفرله بعدد کل حرف منها.

(مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ۴:۱۶ باب مایقال عند من حضره الموت)

موضعه﴿۱﴾ (۳) ذکر چه کله په جهر سره وی نو بهتر نه دی لیکن جائز دی.
﴿۲﴾ (۴) په قران خوان باندې هیڅ وبال نشته وبال په خبرو کولو والا باندې دې، (۵) که نا خوانده د محلې امام وی نو صحیح ده. وهوالموفق

---

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: لان الجهلة (اذا) یعتقدون (المباحة) سنة او واجبة و کل مباح یؤدی الیه فمکروه.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵۷۷ قبیل باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾قال العلامة ابن نجیم: وینبغی لمن تبع جنازة ان یطیل الصمت ویکره رفع الصوت بالذکر وقرأة القرآن وغیرهما فی الجنازة والکراهة فیها کراهة تحریم فی فتاویٰ العصر وعند مجد الائمة الترکمانی وقال علاء الدین الناصری ترک الاولیٰ.
(البحر الرائق ۲: ۱۹۲ فصل السلطان احق بصلاته)

....



# فصل فی احکام الشهید

## د ټوپک په ذریعې سره ظلماً مقتول شهید دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی (۱) یو سړې په ظلم سره په ټوپک باندې بل سړې مړ کړو د ټولو شرطونو موجود کیدلو باندې به دې مقتول ته شهید وئیلې کیږی یا نه؟ او په ټوپک باندې د آله جارحه اطلاق کیدیشی یا نه؟ (۲) که دا معلومه نه وی چه مقتول ظلماً قتل کړې شوې دې او مقتول څو ځلې د قتل اقدام هم کړې نو په ده باندې دشهید احکام جاری کیږی یا نه؟(۳) یو سړې بل سړې قتل کړو بیا ددې دویم سړی وارثانو دا قاتل قتل کړو ددې څه حکم دې؟ شهید دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: هدایت الله کړی صوابی... ۱۹۸۵/۱۰/۱۲

**الجواب:** (۱) په ټوپک سره قتل موجب قصاص دې لهذا په دې سره قتل شوې شخص شهید دې، او ټوپک د وقذ او (جرح) آله ده. لیکن د ذبحې آله نه ده. ﴿۱﴾ (۲) د ثبوت نه بغیر حکم با لشهادت یا بعدم الشهادت کول بې قاعدې امر دې. (۳) تر څو چه مونږ د قتل نوعیت معلوم نه وی. نو مونږ د فتوی ورکولو نه عاجز یو، وهوالموفق

## د شهید د شهادتِ اخروی دارومدار په نیت دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مشرقی پاکستان کښې کوم بنګالیان د خپلو حقوقو او عزت او ناموس په خاطر د مغربی پاکستان د فوجونو دلاسو نه مړه شول هغوی اخروی شهیدان دی یا نه؟

---

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: هو کل مکلف مسلم طاهر قتل ظلما بغیر حق بجارحة ای بما یوجب القصاص یکون شهیدا. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۷۰ باب الشهید)

او د شهید عندالله کیدلو په صورت کښې څه دلیل دې؟ د جنازې د مونځ نه کیدل او د هغوی وینه بې تاوانه کیدل د سیاسی مصلحت په بناء ده یا څه بل څه وجه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: ننګ اسلاف مولوی محمد صادق.....۲۹ رجب المرجب

**الجواب:** داخلق د وطن شهیدان دی ځکه چه د هغوی قربانیانې د وطن د آزادئ په خاطر وې، مونږ دوی نه په أخروی شهیدانو کښې داخلوو او نه ئې تر نه اوباسو ځکه چه ددې دارو مدار په نیت دې. ﴿۱﴾ او د صحیح نیت توقع د دواړو طرفونو نه نه وه، کما لا یخفٰی، وهو الموفق

## شهید ته به د انزال او جنابت په وجه غسل ورکولې کیږی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم سړې ظلماً قتل کړې شي، او د هغه انزال شوې وی نو آیا د انزال په وجه به هغه ته غسل ورکولې شی. ځکه چه شهید خو په وینو لت پت جامو کښې بغیر غسل نه دفن کولې شی نو آیا د جُنب شهید به هم دا حکم وي؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ولی الله........۱۰۱۲۱۱۹۷۳

**الجواب:** شهید ته د شهادت په وجه غسل نشی ورکولې نه دا چه د انزال او جنابت په وجه﴿۲﴾ په روایاتو کښې ددې خبرې هیڅ ثبوت نشته او شهید دپاره خپله وینه پاکه ده ا مسئله د واضحاتو او اجماعیاتو نه ده فقهائې کرامو په دې باندې تصریح کړې ده. ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ عن عمر بن الخطاب قال قال رسول الله ﷺ انما الاعمال بالنیات و انما لامرئ ما نوی الخ متفق علیه. (مشکواة المصابیح ۱: ۱۱ قبیل کتاب الایمان)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: فاذا استشهد الجنب یغسل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۶۹ باب الشهید)

﴿۳﴾ قال العلامة شرنبلالی: وکان المقتول مسلماً بالغاً خالیا عن حیض ونفاس و جنابة ولم [illegible] ای حمل من المعرکة رثیثا ای جریحا وبه رمق کذا ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د شهیدانو ژوند د قران او حدیث نه ثابت دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ځمونږ سره یو وهابی او نجدی سړې اوسیږی چه عجیبه عجیبه خبرې کوی او د شهیدانو باره کښې وائی چه دوی مړه کیږي، د هغوی د ژوند هیڅ ثبوت نشته آیا دا صحیح ده؟ او دهغه سره ځما یو ځائې اوسیدل او خوراک کول جائز دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: فتح خان.........۱۲۱۹۱۱۹۷۴

**الجواب:** د شهداء فی سبیل الله ژوند د قران او احادیثو نه ثابت دې. ﴿۱﴾ دد ینه انکار کول جهالت او ضلالت دې، ته دې سړی سره اجتماعی ژوند تیرولې شی البته په دې مسئلو کښې د بحث کولو نه ځان ساته.وهو الموفق

## په ثوابی او عُرفی شهید کښې فرق او مړی ته د تیمم کولو مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلو باره کښې څه فرمائی ﴿۱﴾ په دریاب کښې

---

(بقیه حاشیه)فی الصحاح والمراد هنا ما هو اعم مما یصیره خلفا فی الشهادة بالارتثات بعد انقضاء الحرب فیکفن بدمه ای مع دمه من غیر تغسیل لقوله ﷺ زملوهم بدمائهم فانه لیس کلمه تکلم فی سبیل الله الا تأتی یوم القیامة تدمی لونه لون الدم والریح ریح المسک.

(امداد الفتاح شرح نورالایضاح ۶۴۶ مایصنع مع الشهید)

﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ: ولا تقولوا لمن یقتل فی سبیل الله اموات بل احیاء ولکن لا تشعرون.

(سورة البقرة پاره:۲ رکوع:۳ آیت: ۱۵۴)

وقال الله تعالیٰ: ولا تحسبن الذین قتلوا فی سبیل الله امواتا. (سورة آل عمران آیت ۱۶۹)

عن ابن کعب بن مالک عن ابیه ان رسول الله ﷺ قال ان ارواح الشهداء فی طیر خضر تعلق من ثمر الجنة او شجر الجنة هذا حدیث حسن صحیح.

(جامع الترمذی ۱: ۱۹۷ باب ماجاء فی ثواب الشهداء)

ډوبیدونکي، اور کښې سوزیدونکي، د ګاډی یا ریل لاندې راتلونکي، مړ کیدلو والا شهید دې یا نه؟ هغه ته دغسل ضرورت شته یا نه؟ (۲) کوم کس چه د تیز رفتاره ګاډی یا دروند بوج لاندې راشی او مړشی اولاش ټکړې ټکړې شی نو که د غسل په ځائې تیمم ورکړې شی جائز دی که نه؟ (۳) په کوموکومو حالتونو کښې مړی ته غسل نشی ورکولې؟ (۴) تیمم د مړی دپاره په کوم حالت کښې جواز لری.؟ بینوا توجروا

المستفتی: سمیع الرحمان ګمبت مردان. ۲۲۱۸۱۱۹۷۵

**الجواب**: (۱) داکسان ثوابی شهیدان دی لحدیث ورد بذلک﴿۱﴾عُرفی شهیدان نه دی.(لانه الشهیدالعرفی وهو الکامل هوکل مکلف مسلم طاهرقتل ظلمابجارحة ولم یجب بنفس القتل مال ولم یرتث.﴿۲﴾(ماخوذ از درمختار) لهذا غُسل به ورته ورکولې شی.(۲) که ټول یا اکثر بدن ئې باقی وی ګنې که بعضې بدن یعنی غیراکثر موندلې شی نو په هغې به جنازه نشی کولې. کما فی رد المحتار ﴿۳﴾ والشرح الکبیر﴿۴﴾ نوغسل ضرورت به هم پاتې نشي، باقی مړی ته به د

﴿۱﴾عن ابی هریرة قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ما تعدون الشهداء فیکم؟ قالوا: یا رسول الله من قتل فی سبیل الله فهو شهید، قال: ان شهداء امتی اذاً لقلیل ، قالوا: فمن یا رسول الله؟ قال: من قتل فی سبیل الله فهو شهید، ومن مات فی سبیل الله فهو شهید،ومن مات فی الطاعون فهو شهید، ومن مات فی البطن فهو شهید، والغریق شهیدٌ . (رواه مسلم رقم :۱۹۱۵) وعنه قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : الشهداء خمسة: المطعون، والمبطون، والغریق، وصاحب الهدم والشهید فی سبیل الله متفق علیه.

(ریاض الصالحین ۴۰۳ رقم حدیث ۱۳۴۳، ۱۳۵۴ باب الشهداء)

﴿۲﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱ : ۶۶۹ باب الشهید)

﴿۳﴾قال العلامةابن عابدین وکذا یغسل لو وجد النصف مع الرأس. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱ : ۶۳۴ مطلب فی حدیث کل سبب ونسب منقطع باب صلاة الجنائز)

﴿۴﴾قال الحلبی: عن ابن المنذر فی الاشراف لم یصح ذلک ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



اوبو نه موجودګئ په وجه مړې یا ښځې دپاره د لامبونکې ښځې د نشتوالی په وجه تیمم ورکولې شي﴿۱﴾ د زخم په وجه د تیمم ورکولو هیڅ وجه نشته.(۳) عُرفی شهید ، باغیان، قطاع الطریق او د خپل ظالم قوم سره د عصبیت په بنیاد مدافعت کولو والا ته به غُسل نه شی ورکولې(ردالمحتار) ﴿۲﴾ (۴) مر سابقًا ،وهو الموفق

## د شهید قسمونه او د کفن دفن مسئله

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د شهید تعریف په لاندې صورتونو کښې صحیح دې یا نه؟ (۱)که چرته یو وارث پخپله په بدله

(بقیه حاشیه)عنها واذا لم یرد اثر بالصلوٰة علی العضو لا یصلی علیه اذا کان فی حکم الکل بان وجد اکثره او النصف ومعه الرأس اذ للاکثر حکم الکل وکذا النصف مع الرأس لاشتماله علی اکثر الاعضاء الرئیسة بخلاف ما لو وجد نصفه مشقوقا طولا فانه لا یصلی علیه لئلا یؤدی الی تکرار الصلوة علی میت واحد فانه غیر مشروع.

(غنیة المستملی شرح منیة المصلی ۵۴۲ کتاب الجنازة باب الصلوٰة)

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: قال فی الفتح ولو لم یوجد ماء فتیمم المیت وصلوا علیه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱ : ۶۳۶ مطلب فی الکفن باب صلاة الجنائز)

قال العلامة کاسانی: اما المرأة فنقول اذا ماتت امرأة فی سفرفان کان معها نساء غسلنها ولیس لزوجها ان یغسلها عندنا...... ولنا ما روی عن ابن عباس رضی الله عنهما ان رسول الله صلی الله علیه وسلم سئل عن امرأة تموت بین رجال فقال تیمم بالصعید.

(بدائع الصنائع ۲ : ۳۵ فصل فی بیان من یغسل صلاة الجنازة)

﴿۲﴾قال العلامة ابن عابدین: والمکابرون فی المصر لیلا بمنزلة قطاع الطریق کما فی البحر عن شرح المجمع فمن قتلوه ولو بغیر محدد فهو شهید کما لو قتله القطاع وکذا من قتله اللصوص لیلا کما سیأتی وذکر فی البحر انه زاد فی المحیط سببا رابعا وهو من قتل مدافعا ولو عن ذمی فانه شهید بای الة قتل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱ : ۶۷۰ مطلب فی تعداد الشهداء باب الشهید)

کښې اقدام اوکړی او قاتل قتل کړي، آيا په دې اقدام سر به موجود سړې قاتل او ګنهګار ګڼړلې کيږی يا وارث اوصاحبِ حق به ګڼړلې کيږی او عندالله به برئ الزمه وی. او څوک چه فی الحال مقتول شو ده ته به شهيد وئيلې کيږی که په قصاص کښې به ګڼړلې کيږی. (۲) که يو کس بل مسلمان په ناحقه قتل کړو نو دامقتول به شهيد بللې کيږی که صرف مقتول، يعنی دغسل او کفن وغيره به څه حکم وي؟ (۳) ځمونږ په صوبه سرحد کښې اکثر واقعات ددې قسم کيږی چه اکثرې ګناه يا په داسې خبرو سړې مړ کړې شی چه دهغې هډوشرعی جوازنه وی. په داسې مقتولينو به د مظلوم او شهيد احکام جاری کيږی يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: فضل مولٰی ګورنمنټ مډل سکول بابوزئ مردان ۱۸/۱۱/۱۹۲۹

**الجواب:** (۱) د شهيد درې قسمونه دي، اول هغه چه په دنيوی احکاماتو کښې شهيدوی يعنی هغه ته غسل نشی ورکولې او خاص کفنُ به ورته نه اچولې کيږی نو ددې تعريف دادې چه کل مکلف مسلم طاهر قتل ظلماً بجارحة ولم يجب بنفس القتل مال ولم يرتث (تنوير الابصار) ﴿۱﴾ اودويم هغه چه په اخروی احکاماتو کښې شهيدوی مثلاً، مطعون، مبطون غريق وغيرهم (کما فی حديث صحيح) ﴿۲﴾ او دريم چه ددنيا او آخرت دواړو په احکاماتو کښې شهيد وی هغه مقتول فی سبيل الله دې چه نيت او اراده ئې صحيح وی ﴿۳﴾ (وللتفصيل موضع آخر) ﴿۴﴾

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۶۹ باب الشهيد)

﴿۲﴾ وعن ابی هريرة قال قال رسول الله ﷺ ما تعدون الشهيد فيکم قالوا يا رسول الله من قتل فی سبيل الله فهو شهيد قال ان شهداء امتی اذاالقليل من قتل فی سبيل الله فهو شهيد ومن مات فی الطاعون فهو شهيد ومن مات فی البطن فهو شهيد رواه مسلم.
(مشکواة المصابيح ۱: ۳۳۱ کتاب الجهاد)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدين: والمراد بشهيد الآخرة من قتل مظلوما او قاتل لاعلاء کلمة الله تعالیٰ حتی قتل فلو قاتل لغرض دنيوی فهو شهيد دنيا فقط.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۷۲ مطلب فی تعداد الشهداء باب الشهيد)

﴿۴﴾ وفی المنهاج: الشهداء ثلاثة انواع الاول: من يکون...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



(۲) کله چه دا قتل به معا ئنې سره معلوم وی او دا هم معلومه وی چه قاتل عمداً قتل کړې نو په دې صورت کښې د وارث د پاره قصاص اخستل جائز دی. يعنی عندالله به مجرم نه وی.

فی الدرالمختار وبه علم ان القضاء ليس بشرط لاستيفاء القصاص والاموال وفی ردالمحتار فلو قتل الولی القاتل قبل القضاء لم يضمن وفيه ايضا ۵: ۲۶۴ قال فی الهندية: واذا قتل الرجل عمداً وله ولی واحد فله ان يقتله قصاصا قضی القاضی به او لم يقض انتهیٰ ﴿۱﴾ لکن فی الاشباه وشرحه ص ۱۰۱ السابعة الحدود سوی حد القذف لايتوقف علی الدعویٰ بخلاف القصاص لا بد فيه من الدعویٰ انتهی ﴿۲﴾ فالظاهر ان بعد الدعویٰ لا يشترط القضاء فافهم.

(۳، ۴) که دا سړې مظلوم وی او مقتول په قتل عمد سره وی او ده خوراک او علاج نه وی کړې نو په دنيوی احکاماتو کښې به شهيد وی. ﴿۳﴾ وهو الموفق

(بقيه حاشيه) شهيدا فی احکام الدنيا کترک الغسل واحکام الآخرة کالصون من العذاب وتغير البدن فی القبر، وهو من قتل فی سبيل الله محتسباً، والثانی: من يکون شهيداً فی احکام الدنيا دون الآخرة وهو من قتل فی سبيل الله غير محتسب، والثالث: من يکون شهيداً فی احکام الآخرة دون الدنيا کالمطعون والمبطون.
(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۴: ۲۳۴ باب فی الشهداء منهم)

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵: ۳۹۰ قبيل باب القود فيما دون النفس)

﴿۲﴾ (غمز عيون البصائر شرح الاشباه والنظائر ۲: ۱۱۸ کتاب الجنايات)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدين: وکذا فی الهداية والبدائع معللا بانه ما نال شيأ من راحة الدنيا.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۶۷۲ مطلب فی تعداد الشهداء باب الشهيد).
(وهکذافی غنية المستملی ۵۵۳ فی احکام الشهيد)

سوم جلد 23

## په بم دهماکو کښې مړه شوی کسان شهیدان دي

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه پېښور کښې بم اوچاودلو دا بمونه عام طور سره د (را) ایجنټان یا روسیان کافران لږوی. په دې دهماکه کښې پنځه کسان مړهٔ شول آیا دا شهیدان دي؟ او دوی ته به غسل ورکولې کیږي؟ بینواتوجروا

المستفتی:نامعلوم......٢٤شوال١٤٠١ھ

**الجواب**: دا مقتولین شهیدان دی او دویته به غسل نشی ورکولې ځکه چه کافران دا بمونه د قتل په ارادې سره ږدي، (کما یشیر الیه ما فی البحر (١٩٦:٢) لان ما قصد به القتل فهو تسبیب وما لا فلا،(١) انتهٰی، فافهم

## د نامعلوم سړی په ډزو سره مړ شوې سړې شهید دې

**سوال**: علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید د خپل کور په کهلاؤ صحن (غولي) کښې د ماسخوتن وخت کښې د نامعلوم سړی په فائرنګ (ډزو) سره قتل شو آیا دې شهید دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:محمد اقبال سنګوې ضلع دیر......٢٣شعبان١٤٠٢ھ

**الجواب**: ظاهری طور سره دا سړې شهید دې.(کما فی الشامیة ٢٤٩:٢ طبع المصطفیٰ البابی والمکابرون فی المصر لیلا مثلاً بمنزلة قطاع الطریق (٢) فافهم

## چه په صحرا کښې مړې اومندلې شی نو غسل به ورته ورکولې کیږی یا نه؟

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې دشپې په

(١) (البحر الرائق ١٩٦:٢ باب الشهید)

(٢) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ١:٦٧٠ باب الشهید)



وخت کښې په صحرا کښې قصداً قتل کړې شوې د ښار نه لږ لرې بیابان کښې اوموندلې شو. آیا دا سړې شرعاً شهید دې یا نه؟ او غسل وغیره پرې لازم دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی:مولوی بهرام الدین ډیره اسماعیل خان یکم فروری ١٩٧٥

**الجواب**:که دا مقتول قطاع الطریق او ډاکوانو (غلګرو) قتل کړې وی نو غسل به ورته نه ورکولې کیږی او که قاتل ئې معلوم نه وی نو غسل به ورته ورکولې کیږی.

**قال العلامة الشامی فی ردالمحتار ١:٨٥١ وخرج مالو وجد فی مفازة لیس بقربها عمران فانه لا تجب فیه قسامة ولا دیة فلا یغسل وفیه ایضا وکذا من قتله قطاع الطریق خارج المصر بسلاح او غیره فانه شهید(١). فافهم**

(١) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ١:٦٧١ مطلب فی تعداد الشهداء باب الشهید)

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه دریم جلد

# کتاب الزکوٰة

## (باب وجوب الزکوٰة)



..........



**قال الله تعالی**

وَفِيٓ أَمۡوَٰلِهِمۡ حَقّٞ

لِّلسَّآئِلِ وَٱلۡمَحۡرُومِ ١٩

**(المعارج)**

....

...

# كتاب الزكوٰة

## باب وجوب الزكوٰة

**په انما الصدقات للفقراء والمساكين (الاية) كښې د صدقې نه مراد زكوة دې**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه كښې د مړود ايصال ثواب دپاره خلق خوراک پخوی او مالداران غريبانان ئې بغير دڅه فرق كينى خوری. اوس يو سړې وائی چه د خيرات وغيره دپاره د فقيرانو مسكينانو خلقو موجود كيدل شرط دې او په دليل كښې انما الصدقات للفقراء والمساكين (الاية) د قران آيت پيش كوی، براه كرم ددې مسئلې وضاحت تفصيل او دلائلو سره راوليږئ او ثواب دارين حاصل كړئ؟ بينوا توجروا

المستفتی: قاری عبدالرحمان حقانی واړی ضلع دير... يكم جولائي ۱۹۸۶

**الجواب:** دا آيت په زكوٰة باندې محمول دې په نفلی صدقاتو باندې نه، كما صرح به باب التفسير ﴿۱﴾ او غنی ته نفلی صدقه وركول جائز دی. ﴿۲﴾ البته د صاحب هدايه په نزد به دا صدقه صدقه وی او د بعضو په نزد په حقيقت كښې دا هبه ده. (فليراجع الیٰ رد المحتار ۴:۵۲۳ ﴿۳﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ قال السيوطی: انما الصدقات ای الزكوات مصروفة.

(تفسير جلالين سورة التوبه پاره: ۱۰ آيت: ۶۰ ركوع: ۷)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجيم: لا تحل صدقة لغنی خرج النفل منها لان الصدقة علی الغنی هبة كذا فی البدائع. (البحر الرائق ۲:۲۴۵ باب المصرف)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله صدقة) والصدقة كالهبة وفی المضمرات ولو قال وهبت منكما هذه الدار والموهوب لهما فقيران صحت...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



**په مالكِ نصاب باندې زكوة فرض دې اګركه حاجات اصليه لكه سورلی وغيره ورته حاصل نه وی**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائی چه يو سړې د نصاب مالک دې ليكن حاجات اصليه مثلاً وَسله، سورلئ، خادم وغيره ورسره نشته، اوس كه دا سړې دا مال په دې ځيزونو باندې خرچ كړی نو بيا د نصاب مالک نه پاتې كيږي، آيا دې سړې (مالکِ نصاب) باندې زكوة فرض دې؟ او آيا ددې ځيزونو د ضرورت نه كيد لو په صورت كښې دا سړې زكوة اخستلې شي؟ بينوا توجروا

المستفتی: نامعلوم................ ۱۰۱۳۱٫۱۹۷۵

**الجواب:** كه دا سړې مقروض نه وی نو ده باندې زكوة وركول فرض دی او زكوة اخستل ورله حرام دی. (والتفصيل فی رد المحتار ۲:۸) وهوالموفق

(بقيه حاشيه) الهبة بالاجماع تاترخانية لكن قال بعده وفی الاصل هبة الدار من رجلين لا تجوز وكذا الصدقة فيحتمل ان قوله وكذا الصدقة ای علی غنيين والاظهر ان فی المسئلة روايتين قال فی البحر وصحح فی الهداية ما ذكره من الفرق (قوله كالغنيين) هذا قوله وقال يجوز وفی الاصل ان الهبة لا تجوز وكذا الصدقة عنده ففی الصدقة عنه روايتان خانية. (ردالمحتارهامش الدرالمختار ۴:۵۲۴ قبيل باب الرجوع فی الهبة)

وقال العلامة مرغينانی: وفی الجامع الصغير اذا تصدق علی محتاجين بعشرة دراهم او وهبها لهما جاز ولو تصدق بها علی غنيين او وهبها لهما لم يجز وقالا يجوز للغنيين ايضا جعل كل واحد منهما مجازا عن الآخر والصلاحية ثابتة لان كل واحد منهما تمليک بغير بدل وفرق بين الصدقة والهبة فی الحكم وفی الاصل سوی بينهما فقال وكذلک الصدقة لان الشيوع مانع فی الفصلين لتوقفهما علی القبض ووجه الفرق علی هذه الرواية ان الصدقة يراد بها وجه الله تعالیٰ وهو واحد والهبة يراد بها وجه الغنی وهما اثنان وقيل هذا هو الصحيح. (هداية علی صدر فتح القدير ۷:۴۹۷ كتاب الهبة)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: اذا امسكه لينفق منه كل...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## په نابالغ او مجنون باندې زكوة واجب نه دې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه د زيد يو بالغ ورور مجنون يعنى پاګل دې او دوه رونړه ئې نا بالغه دى د دوى مشتركه مال دې آيا ټول مشتركه مال باندې زكوٰة واجب دې ياصرف د زيد په حصې باندې؟ بينوا توجروا

المستفتى: نامعلوم.....۳جمادى الاول۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دې صورت كښې په مجنون او نابالغو باندې زكوة واجب نه دې صرف د زيد په خپلې حِصې باندې زكوة واجب دې.

كما فى الهندية ۱:۱۸۲ ومنها العقل والبلوغ فليس الزكوٰة على صبى ومجنون اذا وجد منه الجنون فى السنة كلها هكذا فى الجوهرة النيرة﴿۱﴾. وهوالموفق

## كه د صدقې په لفظ سره د زكوة په نيت څه څيز وركړيشى نو زكوٰة ادا كيږي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه زيدِ بكر ته لس روپئ وركړې او وئيل ئې چه دا لس روپې صدقه د الله په نوم قبولې كړه ليكن دهغه نيت د زكوٰة وو او دهغه په ذمه د زكوة لس روپې وې نو دا زكوة ادا شو يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتى: مولوى فضل وهاب امجد آباد رستم مردان.......۱۹۷۳ء۲۰۱۲۱

**الجواب:** چونكه زكوٰة هم په صدقاتو كښې داخل دې. قال الله تعالىٰ: انما الصدقات للفقراء..الخ(الآيـه) لهٰذا ددې سړى زكوة ادا شوې دې. ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

(بقيه حاشيه) ما يحتاجه فحال الحول وقد بقى معه منه نصاب فانه يزكى ذلک الباقى.

(ردالمحتار ۲:۷ مطلب فى زكاة ثمن المبيع وفاء كتاب الزكاة)

﴿۱﴾(فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۱۷۲ كتاب الزكاة)

﴿۲﴾وفى الهندية: ومن اعطى مسكينا دراهم وسماها ...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## د نصابِ شرعى نه كم مال كښې وجوب د زكوٰة نشته

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه دِ يو سړى سره پوره كال پنځوس روپئ وې ديكښې به زكوة واجب وى يا نه؟ كه زكوة واجب دې نو بيا د دبهشتى زيور دا مسئله دې واضحه كړيشى. مسئله دا ده چه كه چاسره دوه سوه روپې موجود وى او يو نيم سل روپې پرې قرض دې نو د قرض ادا كولو نه پس پنځوس روپې پاتې شوې او په پنځوس كښې زكوة واجب نه دې. اوس مطلب په آخرى فقره كښې دې چه په پنځوس كښې زكوة واجب نه دې، حال دا چه دا پنځوس په دوه سوو كښې ټول كال موجودې وې؟ بينوا توجروا

المستفتى: نا معلوم..........

**الجواب:** ما سره بهشتى زيور نشته فى الحال دا توجيه ليكلې شى چه په بهشتى زيور كښې دوه سوه شرعى روپې مراد دې، او ددينه كم نصاب نشته لهذا په پنځوس روپو كښې د زكوة وجوب نشته. ﴿۱﴾

## مال كه د نصاب په اندازې نه وى نو زكوٰة به واجب نه وي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه يو كور كښې څلور رونړه او سيږى دهر يو د ښځې پنځه تولې مهر دې انفرادى طور باندې دهرې يو مهر د نصاب نه كم دې البته اجتماعى طور باندې د نصاب نه زيات جوړيږى آيا ددينه به زكوة ادا كولې شي؟ بينواتوجروا

المستفتى: امين الله زنډو بانډه پشاور

---

(بقيه حاشيه)هبة او قرضا ونوى الزكاة فانها تجزيه وهو الاصح هكذا فى البحر الرائق.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۱۷۱ كتاب الزكاة)

﴿۱﴾ دا د هغې زكات حكم دې چه كله به روپئ د سپينو زرو يا د سرو زرو وه او دې زمانه كښې د كاغذ كرنسى رائجه ده. نو اوس دا حكم دې چه د كوم كس سره دومره روپئ يا نوټونه موجود وى چه د هغې قيمت د بازار د نرخ مطابق دوه پنځوس نيمې سپينو زرو ته رسيږى نو زكوة به واجب وى ګنى نه. (از مرتب)

**الجواب:** په ظاهره خو دوی باندې زکوٰة فرض نه دې ځکه چه د هر یو انفرادی ملکیت د نصاب نه کم دې. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د سروزرو او سپینو زرو د خلط او انفراد په صورت کښې د زکوٰة حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ما سره څلور تولې د سروزرو کالې دی او سپین زر یا نقد رقم نشته نو دیکښې د زکوٰة څه طریقه ده؟ او نورې ماسره درې تولې د سروزو کالې او پنځویشت تولې د سپینو زرو کالې دي. ددې د زکوٰة څه طریقه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد رفیق پشاور.............. ۱۹۷۷ء۱۸۱۰

**الجواب:** (۱) که تاسره صرف څلور تولې سره زر وی سپین زر او نقد نوټ وغیره درسره نه وی ته مالدار نه ئې، تا باندې زکوٰة واجب نه دې. ځکه د سروزرو نصاب اوونیمې تولې دې. ﴿۲﴾ (۲) که تاسو سره درې تولې سره زر او پنځویشت تولې سپین زر دی نو دې باندې زکوٰة واجب دې. دواړو د قیمت څلیریشتمه حصه به ورکول وی. د ضم او اختلاط په صورت کښې به د انفع للفقراء رعایت کولې شی.

**كما فی ردالمحتار ۲: ۲۶ ولكن يجب ان يكون التقديم بما هو انفع للفقراء رواجاً ﴿۳﴾. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله وسببه ملك نصاب حولی)...... ذكر فی البدائع من الشروط الملك المطلق قال وهو الملك يدا او رقبة وقال ان السبب هو المال الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴ مطلب الفرق بين السبب والشرط والعلة) وفی الهندية: ومنها كون المال نصابا فلا تجب فی اقل منه. (عالمگيرية ۱: ۱۷۲ كتاب الزكاة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفی: نصاب الذهب عشرون مثقالا، قال ابن عابدين: (قوله عشرون مثقالا) فما دون ذلك لا زكاة فيه. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۱ باب زكاة المال)

﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۷ باب زكاة المال)



## د حرمان زکوٰة نصاب

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د حرمانِ زکوة نصاب څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عمر علی وزیرستانی متعلم حقانیه

**الجواب:** کوم کس چه د حوائج اصلیه نه علاوه اوونیمې تولې سره زر یا ۵۲ نیمې تولې سپین زر یا پنځلس روپۍ فی توله په حساب سره ۷۸۸ روپې تقریباً یاددې مقدار پیسومال دتجارت (یا نور اشیاء که نامی وی یا غیرنامی نه وي) وغیره لری نو هغه غنی دې زکوة نشی اخستلې ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د زکوٰة د فرضیت د پاره بلوغ شرط دې

**سوال:** عملمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې کونډو ته چه د خاوندانو مرحومینونه کومه ورثه ملاویږي، هغوی دا رقم د خپلو یتیمانانو بچو په نوم جمع کوي، او فی الوقت دامسئله ډیره عامه جوړه شوې ده نو ددې نابالغه بچو جمع شوی رقم باندې به زکوة واجب شی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورالهی کهوله جهلم

**الجواب:** واضحه دې وی که دا پیسې ددې نا بالغه بچو ملکیت وی نو په دیکښې زکوٰة واجب نه دې.

قال رسول الله ﷺ رفع القلم من ثلث وعن الصبی حتی يبلغ ﴿۲﴾ وفی الدرالمختار

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: لا بأس ان يعطی من الزكاة من له مسكن وما يتأثث به فی منزله وخادم وفرس وسلاح وثياب البدن وكتب العلم ان كان من اهله فان كان له فضل عن ذلك تبلغ قيمته مائتی درهم حرم عليه اخذ الصدقة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۷۰ مطلب فی الحوائج الاصلية باب المصرف)

﴿۲﴾ رواه الترمذی وابوداؤد ورواه الدارمی عن عائشة وابن ماجة عنهما (مشكواة المصابيح ۲: ۲۸۴ باب الخلع والطلاق الفصل الثانی)

وشرط افتراضها عقل و بلوغ (۲: ۳) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په نقدو روپو کښې هر کال باقاعده زکوة واجب دي.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې زید دلرې واقع کیدلو په وجه زمکه د شل زرو روپو په عوض کښې خرڅه کړه. او رقم ئې د ځان سره کینبودلو عرض ئې دا وو چه چرته نزدې زمکه ملاؤ شی نو وابه خلم، دې دوران کښې د یو کال زمانه تیره شوه لیکن مطلوب او د خوښې زمکه ملاؤ نه شوه اوس سوال دادې چه آیا دې رقم کښې زکوة واجب دې او آیا هرکال به چه ترڅو پورې دا رقم په بل څه خرچ نکړی نو زکوة به فرض وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد خورشید خیبر تو بیکو مردان

**الجواب:** ددې رقم نه به باقاعده هر کال زکوة ورکولې کیږی. (کما فی رد المحتار ۲:۸ ان الزکاة تجب فی النقد کیفما امسکه للنماء او للنفقة وکذا فی البدائع... الخ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴ کتاب الزکاة)

وقال الکاسانی: ولنا انه لا سبیل الی الایجاب علی الصبی لانه مرفوع القلم بالحدیث ولان ایجاب الزکوٰة ایجاب الفعل وایجاب الفعل علی العاجز عن الفعل تکلیف مالیس فی الوسع ولا سبیل الی الایجاب علی الولی لیؤدی من مال الصبی لان الولی منهی عن قربان مال الیتیم الا علی وجه الاحسن بنص الکتاب واداء الزکاة من ماله قربان ماله لا علی وجه الاحسن لما ذکرنا فی الخلافیات الخ.

(بدائع الصنائع ۲: ۸۱ شرائط فرضیة الزکاة)

وفی الهندیة: ومنها العقل والبلوغ فلیس الزکاة علی صبی ومجنون الخ.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۷۲ کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۷ مطلب فی زکاة ثمن المبیع کتاب الزکاة)



## د زکوة د نصاب په اوزانو کښې د حضرت تهانوی او محقق لکهنوی اختلاف

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله د تخریج مطابق د سروزو نصاب، اونیمې تولې او د سپینو زرو نصاب ۵۲ نیمې تولې دې. او د مولانا عبد الحئ لکهنوی رحمه الله مطابق د سروزرو نصاب پنځه تولې او دوه نیمې ماسې دې او : چاندئ نصاب ۳٦ توله او پنځه نیمې ماسې دی. په دیکښې به د تطبیق او تصحیح څه صورت وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی ضیاءالدین هنگو کوهاټ.... ۱۳۰رجب ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** د حضرت تهانوی رحمه الله حساب صحیح دې، او مولانا عبدالحئ رحمه الله د لویو تولو مطابق اندازا لګولې ده، هغه اوس رائج نه دی. ﴿۱﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ په سرو او سپینو زرو کښې احکام او او زان د قدیم عربی اوزانو مطابق دی. اوس پخپله په عربی ملکونو کښې هم قدیم اوزان رائج نه دې. دغه شان په پاک وهند کښې نور اوزان او پیمانې رائج دي، بلکه په عالمی سطحه باندې بین المللی اوزان رائج دی، په دې وجه ددې اختلاف په وجه د پخوا نه علماؤ په مستقل رسالو اومتفرقه فتاؤو کښې مفصل مطول او مختصر بحثونه کړی دی. د مولانا عبد الحئ لکهنوی رحمه الله یو مستقل کتاب د اوزان شرعیه په موضوع باندې دې، او د مذکوره نصاب تخریج ئې کړېدې. او بل طرفته مولانا مفتی محمد شفیع او حضرت تهانوی رحمه الله ده دویم نصاب مقرر کړې ده حضرت مفتی محمد شفیع صاحب فرمائی. اختلاف دلته نه پیدا شوچه مولانه عبدالحئ صاحب اویا اوربشې چه مقدار ددرهم دې هغه ئې دوه ماشې یوه نیمه رتئ اوګرځوله او د هند جمهور علماؤ درې ماشې یو رتئ او درتئ پنځمه حصه ګرځولې ده. احقر اویا اوربشې ځان له او سل اوبشې ځان ځان له احتیاط سره وزن کړې او د فقهاؤ د تصریح مطابق اوربشې هم متوسط وې چه تولې بغیرلګئ والا وې اوسپینې شوې نه وې بیا مې پخپله هم څوځلې وزن کړې او په متعدد صرافیانو مې وزن کړې اول په رائج الوقت ماشې سره وزن کړې نو اویا اوربشې درې ماشې پنځه رتئ شوې او سل وربشې پنځه ماشې دوه رتئ شوې لیکن رائج الوقت تله وماشه داصلی تولې او ماشې نه لږ شان کمه ده. ځکه دې وخت... [باقی حاشیه په راروانه صفحه]

## انکم ټیکس د زکوة متبادل نشی کیدې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه پخوا زمانه کښې حکومت زکوة اخستلو لیکن اوس زمانه کښې حکومت ټیکس وصول کوی. آیا دا انکم ټکس د زکوة متبادل کیدې شي؟ یا هغه رقم د شرعی زکوة د رقم نه منها کولې شی یا نه؟ مثلاً د زید په ذمه باندې په یو کال کښې دوه زره روپې زکوة دې.او دې کال کښې حکومت د زید نه شپږ سوه روپې انکم ټکس وصول کړو، اوس چه زید مبلغ څوارلس سوه روپئ اداکړې نو د زکوة د ادائیګئ نه به فارغ شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی:عبدالرحمان مشین محله۲ جهلم شهر

**الجواب:** د حکومت انکم ټکس وصولِ کول یو غیر اسلامی عمل دې یعنی نه په دې کښې د زکوة د شرطونو لحاظ ساتلې شی او نه په شرعی مصارفو کښې خرچ کیږي، لهذا دا ټیکس د زکوة نه ګرځول صحیح نه دی. او بعضې فقهاؤ لیکلې دی. چه داسې رقم د زکوة په نیت سره ورکولو سره ذمه فارغه کیږی لیکن دا معامله خلافِ احتیاط ده. ﴿۱﴾ وهوالموفق

---

[بقیه حاشیه]...کښې د سکې انګریزې روپې یوه توله ګرځولې شوې ده. چه حقیقت ۱۱ نیمې ماشې ده. او د اصل تولې نه څلور رتې کمه ده. الخ (اوزان شرعیه ۱۰) پس د هر زمانې په تولو او رتو کښې فرق وي، او دغه شان ډیره نزدې زمانه کښې مختلف سیرونه رائج وو. مثلاً اکبری سیر ۲۵نیم تولې، شاه جهانی سیر اویا تولې، عالمګیرې سیر اوه اویا تولې، فرخ شاهی سیر ۸۴ تولې، انګریزی سیر ۸۰ تولې، قبائلې سیر ۱۰۸ تولې وغیره،نوځکه اوس د علماؤ رجحان دې وزن طرف ته دې کوم چه د اکابرین دیوبند تحقیق دې او په دې وجه فتوٰی هم دې باندې ده. (ازمرتب)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: قال فی التجنیس والولوالجیة السلطان الجائر اذا اخذ الصدقات قیل ان نوی بادائها الیه الصدقة علیه لا یؤمر بالاداء ثانیا لانه فقیر حقیقة ومنهم من قال الاحوط ان یفتی بالاداء ثانیا کما لو لم ینو لانعدام الاختیار الصحیح واذا لم ینو منهم من قال یؤمر بالاداء ثانیا وقال ابو جعفر لا لکون السلطان له ولایة الاخذ فیسقط عن ارباب الصدقة فان لم یضعها موضعها لا یبطل اخذه......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## ریډیو، ټی وی په حاجت اصلیه کښې داخل دی یا نه؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ریډیو ټی وي، ټیپ ریکارډ په حاجات اصلیه کښې داخل دی یا نه؟ په دې زکوة واجب دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.........۱۹۸۵ء۱۰۱۹۱

**الجواب:** د لهو او عیاشئ آلات په اصل حاجاتو کښې داخل نه دی. البته د دې په قیمت کښې زکوة فرض نه دې،صرف موجبِ د غِنادی.﴿۱﴾ او کوم خلق چه په حکومت یاسیاست کښې حصه اخلی هغوی د پاره به دا څیزونه په حاجات

---

(بقیه حاشیه) وبه یفتی، وهذا فی صدقات الاموال الظاهرة اما لو اخذ منه السلطان اموالا مصادرة ونوی اداء الزکاة الیه فعلی قول المشائخ المتاخرین یجوز والصحیح انه لا یجوز وبه یفتی لانه لیس للظالم ولایة اخذ الزکاة من الاموال الباطنة...... قلت وشمل ذلک مایاخذه المکاس لانه وان کان فی الاصل هو العاشر الذی ینصبه الامام لکن الیوم لا ینصب لاخذ الصدقات بل لسلب اموال الناس ظلما بدون حمایة فلا تسقط الزکاة باخذه کما صرح به فی البزازیة فاذا نوی التصدق علیه کان علی الخلاف المذکور.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲٦ مطلب فیما لو صادر السلطان رجلا فنوی بذلک اداء الزکاة الیه باب زکاة المال)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: وفسرها (ای الحاجة الاصلیة) فی شرح المجمع لابن الملک بما یدفع الهلاک عن الانسان تحقیقا او تقدیرا فالثانی کالدین والاول کالنفقة ودور السکنیٰ وآلات الحرب والثیاب المحتاج الیها لدفع الحر او البرد وکالآلات الحرفة وآثاث المنزل ودواب الرکوب وکتب العلم لاهلها...... وشرط ان یکون النصاب نامیا والنماء...... فی الشرع هو نوعان حقیقی وتقدیری فالحقیقی الزیادة بالتوالد والتناسل والتجارات والتقدیری تمکنه من الزیادة بکون المال فی یده او ید نائبه فلا زکوٰة علی من لم یتمکن منها فی ماله کمال الضمار الخ. (البحر الرائق ۲:۲۰٦ کتاب الزکاة)

اصلیه کښې شمار کیږی. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د سوارئ د پاره موټر، قالین، ریډیو، د دُکان فرنیچروغیره کښې زکوة نشته

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یو سړی سره د ژوند د ضرورت څیزونه مثلاً سورلئ دپاره موټر، کور کښې قالین، ریډیو او د دکان فرنیچر وغیره دی دې څیزونو کښې زکوة واجب دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حبیب الله اینډ کو کمیسټ پشاور ۱۵\۸\۱۹۷۴

**الجواب:** دې څیزونو کښې زکوة نشته دې ځکه چه دا مالو نه نامیه نه دی چه کله تجارت دپاره نه وی.

كما فى الهندية: ۱ :۱۸۳ ومنها فراغ المال عن حاجته الاصلية فليس فى دور السكنىٰ وثياب البدن واثاث المنازل ودواب الركوب وعبيد الخدمة وسلاح الاستعمال زكوٰة﴿۲﴾ انتهىٰ، وصرحوا ان المال النامى هو مال التجارة والسوائم والنقدان ﴿۳﴾. فافهم، وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال ابن نجيم: فغير مفيد لان كلامهم فى بيان ما هو من الحوائج الاصلية ولا شك ان الكتب لغير الاهل ليست منها وهو تقييد مفيد كما لا يخفىٰ قال ابن عابدين فى المنح: قوله وهو تقييد مفيد كما لا يخفىٰ قال فى النهر هذا غير سديد اذالكلام فى شرائط وجوب الزكاة التى منها الفراغ عن الحوائج الاصلية ومقتضى القيد وجوبها على غير الاهل لما انها ليست من الحوائج الاصلية فى حقهم الخ. (منحة الخالق على هامش البحر الرائق ۲:۲۰۶ كتاب الزكوٰة)

﴿۲﴾ (فتاوىٰ عالمگيرية ۱ :۱۷۲ كتاب الزكاة)

﴿۳﴾ قال الشامى: (نام ولو تقديراً) ...... وفى الشرع هو نوعان حقيقى وتقديرى فالحقيقى الزيادة بالتوالد والتناسل والتجارات والتقديرى تمكنه من الزيادة بكون المال فى يده او يد نائبه بحر. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۷ كتاب الزكاة)



## په زکوٰة کښې تاخیر مکروه دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرامائی چه دیو کال زکوة بل کال ته باقی پاتې شی او بیا بل کال ادا کړیشی نو شرعاً دیکښې څه حرج شته یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی نظیر بادشاه ټل کوهاټ...۱۲\صفر\۱۳۹۲ھ

**الجواب:** د زکوٰة په ادا کولو کښې تاخیر کول مکروه دی. ﴿۱﴾ البته په تاخیر سره ادا کولو ته قضا نشی وئیلې کیدې بلکه ادا به وي، وهو الموفق

## د زکوٰة په ادا کولو کښې تعجیل افضل دې تاخیر بهتر نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په رمضان کښې د فرض ادا کولو ثواب او یا چنده کیږی او بعضې خلق د رجب میاشت کښې د زکوة ورکولو او اخستلو کوشش کوی آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عبدالغفار منګوره سوات......۴شعبان ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** په رمضان کښې د زکوة ادا کولو سره اویا چنده ثواب حاصلیږی﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن الهمام: ما ذكر الفقيه ابو جعفر عن ابى حنيفة انه يكره ان يؤخرها من غير عذر. (فتح القدير ۲:۱۱۴ كتاب الزكاة)

وفى الهندية: وتجب على الفور عند تمام الحول حتى يأثم بتاخيره من غير عذر وفى رواية الرازى على التراخى حتى يأثم عند الموت والاول اصح كذا في التهذيب. (فتاوىٰ عالمگيرية ۱ :۱۷۰ كتاب الزكاة الباب الاول)

﴿۲﴾ قال العلامة على بن سلطان القارى: ومن ادى فريضة فيه بدنية او مالية كان كمن ادى سبعين فريضة فيما سواه اى من الاشهر وهذا فيما سوى الحرم اذحسناته عن مأة الف فى غيره. (مرقاة المفاتيح شرح المشكواة ۷:۲۳۷ كتاب الصوم الفصل الثالث)

البته په زکوة کښې تعجیل افضل دي قصداً عمداً تاخیر کول بهتر نه دي، ﴿۱﴾ نو په چا چه زکوة په رجب ۱۳۹۷ هـ کښې واجب الاداء کیدو والا وی که دا سړې په رمضان ۱۳۹۲ هـ کښې زکوة ورکړی نو ددې ثواب موندونکې به وی. وهوالموفق

## د صاحبِ مال زکوة پخپله د هغه په ذمه دې د بل چا په ذمه نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه عمر زید ته د کاروبار دپاره پیسې ورکړې د کال تیریدلو نه پس زید د خپلو مالو نو زکوة اداکوی لیکن عمر زکوة نه ورکوی حال دا چه هغه هم صاحب نصاب دې دې صورت کښې د عمر د مال زکوة د زید په ذمه دې یا صرف د خپل مال زکوة به ادا کوي؟ بینوا توجروا

المستفتی:حاجی رئیس خان عادل مارکیټ بنوں...۱۱۲\رمضان۲ ۱۴۰هـ

**الجواب:** که عمر زید ته دا رقم د قرض په طور سره ورکړې وی نو د قرض په مقدار زکوة په عمر باندې واجب دې. ﴿۲﴾ او د هغې نه د زیاتې آمدنئ زکوة په دزید په ذمه واجب دې، او که عمر دا رقم زید ته د مضاربت یا شرکت په طور سره ورکړې وی نو د هغې حکم دا دې چه عمر باندې ددې رقم په حصه آمدنئ باندې زکوة واجب دې. ﴿۳﴾ (ماخوذ از رد المحتار والهندية)...وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله فيأثم بتاخيرها) ظاهره الاثم بالتأخير ولو قل كيوم او يومين لانهم فسروا الفور باول اوقات الامكان وقد يقال المراد ان لا يؤخر الى العام القابل لما فى البدائع عن المنتقىٰ بالنون اذا لم يؤد حتى مضى حولان فقد اساء واثم. فتأمل. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۴ كتاب الزكاة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى: اعلم ان الديون عند الامام ثلاثة قوى ومتوسط وضعيف فتجب زكاتها اذا تم نصابا وحال الحول لكن لا فورا بل عند قبض اربعين درهما من الدين القوى كقرض وبدل مال تجارة فكلما قبض اربعين درهما يلزمه درهم. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۳۸ باب زكاة المال)

﴿۳﴾ قال الحصكفى: وان تعدد النصاب تجب اجماعا ......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## د غنی جوړیدلو وخت نه به قمری کال تیریدلو باندې زکوة واجبیږی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د رجب یعنی د زکوة په میاشت کښې ملازم شوم اوهره میاشته تر نه یو زر روپې بچت کیږي، په کال تیریدلو باندې ما سره دولس زره روپې جمع شوې اوس د زکوة څه مسئله ده؟بینواتوجروا

المستفتی:عبدالرشید یو، اې، ای.......۲۸شعبان ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** ته چه دکوم تاریخ نه غنی جوړ شوې ئې نو په هغه تاریخ باندې قمری کال تیریدو سره به ته زکوة ادا کوې که د کال په میځ کښې نور رقم حاصل شوې وی یا نه ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د پلار په مالونو کښې د بچو د پاره د اباحت او اجازتِ عامه په صورت کښې د زکوة وغیره مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یو سړی درې څلور بچی دی او دهغه په مال کښې عام طور سره تصرف کوي، تر دې چه هغه ځانته سائیکل او موټر سائیکل هم آخلی او پلار ته پته نه وی او نه پلار ته د مال حساب کتاب معلوم دې. او پلار هغوی ته دا هم وائی چه دا ستاسو مال دې ځنګه چه مو خوښه وی تصرف پکښې کوئ، آیا په هغوی باندې ددې به وجې سره د فریضه حج، قربانئ، زکوة احکامِ لازمیږئ یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی:نخبة الله بلوچستان....۱۲۶ګست ۱۹۷۵

---

(بقيه حاشيه)ويتراجعان بالحصص وبيانه فى الحاوى فان بلغ نصيب احدهما نصابا زكاه دون الآخر. قال الشامى: صورته ان يكون لهما مأة وثلاث وعشرون شاة لاحدهما الثلثان وللآخر الثلث فالواجب شاتان فيأخذ من كل منهما شاة فيرجع صاحب الثلثين بالثلثين من الشاة التى دفعها صاحب الثلث ويرجع صاحب الثلث بالثلث من شاة دفعها صاحب الثلثين الخ. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۸ قبيل مطلب فى وجوب الزكاة فى دين المرصد)

﴿۱﴾ وفى الهندية: ومنها حولان الحول على المال العبرة فى الزكاة للحول القمرى كذا فى القنية. (فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۱۷۵ كتاب الزكاة)

**الجواب:** محترم المقام د امت بر کاتکم السلام علیکم، واضحه دې وی چه په صورتِ مسئوله کښې د والد صاحب د طرفنه اباحت او اجازتِ عامه موجود دې تملیک نشته ﴿۱﴾ لعدم الـهبة وغیرهـا من اسباب الملـک. لهذا ددې اولاد دپاره حج کول او تصدق (خیرات) کول صحیح دی البته په دوی باندې فریضه نه لازمیږی. لعدم ملک الزاد ولعدم ملک النصاب. وهو الموفق

## د نصاب نه کم سره زر او څه رقم او د مهر مؤجل په صورت کښې خاوند باندې د زکوٰة مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی (۱) د زید سره پنځه تولو سروزرو زیوراتو او دوه سوه روپو نه زیات رقم دې آیا هغه به د کال تیریدلو نه پس د سروزرو او رقم دواړو نه زکوٰة ورکوی او که نه صرف د رقم نه؟ او سره زر کوم چه د نصاب نه کم دی ددې د زکوة څه حکم دې؟ (۲) په زید باندې د مهر حق باقی دې. په کال تیریدلو باندې به خاوند زکوة ادکوی یا ښځه؟ په دې صورت کښې خاوند د ښځې مقروض دې او د ښځې په قبضه کښې مال دې د هغې په باقاعدګۍ سره زکوة ادا کوی؟ بنیو اتوجروا

المستفتی: حاجی محمد مغل آباد راولپنډی صدر........ ۲۰۱۱۰۱۱۹۲۹

**الجواب:** (۱) افضل دادی چه د سرو زرو قیمت او نقد دواړو د حاصلِ جمع نه زکوة اداکړې. ﴿۲﴾ (۲) حق مهر په دینِ ضعیفه کښې داخل دې لهذا په ښځه

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: واطلق الملک فانصرف الی الکامل وهو المملوک رقبة ویداً.

(بحر الرائق ۲: ۲۰۳ کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ولو ضم احد النصابین الی الاخر حتی یؤدی کله من الذهب او من الفضة لابأس به لکن یجب ان یکون التقویم بما هو انفع للفقراء قدرا ورواجا والایؤدی من کل واحد ربع عشر کذا فی محیط السرخسی.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۷۹ الفصل الاول فی زکاة الذهب والفضة)



باندې د حق مهر زکوة نشته یعنی د وصول کولو نه مخکښې ﴿۱﴾ او په خاوند باندې خو قرضه ده نو هغه به د مهر په مقدار باندې زکوة نه ورکوی د مقدار مهر نه زیاتی که چرته نصاب ته رسیدلو نو زکوة به واجبیږی ګنې نه. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## که په پلارباندې د بچوقرضه وی نوددې قرض زکوة په چا واجب کیږی؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په پلار باندې د بچو قرضه ده لیکن دپلار طاقت نه وی چه هغه ئې ادا کړی او فارغ شی او دا بالغ بچې هم مطالبه نشی کولې یا پې د مطالبې خیال نه وی اوس به ددې رقم زکوة په بچو واجب وی یا په پلار؟ بینوا توجروا

المستفتی: حبیب الله (ر) کمانډر ایف سی خیر آباد پشاور ۲۰۱۹۱۱۹۲۹

**الجواب:** که ځامنو دا قرضه پلار ته معاف کړې وی او د مطالبې خیال ئې نه وی نو ددې زکوٰة په چا هم نشته. او که معاف کړې ئې نه وی نو ځامنو په ذمه به ددې زکوٰة واجب وی. ﴿۳﴾ وهو الموفق

## په یوولس تولو سروزرو کښې شریک پلار او بچو باندې د زکوة حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یو سړی څلور بچی دی او ټول واده کړی دی او یو ځائې اوسیږی د هغوی سره یوولس تولې سره

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: واما المرأة فلان مهرها علی الزوج دین ضعیف وقد استحق الزوج نصفه قبل القبض فلا زکاة علیها مالم یمض حول جدید بعد القبض للباقی تأمل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۴۱ قبیل باب العاشر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: فلا زکاة علی مکاتب ومدیون للعبد بقدر دینه فیزکی الزائدان بلغ نصابا. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۷،۸ کتاب الزکاة)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: ولو کان الدین علی مقر ملیٔ او...... فوصل الی ملکه لزم زکاة مامضی. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۰ کتاب الزکاة)

زردی لیکن د شلو زرو مقروض هم دی. د دوی متعلق به د زکوة څه حکم وي؟ بینوا توجروا

المستفتی حبیب الرحمان سیرگله مری.....۱۴۰۱/۸/۱۲ه

**الجواب:** که پلار او ځوی ددې سرو زرو په مشترکه طور سره مالکان وی نو په دې کښې زکوة فرض نه دې. لعدم السبب⟨۱⟩ او که ددې یواځې پلار مالك وی او قرض په پنځه واړو باندې وی نو په پلار باندې زکوة فرض دې⟨۲⟩ وهو الموفق

## د ځوئې په صاحب نصاب کیدلو سره پلار نه غنی کیږی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه پلار فقیر او ځوئې غنی دې د بچې په غنی کیدلو سره پلار غنی کیږی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عبیدالله ورانه ضلع کرك...۱۴/۱ صفر ۱۴۰۳ه

**الجواب:** د ځوئې په مالدارئ سره پلار نهٔ غنی نه کیږی. ⟨۳⟩ په دې مسئله کښې د چا هم اختلاف نشته که یو ځائې او سیږی او که یواځې یواځې، وهو الموفق

## د زکوة د رقم ورکیدلو صورت کښې په دویم ځل د ادائیگئ حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوسړې دخپلې سرمائې نه دکال تیریدل نه پس د زکوة پیسې جدا کړې او مستحقینو ته د ورکولو

⟨۱⟩ قال العلامة الکاسانی: ولان سبب وجوب الزکاة ملک النصاب.
(بدائع الصنائع ۲:۸۳ شرائط فرضیة الزکاة کتاب الزکاة)

⟨۲⟩ قال العلامة ابن الهمام: الزکاة واجبة علی الحر العاقل البالغ المسلم اذا ملک نصابا ملکا تاما وحال علیه الحول. (فتح القدیر ۲:۱۱۲ کتاب الزکاة)

⟨۳⟩ وفی الهندیة: ویجوز صرفها الی الاب المعسر وان کان ابنه موسرا کذا فی شرح الطحاوی. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۸۹ الباب السابع فی المصارف)



دپاره ئې په جیب کښې کیښودې دې دوران کښې ترې نه چا جیب اووهلو او ده ته پته هم اونه لګیدله اوس به دا سړې په دویم ځل زکوة اداکوی او که نه دوجوب زکوة نه فارغ شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: فیض الوهاب اضاخیل نوشهره.....۲۷/۹/۱۹۸۸

**الجواب:** دمالک نه د هلاکت په صورت کښې دا زکوة په خپل حالت واپس شو⟨۱⟩ البته که د عامل (د زکوة چیئرمین) نه ورک شي، یا هلاک شی نو د مالکانو ذمې فارغ دی. (هندیه). ⟨۲⟩ وهو الموفق:

## د زکوة وکیل نه غلا کیدلو صورت کښې مالك د پاره په دویم ځل د زکوة اداکولو مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې بآره کښې څه فرمائی چه یو سړی چا ته د زکوة مال ورکړو چه دا په فقیرانو کښې تقسیم کړه هغه د زکوة مال ددې سړی نه غلا شو یا ترې نه جیب تراش اووهلو نو آیا په مالک باندې دا زکوة دوباره ورکول لازمی دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: غلام احمد عفی عنه

**الجواب:** آو! په مالک باندې ددې زکوة دوباره ادا کول لازمی دی ځکه چه د زکوة په اداکولو کښې اګر چه نیابت جائزدې (لما فی الدر المختار: العبادة المالية

⟨۱⟩ قال العلامة الطاهر بن عبد الرشید البخاری: رجل عزل زکوة ماله ووضعها فی ناحیة بیته فسرقها سارق لا یقطع یده للشبهة وعلیه ان یزکیها.
(خلاصه الفتاویٰ ۱:۲۳۸ قبل الفصل السادس کتاب الزکاة)
وقال ابن عابدین: فلو ضاعت لا تسقط عنه الزکاة ولو مات کان میراثا عنه بخلاف ما اذا ضاعت فی ید الساعی لان یده کید الفقراء. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۲ کتاب الزکاة)

⟨۲⟩ وفی الهندیة: ولو هلک المال فی ید العامل او ضاع سقط حقه واجزأ عن الزکاة عن المؤدین. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۸۸ الباب السابع فی المصارف)

کز کوٰة و کفارة تقبل النیابة عن المکلف مطلقا عند القدرة والعجز (کتاب الحج)

﴿۱﴾ لیکن د ذمې فراغت په نیت سره اداکولو باندې حاصلیږی، برابره خبره ده چه اصالة وی یا وکالة وی چه هغه دلته اونه موندلې شو.

بخلاف ما اذا هلک عند الساعی والعامل لانه وکیل الفقراء دون الملاک، فی الدرالمختار او مقارنته بعزل ما وجب کله او بعضه ولا یخرج عن العهدة بالعزل بل بالاداء الی الفقراء. قال الشامی: قوله لا یخرج عن العهدة بالعزل فلو ضاعت لا تسقط عنه الزکوٰة ولومات کان میراثا عنه بخلاف ما اذا ضاعت فی ید الساعی لان یده کید الفقراء (ردالمحتار ۲:۱۵) ﴿۲﴾ قلت وید الوکیل ید الموکل فافترقتا. وهوالموفق

## د زکوة په اداکولو کښې به د موجوده ښار قیمت معتبر وی.

**سوال:** علمائې دین دې مئلې باره څه فرمائې چه یو تاجر د پیښور نه په دوه سوه روپې د ګوړې بوجې راوړی او دلته په کوهاټ کښې ئې په ۲۷۰ روپې خرڅوې، اوس د رجب میاشت راغله لیکن بوجئ لا خرڅه شوې نه ده. نو زکوة به د دوه سوو روپو په حساب سره ورکوی یا د دوه سوه اویا روپو (۲۷۰) په حساب سره؟ بینوا توجروا

المستفتی: شاه جهان ملنګ کرک ضلع کوهاټ.....۱۲رجب ۱۳۹۷ ھ

**الجواب:** د زکوة په مسئله کښې به د هغه ښار قیمت معتبر وی په کوم کښې چه دا مال موجود وی. (کما فی شرح التنویر ۲:۳۰ ویقوم فی البلد الذی المـــال فیه ﴿۳﴾ وهوالموفق

## د تکمیل نصاب وخت نه به حولانِ حول معتبر وي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه د یوې ښځې سره

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲۵۷ باب الحج عن الغیر)

﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۱۲ کتاب الزکاة)

﴿۳﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲۴ باب زکاة الغنم)



تقریباً اووه ۷ تولې سره زر دواده په وخت کښې موجود وو، د یو کال تیریدلو نه درې څلور میاشتې پس ورته د دوه تولو یو کالې بل ملاؤ شو. اوس د زکوة اداکولو دپاره به د واده نه حولانِ حول معتبر وی او که نه د آخرنی کالې ملاویدلو نه پس به معتبر وي؟ بینواً توجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** که ددې ښځې سره ددې سروزرو نه علاوه سپین زر او روپې نه وی نو حولانِ حول به د اخرنی کالې ملاویدلو د وخت نه معتبر وی. (لتحقق الغنا عندها لا قبلها ﴿۱﴾ وهوالموفق

## حاجاتِ اصلیه کښې په نه لګولې شوې رقم باندې به باقائده زکوة واجب وي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یو مهاجر سره په پاکستان کښې دوه لاکهه روپئ موجود دی. که دا سړې په دې باندې زمکه واخلی کور پرې جوړ کړی نو دا دوه لاکهه روپې په هغې باندې خرچ کیږی لیکن هغه تر اوسه پورې کور نه دې جوړ کړې. که په دې روپو باندې پوره کال تیرشی نو دیکښې به زکوة واجب وی، یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالله وزیر مارکیټ میران شاه.........۱۸شعبان ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** داکثر و فقهاؤ په نزد به دې سړی باندې زکوة واجب کیږي، (ویؤیده ما قالوا زائد عن الحوائج الاصلیة ولم یقولوا زائد عن قیمة الحوائج الاصلیة وهوالموفق

## د زکوة پیسې د مقروض په قرضه کښې د ورکولو مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړی ته د قرضې

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: قوله لحولانه علیه ای لان حولان الحول علی النصاب شرط لکونه سببا وهذا علة للنسبة وسمی الحول حولا لان الاحوال تتحول فیه او لانه یتحول من فصل الی فصل من فصوله الاربع.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۵ مطلب الفرق بین السبب والشرط والعلة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: فی المعراج فی فصل زکاة...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

ضرورت وو. ما د يو بل کس په نوم خط ورکړو د هغه نه ئې قرضه واخستله، بيا ورستو ئې کاروبار هم خراب شو. اوس ورسره د قرضې اداکولو دپاره رقم هم نشته اوس که څه دزکوة پيسې ددې مقروض په قرضه کښې ادا کړم نو آيا زکوة به ادا شي؟ بينوا توجروا

المسفتی:ميان سراج الدين نوشهره صدر.....۱۳\۱۱رجب ۱۳۹۳ھ

**الجواب:** نه ددې مقروض (ديواليه) قرض دهغه د حکم نه پس د مالِ زکوة نه ادا کولې شي يعنې ستا زکوة به هم ادا شی او دهغه به د قرضې نه ذمه هم فارغ شی. کما فی رد المحتار ۱:۲۰۲ ولو قضٰی دين الفقير بزكوٰة ماله ان كان بامره يجوز وان كان بغير امره لا يجوز وسقط الدين ﴿۱﴾وهوالموفق

## په مقروض باندې د قرضې زکوة واجب نه دې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مثلاً زيد د کور جوړولو دپاره د حکومت نه قرضه حاصله کړه، او په څه وجې سره ئې تعمير شروع نه کړو. اوس په دې قرضه باندې کال تير شو، آيا ددې قرض په پيسو باندې زکوة ادا کول واجب دي؟ بينوا توجروا

المستفتی:مشتاق احمد صو بائی اسمبلی صوبه سرحد.........۲\۵\۱۹۹۱

**الجواب:** ته چه په کوم تاريخ باندې باقاعده زکوة ادا کوی نو هغه وخت کښې

(بقيه حاشيه) العروض ان الزكاة تجب فی النقد كيفما امسكه للنماء او للنفقة وكذا فی البدائع فی بحث النماء التقديری.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۷ مطلب فی زكاة ثمن المبيع كتاب الزكاة)

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۸ باب المصرف وهكذا فی فتاویٰ عالمگيرية ۱:۱۹۰ الباب السابع فی المصارف)



دا قرضه او نورې قرضې د زکوة نه مستثنا کړه. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د قرض زکوة په مقروض نشته قرض ورکونکې باندې دې.

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی ! (۱) که يو سړې د چا نه قرضه واخلی او دا پيسې ورسره ټول کار پرتې وی او د واپس کولو طاقت ئې هم لری ليکن هغه په دې باندې کاروبار کوی اوس به زکوة په چا واجب وي؟ (۲) دوه رونړه په کاروبارکښې شريک او د تقسيم نه پس غټ رور باندې ورکوټی رور ته شل زره روپې ادا کول پريو تل ليکن په پوره کال کښې ئې دا پيسې ادا نکړې او په هغې ئې کاروبار کولو نو اوس به زکوة په چا واجب وي؟ بينوا توجروا

المستفتی:محمد انور صوابی...۱۰\۱۱ذی القعده ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** (۱) دقرض په مقدار زکوة د قرض اخستونکی نه ساقط دې، ﴿۲﴾ او په قرض ورکونکی باندې فرض دی. (شامی، بحر، هنديه) (۲) په صورت مسئوله کښې به ددې رقم زکوة په دې ورکوټی رور باندې فرض وی په غټ رور باندې نه. (شامي، بحر، هنديه) ﴿۳﴾وهوالموفق

## مقروض ته په زکوة کښې قرضه پريخودلو سره زکوة نه ادا کيږي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که په يو سړی باندې

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: فلازكاة علی مكاتب ومديون للعبد بقدر دينه فيزكی الزائد ان بلغ نصابا. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۷،۸ كتاب الزكاة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفی: ومديون للعبد بقدر دينه فيزكی الزائدان بلغ نصابا (قوله بقدر دينه) متعلق بقوله فلا زكاة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۸ مطلب فی زكاة ثمن المبيع وفاء كتاب الزكاة)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفی: ولوكان الدين علی مقر ملئی ...... فوصل الی ملكه لزم زكاة ما مضی.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۰ مطلب فی زكاة ثمن المبيع وفاء كتاب الزكاة)

ځما قرضه وی او د اداکولو طاقت ئې نه لری او د شرم نه دا هم نشی وئیلې چه قرض راته په زکوة کښې پریږده، لهذا که څه ورته پټپله باندې قرضه په زکوة کښې پریږدم نو دا زکوة به ادا شی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی:نظیر باد شاه کوهاټ.....۲ صفر ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** په قرضه پریخودلو سره زکوة نه ادا کیږي، لهذا د قارض دپاره ضروری ده چه مخکښې مقروض ته زکوة ورکړی او د قبض کولو نه پس ئې ترې نه په خپله قرضه کښې وصول کړی. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د بینک په زکوة فنډ کښې د نفع نقصان په بنیاد باندې د زیاتی حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په آزاد کشمیر کښې هم دپاکستان پشان زکوة وصول کیږی او تقسیم کیږی چه کله داپیسې بینکونو کښې د نفع نقصان په بنیاد باندې جمع کیږی نو په هغې باندې نفع راځی نو اوس دا نفع د زکوة حصه ده که د مالکانو ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: سردارمحمد ابراهیم خان

چیف ایډمنسټریټر زکوة مظفر آباد کشمیر ۹۱۲۱۱۹۷۲

**الجواب:** دا حقیقت دې چه په بینکونو کښې د ارباب الاموال مالونه مخلوط کینبودلې کیږی، مسلم، غیرمسلم، باسود، بلا سود، زکوة او غیر زکوة هیڅ فرق نه وی البته په هغې کښې کاغذی او اعتباری فرق وی نو چه په کاغذاتو کښې کله د زکوة متعلق کاروائی کیږی نو د هغه وخت نه دا زکوة ګویا حکومت جدا کړو او وصول ئې کړو، د هغې نه پس چه پکښې کوم زیاتې

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: واعلم ان اداء الدین عن الدین والعین عن العین وعن الدین یجوز واداء الدین عن العین وعن دین سیقبض لا یجوز وحیلة الجواز ان یعطی مدیونه الفقیر زکاته ثم یأخذها عن دینه قال فی الشامیة (قوله واعلم) الثانیة اداء دین عن دین سیقبض کما تقدم عن البحر وهو مالو ابرأ الفقیر عن بعض النصاب ناویا به الاداء عن الباقی. (الدر المختار مع ردالمحتار ۲:۱۳ کتاب الزکاة)



کیږی هغه به دبیت المال او فقیرانو په حق کښې وی نه داچه د ارباب الاموال په حق کښې «ونظیره ابل الزکوة والاضحیة اذ ولدت﴿۱﴾ فافهم، وهوالموفق.

## د بینک د زکوة اخستلو طریقه د نه صحیح کیدلو په صورت کښې پخپله د ادائیګئ طریقه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید په بینک کښې رقم جمع کړو. بینک والؤ د سود پیسې په هغې کښې شاملې کړې بینک د هغې رقم نه یو کال پس زکوة هم لرې کړو او زید وائی چه څه به زکوة پخپله دوباره ادا کوم ځکه چه حکومت د زکوة رقم په صحیح مقصد کښې ئې نه خرچ کوی. اوس به ددې دویم ځل زکوة ادا کولو څه طریقه اختیارولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی:محمد شفیع راولپنډی......۱۲ ربع الثانی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** بینک کښې د جمع شوی رقم نه حکومت په زور باندې زکوة جداکوی او دهغوی عمله د بې علمئ یا بې دینئ په وجې سره دا زکوة باقاعده په مصارفو باندې خرچ کولو نه قاصره ده. نو افضل داده چه مالکان باقاعده زکوة ادا کړی. ﴿۲﴾ او کټوتی په سودی رقم کښې شمار

﴿۱﴾ مطلب دادې چه کله حکومت د بینک نه دزکوة رقم په کهاته کښې اولیکو نو چه اوس پرې کومه اضافه او نفع راځی هغه به په فقیرانو کښې تقسیمیږی ځکه چه په بینک کښې د جدا کیدلو په صورت کښې د مالک د ملکیت نه دا پیسې وتلې وې مثلاً عامل چه په زکوة کښې اوښان وغیره وصول کړی نو د شاهی خزانې په مد زکوة کښې به جمع کیږی دې زمانه کښې که د هغې بچې پیدا شو نو هغه به د صدقې حسا بیږی هم دغه شان دا هم دی مثلاً د قربانئ دپاره ئې څاروې واخستلو او د ذبحه کولو نه مخکښې ئې بچې پیدا شو نو د قربانئ د تعین په وجه سره به د هغې بچې هم ذبحه کولې شی یا به صدقه کولې شی. قال الحصکفی : ولدت الاضحیة ولداً قبل الذبح یذبح الولد معها وعند بعضهم یتصدق به بلا ذبح. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۵:۲۲۷ باب الاضحیة)

﴿۲﴾ قال العلامة الکاسانی: واما سلاطین زماننا الذین اذا اخذوا الصدقات والعشور والخراج لا یضعونها مواضعها فهل تسقط هذه الحقوق عن اربابها؟ اختلف المشائخ فیه ذکر الفقیه ابو جعفر الهندوانی: انه یسقط ذلک کله وان......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

کړئ. مثلاً که مالکانو ته اووه نیمې روپې په سلو پسې ملاویږي نو دا اوګڼړئ چه هغوی ته پینځه روپې سود ملاؤ شوې دي او دوه نیمې روپئ حکومت کټوی کړې ده. وهو الموفق

## تر اوسه د حکومت نظام زکوة صحیح اوباقاعده دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دینی مدرسو ته د حکومت د طرفنه کوم زکوة ملاویږي د هغې اخستل شرعاً څنګه دي؟ چه کله نظام د شرعی اصولو مطابق نه دې نو آیا دا زکوة اخستل به د دغه غلط نظام تائید نه وي؟ بینوا توجروا

المسفتی: مولانا نثار الله باچا اضاخیل بالا نوشهره......۹۱۱۱۱۱۹۷۵

**الجواب:** تر اوسه پورې د حکومت د لیک او عمل مطابق نظامِ زکوة صحیح دې دې ته نظام زکوة وئیل غلط نه دی. د منیجرانو او کار کونکو د معاملاتو په وجې سره دا غیر اسلامی ګرځول بې قاعدې کار دې. وهو الموفق

## په بینکونو کښې جمع رقمونه سرکاری طور سره د زکوة وصولی او د تقسیم کولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه تیر کال نه په بینکونو کښې سرکاری طورسره د زکوة د وصول کولو قانون نافذ دې چه د هغې مطابق حکومت په سیونګ بینکونو کښې د جمع شوی رقمونو زکوة په یو خاص تاریخ باندې کټ کوی. د بعضې حضراتو خیال دې چه په دې طریقې سره زکوة نه اداکیږي هغوی ددې یو څو وجوهات بیانوی.(۱) چه ترڅو حکومت غیر اسلامی کارونه ختم نکړي او د غیرشرعی کارونو سر پرستی پرې نږدي ترهغې پورې حکومت ته د زکوة وصولولو حق نه حاصلیږي پس په دې حالاتو

(بقیه حاشیه) کانوا لا یضعونها فی اهلها لان حق الاخذ لهم فیسقط عنا بأخذهم ثم انهما ان لم یضعوها مواضعها فالوبال علیهم.
بدائع الصنائع ۲:۱۳۷ فصل واما شرط ولایة الاخذ کتاب الزکاة)



کښې دحکومت زکوة کټ کول صحیح نه دی.(۲) د زکوة انتظامیه چه کومه تشکیل کړې شوې ده. په هغې کښې مسلمانان او غیرمسلمه ټول شامل دي، لهذا داسې انتظامیه د زکوة وصول کولو مجاز نه ده. (۳) شرعاً په بچو او لیونو باندې زکوة نشته دغسې څوک چه قرضدار وی او ود قرض لرې کولو نه پس چه د نصاب په اندازه باندې پیسې نه باقی کیږي په هغې هم زکوة نشته او حکومت بغیر امتیازه د ټولود کهاتې نه زکوة کټ کوی. (۴) اسلامی حکومت ته صرف د اموالِ ظاهره د زکوة اخستلو حق دې الغرض ددې مسئلې په باره کښې ستاسو صاحبانو رائې څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا سلیم الله خان صاحب
ناظم اعلی وفاق المدارس العربیه (کراچي) ۱۴۰۱/۱۲/۱۳

**الجواب:** واضحه دې وی چه زمونږ په نزد د ا مخالفین په حقه ده څکه چه دا معهود رقم په اموالِ ظاهره کښې داخلیدلې شي(۱) او د مقروض د طرفنه اجازت او توکیل هم حاصلیدلې شی لیکن د ارباب حکومت د بې علمئ او بې دینئ او علماؤ باندې د بې اعتمادئ په وجې سره د هغوی نه دا توقع نشته چه د شریعت مطابق اخستل او خرچ کول د زکوة اوکړي، پس حکومت ته د وصولِ زکوة فتوی ورکول په اضاعتِ زکوة کښې ناجائز معاونت دې. وهو الموفق

## د پاکستانی حکومت په مروجه نظام زکوة باندې اعتراض او دا د شرک مترادف ګرځولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په ۱۳ جولائی کراچی کښې د پاکستان چټاتی کانفرنس کنوینر مختار علی د زکوة په مروجه نظام حکومت باندې صفا اعتراض اوکړو وئیل ئې (۱) چه مروجه نظام کمیټې برائې زکوة نه د زکوة تقسیمولو حقدار ده او نه د وصول کولو حقداره ده. دا حقوق الله په حقوق العباد کښې د بدلولو مترادف دی. (۲) دا عمل شرک یا مترادف د شرک دې (۳) او موجود حکومت په صحیح معنو کښې اسلامی

(۱) قال العلامة ابن عابدین: والاموال الظاهرة هی التی یاخذ زکاتها الامام وهی السوائم وما فیه العشر والخراج وما یمر به علی العاشر. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۲۶ مطلب فیما لو صادر السلطان رجلا فنوی بذلک اداء الزکاة کتاب الزکاة)

رياست نه دي، ددې قسم خبرو څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي:خليل انورادينه صوابى........ ۲۷ شوال۱۴۰۲/۱ھ

**الجواب:** (۱) اسلامى حکومت دا اموالِ ظاهره نه د زکوة اخستلو مستحق دې (بدائع وغيره) ﴿۱﴾ او د حقوق تبديلى په دې موجوده نظام تقسيم کښې نشته بلکه ددې معترض په نظام مجِوزه کښې مظنون دې،او د حقوقو په ذواتو کښې تبديلى نشى راتللې، البته د احکاماتو په اجراء کښې راتللې شى.(۲) دا خو د ساخته شرک دې. (۳) په پاکستان کښې د مسلمانانو حکومت دې خو اسلامى حکومت نشته او نه پکښې تر اوسه پورې د اسلامى نظام اجراء شوې ده. وهوالموفق

## د کاغذى نوټ په ذريعې سره زکوة ادا کيږي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائى چه ما يو فقير ته د سلو روپو يو نوټ په زکوة کښې ورکړو د قبضه کولو نه پس هغه نوټ دهغه نه ورک شو يا اوسوزيدلو نودا خو مال نه دې رسيددې او سند دې آيا په دې سره ځما زکوة اداشو؟ بينوا توجروا

المستفتي:مولانا فضل غنى ډوميل بنوں....... ۱۰/۱۳/۱۹۸۷ء

**الجواب:** نوټ ثمنِ عرفى اوثمنِ رائج دې د فلوسو پشان نوځنګه چه په دې

---

﴿۱﴾ قال العلامة الكاسانى: اما الظاهر فللامام ونوابه وهم المصدقون من السعادة والعشار ولاية الاخذ والساعى هو الذى يسعى فى القبائل ليأخذ صدقة المواشى فى اماكنها، والعاشر هو الذى يأخذ الصدقة من التاجر الذى يمر عليه والمصدق اسم جنس، والدليل على ان للامام ولاية الأخذ فى المواشى والاموال الظاهرة الكتاب، والسنة، والاجماع واشارة الكتاب. (بدائع الصنائع ۲:۱۳۵ فصل واما بيان من له المطالبة باداء الواجب فى السوائم والاموال الظاهرة كتاب الزكوٰة)



غناحاصليږى دغه شان پرې زکوة هم اداکيږى په جنس سره د تبادلې ضرورت نشته. **لان الشخص الفقير كما يصير غنيا بالنوت لاستحقاقه الفضة فى خزانة الحكومة (سټيټ بينک) فكذلك الفقير يكون مالكا لهذا القدر من الفضة فى خزانة الحكومة بقبض النوت فى الزكاة فافهم** ﴿۱﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ دا مسئله د علماؤ په مينځ کښې مختلف فيه پاتې شوې ده. چه د کاغذى نوټ حيثيت دثمنِ دې يامحض سند دې. دحضرت تهانوي، مفتى شفيع صاحب رحمهما الله او نورو ډيروعلماؤ رائې ده چه ددې حيثيت محض د وثيقې اودقرض د سند دې اوګويا ددې خبرې کاغذى ثبوت دې چه د روپو والا دومره مال د حکومت په ذمه قرض دې.

**(کما فى امداد الفتاوىٰ ۲:۵ کتاب الزکوٰة والصدقات، وآلات جديده کے شرعى احکام ۱۹۷)**

اوحضرت مولانا عبدالحَى لکهنوى رحمه الله د بعضې فتاوى نه معلوميږى چه د هغوى ديته دقيمت اومستقل مال حيثيت ورکوى مثلاً په کتاب البيع مسئله نمبر ۲۴ کښې فرمائي! نوټ اګرچه خِلقةً ثمن نه دې مګرعرفاً د ثمن په حکم کښې دې بلکه عينِ ثمن ګڼړلې کيږى په دې وجې سره که څوک د سلو روپو نوټ هلاک کړى نو اصل مالک دسلو روپو تاوان اوچتوي، الخ (مجموعة الفتاوى ۲:۱۳۶ کتاب البيوع)

چونکه په دې زمانه کښې د کاغذى نوټونو استعمال مروج دې نو د اکثرو علماؤ په نزد دا مروجه کرنسى نوټ د ثمن عرفي، فلوس نافقه او مستقل مال په حکم کښې دى.او هم داراجح دى حضرت مفتى اعظم شيخ الحديث دامت برکاته په منهاج السنن شرح جامع للترمذى ۳: ۱۲۷ باب ما جاء فى زکوٰة الذهب،، کښې فرمائى:

**اختلف الاكابر فى حقيقة النوت قال بعضهم انه قبالة الحوالة وليس بثمن فلا تتأدىٰ به الزكوٰة مالم يستبدله الفقير بالجنس، وقال بعضهم هو ثمن رائج لانه يتوسل به الى حصول الاجناس مثل الدراهم المغلوبة الفضة والفلوس، وكذا لا يقصد به عند الاخذ والاعطاء الا ما يقصد عند اخذا لدراهم الرائجة والفلوس واعطائها ولا يخطر ببال احد ما يقصد من الحوالة والقبالة فافهم. واعلم انه لما كفى تملكه لوجوب الزكوٰة كفىٰ تمليكه لفراغ الذمة ايضا كما لا يخفىٰ، قلت ويؤيد كونه اثمانا رائجة ان المتعارف ان من اقترض عدداً من النوت لا يؤدى المقرض الا هذا العدد وان تفاوتت الدراهم فى قدر الفضة. ......(ازمرتب)**

## د کاغذی کرنسۍ په ادائیګۍ سره زکوة ادا کیږي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په امداد المفتیین ص۴۵ کښې دی په نوټ سره زکوة نه اداکیږی ځکه چه نوټ پخپله مال نه دی بلکه د مال رسید دې لکه چه د بینک چیک وی الخ. مګر بعضې علماء کرام فرمائی چه نوټ هم د سپینو زرو پشان دې. تاسو خپله رائې اولیکئ مهربانی به وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ملا عبید الله تحصیل دکی بلوچستان..... ۳ ذی قعده ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** نوټ د فلوسو پشان ثمنِ عرفی دې لکه څنګه چه په دې کاغذی نوټونو سره مالدار توب او وجوب د زکوة متحقق کیږی نودغه شان ئې په ادائیګۍ سره ذمه هم فارغه کیږی﴿۱﴾ وفی کونها حوالة او قبالة اشکالات لاتنحل، وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة عبد الرحمن الجزیری: جمهور الفقهاء یرون وجوب الزکاة فی الاوراق المالیة (البنکنوت) لانها حلت محل الذهب والفضة فی التعامل ویمکن صرفها بالفضة بدون عسر، فلیس من المعقول ان یکون لدی الناس ثروة من الاوراق المالیة، ویمکنهم صرف نصاب الزکاة منها بالفضة، ولا یخرجون منها زکاة ولذا اجمع فقهاء ثلاثة من الائمة علی وجوب الزکاة فیها. (الفقه علی المذاهب الاربعة ۱:۵۲۸ زکوة الاوراق المالیة)

وقال الدکتور وهبة الزحیلی: (الاوراق النقدیة والنقود المالیة) ان هذا النظام ظهر حدیثا بعد الحرب العالمیة الاولیٰ فلم یتکلم فیه فقهاء نا القدامی وقد بحث فقهاء العصر حکم زکوٰة هذه النقود الورقیة فقرر واوجوب الزکاة فیها عند جمهور الفقهاء (الحنفیة، والمالکیة، والشافعیة) لان هذه النقود اما بمثابة دین قوی علی خزانة الدولة او سندات دین او حوالة مصرفیة بقیمتها دینا علی المصرف ...... والحق وجوب الزکاة فیها لانها اصبحت هی اثمان الاشیاء، وامتنع التعامل بالذهب ولم تسمح ای دولة باخذ الرصید المقابل لای فئة من اوراق التعامل ولا یصح قیاس هذه النقود علی الدین، لان هذا الدین لا ینتفع به صاحبه وهو الدائن ولم یوجب الفقهاء زکاته الا بعد قبضه ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## مروجه کرنسی ثمن عرفی دې لهٰذا په دې سره زکوة ادا کیږی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په زکوة کښې کاغذی نوټ ورکولې شی کوم چه د اصل مال قائم مقام دې یا د هغې رسید دې آیا په دې سره زکوة ادا کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی رحمان الدین شرینګل ضلع دیر..... ۳۱۸۱۱۹۷۷

**الجواب:** د نوټ متعلق اکابر مختلف رائې والا دی بعض دیته حواله یا رسید وائی او بعضې ئې ثمنِ عرفی ګرځوی.

وهو الراجح لانه المتعارف والمتفاهم ولان فی عکسه اشکالات لا تنحل کما فی الصورة القرض والودیعة اذا غلا السعر ولانه کما حصل به الغناء لکان الاداء به ایضا حاصلا فافهم وتدبر﴿۱﴾. وهوالموفق

(بقیه حاشیه) لاحتمال عدم القبض، اما هذه النقود فینتفع بها حاملها فعلا کما ینفع بالذهب الذی اعتبر ثمنا للاشیاء وهو یحوزها فعلا فلا یصح القول بوجود اختلاف فی زکاة هذه النقود والقول بعدم الزکاة فیها لا شک بانه اجتهاد خطأ الخ.

(الفقه الاسلامی وادلته ۳:۱۸۲۴ زکاة النقود)

وقال الشیخ المفتی الاعظم محمد فرید: اختلف الاکابر فی حقیقة النوت، قال بعضهم انه قبالة الحوالة ولیس بثمن فلاتتأدی به الزکاة مالم یستبدله الفقیر بالجنس وقال بعضهم هو ثمن رائج لانه یتوسل به الی حصول الاجناس مثل الدراهم المغلوبة الفضة والفلوس وکذا لا یقصد به عند الاخذ والاعطاء الا ما یقصد عند اخذ الدراهم الرائجة والفلوس واعطائها ولا یخطر ببال احد ما یقصد من الحوالة والقبالة فافهم، واعلم انه لما کفی تملکه لوجوب الزکاة کفی تملیکه لفراغ الذمة ایضا کما لا یخفیٰ، قلت ویؤید کونه اثمانا رائجة ان المتعارف ان من اقترض عدداً من النوت لا یؤدی المقرض الا هذا العدد وان تفاوتت الدراهم فی قدر الفضة. (منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۳:۱۲۷ زکوٰه الذهب الورق)

﴿۱﴾ مر تفصیله قریباً فلیراجع.

## شیعه ته د زکوة ورکولو یا د عامل جوړولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه کښې څو کورونه د اهل سنت دی او عام طور سره دلته شیعه ګان آباد دی په دې علاقه کښې د زکوة وصول کولو د پاره شیعه چیئرمینان مقرر دی هغوی زمونږ نه زکوة وصول کوی او حکومت ته ئې ورکوی، او بیا ترې نه اهلِ تشیع ته هم ورکوی که مونږ ورکولو نه انکار او کړو نو هغوی ئې په زور اخلي، اوس سوال دادې چه دې صورت کښې زمونږ زکوة ادا کیږی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ملک عبدالله کا هګره ډی آئی خان.... ۱۵\۳۱\۱۹۸۷ء

**الجواب:** شیعه ګان عام طور سره د اسلام نه خارج دی لهذا هغوی د زکوة چئرمینان (مشران) مقرر کول زکوة ضائع کول دی. ﴿۱﴾ ځکه چه عامل ته هم د زکوة نه حصه ورکولې کیږی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د زکوٰة نه بچ کیدلو د پاره ځانته شیعه او جعفری وئیل اولیکل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو صحیح العقیده سنی مسلمان بغیر د څه زور زیاتې نه په هوش او حواس کښې خالص د حکومتی زکوة کټ کولو نه د بچ کیدو دپاره په بینک کښې خپل ځان شیعه یا جعفری لیکی. او په فارم باندې د شیعه مجتهد دستخط هم وی او د ګواهانو دستخطې پرې هم وی ددې سړی څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عطاء محمد شاه کند یا شریف میاں والی.........۲۴\۶\۱۱۹۸۸

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ویشترط فی العامل ان یکون حراً مسلماً غیر هاشمی کذا فی البحر ناقلا عن الغایة. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۸۳ الباب الرابع فیمن یمر علی العاشر)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: واما اهل الذمة فلا یجوز صرف الزکاة الیهم بالاتفاق. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۸۸ الباب السابع فی المصارف)



**الجواب:** (۱) کوم کس چه د اسلام د دعوی باوجود د ضرویاتِ دین نه منکر وی نو هغه ته مرتد وئیلې کیږی او هم په دې وجه باندې شیعه ګان کافران دی. ﴿۱﴾ (۱) او کوم کس چه د شیعه کیدلو دعوی کوی نو که اعتقاداً وی او که په ټوقو سره وي، ﴿۲﴾ هغه هم کافر دې. وهو الموفق

## ګاډې که د تجارت د پاره نه وی نو د هغې په آمدنئ کښې به زکوٰة واجب وی په قیمت کښې نه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په کوم رقم باندې کال نه وی تیر شوې او په هغې باندې د کرایه او آمدنئ دپاره ګاډی واخستلې شو نو دې ګاډی کښې به زکوة څنګه ادا کولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی: رحمت الله ماړی پور کراچي

**الجواب:** ددې ګاډی په قیمت کښې زکوة واجب نه دې البته د حاصلاتو او آمدنئ نه به باقاعده زکوة ادا کولې شی. ﴿۳﴾ وهو الموفق

## د دوکان په عمارت او فرنیچر باندې زکوة واجب نه دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ما تیر کال یو میډیکل

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: والکفر شرعاً تکذیبه ﷺ فی شئی مما جاء به من الدین ضرورة. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳:۳۱۱ باب المرتد)

﴿۲﴾ قال القاری: وفی المحیط وفتاویٰ الصغریٰ ایضا: من لقن غیره کلمة الکفر لیتکلم بها کفر الملقن وان کان علی وجه اللعب والضحک.

(شرح فقه الاکبر ۱۸۲ فصل فی الکفر صریحا و کنایة)

وفی الهندیة: الهازل او المستهزئ اذا تکلم بکفر استخفافا واستهزاء ومزاحاً یکون کفرا عندالکل وان کان اعتقاده خلاف ذلک. (فتاویٰ عالمگیریة ۲:۲۷۶ مایتعلق بتلقین الکفر الخ باب احکام المرتدین)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: ولو اشتریٰ قدوراً من صفر یمسکها ویؤاجرها لا تجب فیها الزکاة کما لاتجب فی بیوت الغلة. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۸۰ قبیل مسائل شتیٰ کتاب الزکاة)

ستور جوړ کړو زمکه د بل چا ده دکان پرې ما جوړ کړو، فرنیچر هم ماجوړ کړو، اوس سوال دې چه په دې فرنیچر اود دوکان په عمارت باندې زکوة واجب دې یا نه؟ حال دا چه شل زره قرضدار هم یم؟ بینوا توجروا

المستفتی: احسان الله یونیورستی میډیکوز زرعی یونیورستی پشاور ۲۴/۲/۱۹۸۲

**الجواب:** د عمارت او فرنیچر یعنی الماریٔ وغیره په قیمت کښې زکوة فرض نه دې. ﴿۱﴾ ته نقد زیورات ددوایانو قیمت، بینک کښې جمع شوې پیسې او قرضه ټوله جمع کړه او د حاصلِ جمع نه دا شل زره روپې منفی کړه باقی کښې څلویښتمه ورکړه. ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د حولانِ حول نه پس د نور رقم راتللو صورت کښې دزکوة مسئله.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې سره اګست ۱۹۲۸ نه واخلې تر اوسه پورې تقریباً دوسوه روپیٔ د حاجتونو نه پالتو پرتې دی او په اګست ۱۹۲۹ ء کښې تقریباً یو زر یا څه زیاتې لاس ته راغلې چه دا سړې ئې داګست دمیاشتې نه پس مالک شو نو دا سړې په دوه سوو نه زکوة ادا کوی یا د زرو روپونه هم؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد عجب خان کهنده صوابی.........۲۵/۹/۱۹۲۹ء

**الجواب:** که دادویم رقم په هغه وخت کښې لاس ته راغلې وی چه په اولنی رقم باندې حولانِ حول تیرشوې وو. یعنی پوره کال پرې تیرشوې وو نودا سړې به صرف ددوه سوو روپو زکوة ورکوی. ﴿۳﴾ اوکه د حولانِ حول نه مخکښې دا

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: ولا في ثياب البدن واثاث المنزل ودور السكنیٰ ونحوها......وكذلك آلات المحترفين. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۸ كتاب الزكاة)

﴿۲﴾ قال العلامة برهان الدين المرغيناني: ومن كان عليه دين يحيط بماله فلا زكاة عليه وان كان ماله اكثر من دينه زكى الفاضل اذا بلغ نصابا. (هداية على صدر فتح القدير ۲: ۱۱۷، ۱۱۸ كتاب الزكاة)

﴿۳﴾ وفى الهندية: فان استفاد بعد حولان الحول فانه لا يضم...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



دویم رقم ملاؤ شوې وی نو د دواړو رقمونو نه به زکوة ورکول ضروری وی. (والمسئله مذكورة فى جميع كتب الفقه. وهوالموفق

## د کال په مینځ کښې مال مستفاد به په حولانِ حول کښې د سابقه نصاب تابع وی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه یو سړې په نقد مال کښې صاحبِ نصاب دې. د حولانِ حول نه مخکښې هغه یو ټرک خرڅ کړو، په مشتری باندې قسط وار قرض پاتې شو، اوس دا قرض (د ټرک قیمت) د مالِ مستتفاد قبیلې نه شو نود مخکښې نه د موجود نصاب سره به یوځائې کولې شی که نه ځانته حولانِ حول ورته شرط دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاری عبد الجلال دارالعلوم حسینیه رزمک ۱۹ رجب ۱۳۹۳ھ

**الجواب:** دامالِ مستفاد د نورومالونو سره ضم کول او زکوة ورکول ترنه لازمی دی په دې رقم (دټرک په قیمت) باندې مستقل حولان حول ضروری نه دې.

**كما فى الدرالمختار ۲: ۳۱ المستفاد ولو بهبة اوارث ادخل فيه المفاد بشراء او ميراث او وصية وماكان حاصلا من الاصل كالاولاد والربح كما فى النهر وسط الحول يضم الى نصابه من جنسه فيزكيه بحول الاصل انتهىٰ ﴿۲﴾ وبمعناه فى الهندية ۱: ۱۸۶ ﴿۳﴾**

لیکن ددې قرضې زکوة به قسط وار ورکوی یعنی چه څومره رقم وصول کوی

(بقيه حاشيه) ويستأنف له حول آخر بالاتفاق. (فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۱۷۵ الباب الاول فى تفسيرها وصفتها وشرائطها كتاب الزكوٰة)

﴿۱﴾ وفى الهندية: ومن كان له نصاب فاستفاد فى اثناء الحول مالا من جنسه ضمه الى ماله وزكاه. (فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۱۷۵ الباب الاول فى تفسيرها وشرائطها كتاب الزكاة)

﴿۲﴾ (الدر المختار على هامش ردالمحتار ۲: ۲۵ باب زكاة الغنم)

﴿۳﴾ وفى الهندية: ومن كان له نصاب فاستفاد فى اثناء الحول مالا من جنسه ضمه الى ماله وزكاه سواء كان المستفاد من نمائه او لاوباى وجه استفاد...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

د هغې زکوة به ورکوی. ﴿۱﴾ وهو الموفق

**د حولان حول نه مخکښې اخستلې شوی ګاډی باندې د زکوة مسئله**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د زید سره نقد مال دې او د څو نصابونو مالک دې هغه د حولانِ حول نه مخکښې په دې مال باندې د مزدورئې دپاره لارئې واخستله نو ددې لارئې د قیمت نه زکوة ادا کول لازمی دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی دلبر ګندهاب.....۱۹۷۹ء۱۸۱۸۱

**الجواب:** په صورتِ مسئوله کښې زید باندې د لارئې د قیمت نه زکوة ادا کول د یو امام مذهب هم نه دې. او نقد اموالِ زکوة دی لیکن په هغې حولانِ حول شرط دې او لارئې چه د اخستلو خرخولو دپاره نه وی او د مزدورئې دپاره وی نو دا مالِ زکوة نه دې.

**ونظیره ما فی مجموعة الفتاویٰ ۱:۳۶۳ ولو اشتریٰ قدورا من الصفر یمسکها ویوادع لایجب فیها الزکاة کما لا یجب فی بیوت الغلة کذا فی قاضی خان ﴿۲﴾.** وهو الموفق

**د باقاعده هبې او تملیک په صورت کښې**

**په زکوٰة په موهوب له باندې فرض وی**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ما د خپلو ټولو بالغو

(بقیه حاشیه) ضمه سواء کان بمیراث او هبة او غیر ذلک.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۷۵ کتاب الزکاة)

﴿۱﴾ قال الحصکفی: فتجب زکوتها اذا تم نصابا وحال الحول لکن لا فوراً بل عند قبض اربعین درهما من الدین القوی کقرض وبدل مال تجارة فکلما قبض اربعین درهما یلزمه درهم. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۸ باب زکاة المال)

﴿۲﴾ مجموعة الفتاویٰ ۱:۳۶۳ کتاب الزکاة)



بچو وَدونه کړې دی. او س صرف یوه جینئ باقی ده چه د هغې د واده د پاره ماسرمایه مختص کړې ده او هغه سرمایه فی الحال څما په کاروبار کښې چلیږی. اوس به زکوة زه پخپله ادا کوم یا به ئې هغه ما شومه ادا کوی؟ او دا زکوة د هغې خپلو خویندو وروڼو ته ورکول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المسفتی: محمد عارف نوشهره کینټ.........۱۹۹۰ء۱۱۱۱۹

**الجواب:** که تا دا خپله لور ددې سرمائې باقاعده مالکه جوړه کړې وی نو ددې سرمائې زکوة ادا کول به په دې جینئ (لور) باندې با قاعده فرض وی. ﴿۱﴾ او دا جینئ دغه زکوة غریبانانو روڼو خویندو ته ورکولې شی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

**مهتمم د چندې ورکونکو وکیل وی د طالبانو نه وی.**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مهتمم کوم زکوة د خلقو نه وصول کوی او په طالبانو ئې تقسیم کوی آیا دا مهتمم د طلباؤ وکیل دې یا نه؟ او که دا رقم د مهتمم نه لاره کښې ضائع شی نو د هغې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عبد الله مدرسه مفتاح العلوم هنګو ۲۳ ذی قعده ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا مهتمم د زکوة ورکونکو وکیل دې د طلباء نه دې، نو که ددې مهتمم نه د زکوة مال ضائع شی نو ضمان به پرې نه وی او دوباره به زکوة ادا کوی څکه چه د زکوة ورکونکو ذمې د زکوة نه فارغې نه شوې. ﴿۳﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة المرغینانی: الزکاة واجبة علی الحر العاقل البالغ المسلم اذا ملک نصابا ملکا تاما وحال علیه الحول. (هدایة علی صدر فتح القدیر ۲:۱۱۲ کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ولا الی من بینهما ولاد الخ. وقال ابن عابدین: وقید بالولاد لجوازه لبقیة الاقارب کالاخوة والاعمام والاخوال الفقراء بل هم اولیٰ لانه صلة وصدقة. (الدر المختار مع ردالمحتار ۲:۶۹ باب المصرف)

﴿۳﴾ قال الحصکفی: او مقارنة بعزل ماوجب کله او بعضه ولا...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د مختلفو مزکینو زکوٰة جمع کولو او خلط کولو په صورت کښې د حیله تملیک حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د رجب په میاشت کښې د دکاندارانو نه زکوة جمع کړیشی په یو مسکین مدرس یا طالب علم باندې ئې قبض کړی او د تملیک حیله کولې شی. لیکن د هر یو کس د زکوة په جدا جدا طریقې سره تملیک نه کیږی بلکه خپل مینځ کښې ئې یو ځائې کړی او تملیک کولې شی آیا د تملیک دا طریقه د خلط په صورت کښې جائز ده؟ حالانکه د فتح المعین حاشیه کنز ۱: ۳۷۴ نه عدمِ جواز معلومیږي؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی ولی داد سرائې نورنگ لکی مروت..... ۱۵۱۸۱۱۹۸۴

**الجواب:** دا جزیه صحیح ده لیکن دا حکم د خلط بلا اذن په صورت کښې دې. او د اذن صریحاً یا عرفاً سره خلط کول د فراعتِ ذمې نه مانع نه دې، (شامي ۲۱۱۰۷)﴿۱﴾ وهو الموفق

## فقیر ته د زکوة رقم ورکولو نه پس د واپسئ تقا ضا کول جائز نه دی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږه کلې په اتیا کورونو باندې مشتمل دې او مونږ ټول مهاجرین یو او ټول غریبانان دی. څه پنځلس کاله مخکښې مونږ یو جمات جوړ کړو اوس د هغې کوټه غورځیدلو ته نزدې ده. او د جمات د لیو او مرمت کولو هم سخت ضرورت دې ما سره د زکوة رقم وو د یو عالم دین نه تپوس کولو سره هغه او فرمائیل چه د مستحق

(بقیه حاشیه) یخرج عن العهدة بالعزل بل بالاداء للفقراء، قال ابن عابدین: قوله ولا یخرج عن العهدة بالعزل فلو ضاعت لا تسقط عنه الزکاة ولو مات کانت میراثا عنه بخلاف ما اذا ضاعت فی ید الساعی لان یده کید الفقراء. (الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۱۲ کتاب الزکاة)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: ویتصل بهذا العالم اذا سأل للفقراء شیأ وخلط یضمن، قلت ومقتضاه انه لو وجد العرف فلا ضمان لوجود الاذن حینئذ دلالة والظاهر انه لا بد من علم المالک بهذا العرف لیکون اذنا منه دلالة.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۱۲ مطلب فی زکاة ثمن المبیع وفاء کتاب الزکاة)



زکوٰة په ملکیت کښې دې ورکړې شی بیا دغه سړې دا رقم په جمات باندې خرچ کولې شی. دغسې شرعی جواز راوځی. بهرحال زمونږ په کلی کښې ترکانړ دې اتیا کلن، هغه پنځه وخته مونځ کوی دهغه دوه ځامن حافظ قرآن دی. ما ورته یو ورځ او وئیل که الله تعالی تا ته څه دولت درکړی نو ته به د جمات خدمت کوې؟ هغه وئیل ضرور. دوه درې ځلې داسې خبره اترې اوشوې بیا ما پنځه سوه روپۍ د هغه د ځوئې په مخکښې هغه ته ورکړې هغه پیسې په جیب کښې کیښودلې، څو ورځې پس ورته ما وعده ورپه یاد کړه نو هغه او وئیل ښه ده. که توفیق اوشو نو ورکووم به، او تر اوسه ئې یوه انه هم جمات ته نه ده ورکړې. (۱) آیا اوس د هغه نه ددې رقم تقاضا کیدیشی ځما د طرفنه خو نشی کیدلې البته د کلی د جرګې د طرفنه داسې کیدلې شي؟ (۲) آیا ددې خبرې مشهورتیا کیدیشي؟ بینوا توجروا

المستفتی: مشتاق احمد چک نمبر ۵ کندیا میان والی..... ۱۸۱۹۱۱۹۷۰

**الجواب:** ددې رقم تقاضا نه ته کولې شې او نه د کلی د جرګې د طرفنه دا مطالبه جائز ده.﴿۱﴾ بلکه ستا خاموشی بهتره ده. (قال الله تعالی لا تبطلوا صدقاتکم بالمن والاذیٰ ﴿۲﴾ وهو الموفق

## یو مدرسې ته د زکوة ورکولو وعده اوشوه او زکوٰة بلې مدرسې ته ادا کړې شو؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه یو سړی اووئیل چه زه

﴿۱﴾ قال الحصکفی: ان الحیلة ان یتصدق علی الفقیر ثم یأمره بفعل هذه الاشیاء وهل له ان یخالف امره لم اره والظاهر نعم. قال ابن عابدین: لانه مقتضی صحة التملیک قال الرحمتی والظاهر انه لا شبهة فیه لانه ملکه ایاه عن زکاة ماله وشرط علیه شرطا فاسداً والهبة والصدقة لا یفسد ان بالشرط الفاسد.

(الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۶۹ باب المصرف)

﴿۲﴾ (سورة البقرة آیت: ۲۶۴ رکوع: ۴ پاره: ۳)

به په یکم جولائی باندې یوې مدرسې ته سل روپې زکوٰة ورکوم لیکن په یکم جولائۍ باندې ئې اووئیل چه ما هغه زکوٰة چرته بل ځائې کښې ورکړې دي آیا دا عمل درست دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: الحاج غلام محمد صاحب ټیکسلا

**الجواب:** چه کله په نذر شرعی کښې د مکان او فقیر د تعین رعایت لازمی نه دې نو صرف په وعدې سره به په طریقی اولی لزوم نه وی.

**کما فی ردالمحتار ۳:۶۷ والمراد انه یلزمه الوفاء باصل القربة التی التزامها لابکل وصف التزامه لانه لو عین درهماً او فقیراً او مکاناً للتصدق او للصلاة فالتعین لیس بلازم﴿۱﴾. وهوالموفق**

## په جماعتی زکوٰة فنډ کښې چه کله د تملیک لحاظ نه وی نو زکوٰة نه ادا کیږي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په جماعتی فنډ کښې د زکوٰة رقم ورکولو سره زکوٰة ادا کیږی یا نه؟ هر کله چه دهغې خرچ هم په جماعتی سطح باندې وي؟ بینوا توجروا

المستفتی: امیربادشاه ناظم جمات اسلامی ملاکنډ ایجنسی.

**الجواب:** د صحت د زکوٰة د پاره د فقیر تملیک شرط دې، نو که ددې مال خرچ کولو په وخت کښې د تملیک لحاظ کیدلې شی نو د مالکانو ذمه به فارغه شی کني نه (ما خوذ از روح المعانی ﴿۳﴾

**﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۷۳ مطلب فی احکام النذر کتاب الایمان)**
**﴿۲﴾ قال الحصکفی: ویشترط ان یکون الصرف تملیکا لا اباحة.**
**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۸)**
**﴿۳﴾ قال العلامة محمود الآلوسی: (انما الصدقات للفقراء والمساکین) الخ. یعنی ان الذی ینبغی ان یقسم مال الله علیه من اتصف باحدی هذه الصفات دون غیره الخ.**
**(روح المعانی ۶:۱۷۳ سورة التوبة آیت: ۶۰)**



وبدائع الصنائع﴿۱﴾ وهوالموفق

## د زکوٰة فنډ په مضاربت کښې ورکول او د هغې منافع خوړل حرام دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د زکوٰة رقم چاته په مضاربت ورکول او د هغې نفع پخپله خوړل ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عجب نور وانا کیمپ وزیرستان......۱۳ شوال ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** نا جائز او حرام دی. هذه المسئلة من الواضحات ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په ډاک باندې د زکوٰة لیږلو خرچ په لیګونکی دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې د زکوٰة رقم خیل نزدې خپلوان ته ورکول غواړی چه ډیر غریب دې او په هندوستان کښې اوسیږی د پاکستان نه په سلو روپو دیرش روپۍ د ډاک خرچه راځی یعنی هغه ته به په هندوستان کښې اویا ۷۰ روپۍ ملاویږی دې صورت کښې به د ډاک خرچ د زکوٰة نه منها کیږی او که ځانته به ورکولې کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحمید عباسی واه کینټ....۱۹۸۶ء۱۰۱۲۱

**الجواب:** د زکوٰة دوصولئ نه مخکښې دامرسل الیه مالک نه دې لهذا ددې سلو روپو لیږلو خرچ به په تا باندې وی که په پاکستان کښې هغه ته سل روپۍ

**﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: جعل الله تعالیٰ الصدقات للاصناف المذکورین بحرف اللام وانه للاختصاص فیقتضی اختصاصهم باستحقاقها فلو جاز صرفها الی غیرهم لبطل الاختصاص وهذا لا یجوز. (بدائع الصنائع ۲:۱۵۰ فصل واما الذی یرجع الی المؤدی)**
**﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ویشترط ان یکون الصرف تملیکا لا اباحة.**
**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۸ باب المصرف)**

ملاوشی نو دهغې نه پس او یا جوړیدلو کښې نقصان نه وه.《۱》 وهوالموفق

## د زکوة چیئرمین د پاره د زکوة نه تنخوا ه مقرر کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه حکومت زکوة کومه کتموتی کوی او په خلقو ئې تقسیموی ځه هم په خپله حلقه کښې د زکوة چئرمین یم نو ماته د هغې نه سل روپئ د میاشتې تنخوا ملاویږی نو آیا د زکوة نه ما دپاره دا رقم اخستل جائز او صحیح دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا سید احمد لال قلعه ضلع دیر........ ۲۹۱۱۱۱۹۹۰

**الجواب:** بظاهره دا د زکوة مال دې سود نه دې او چیرمین په عاملینو کښې دې هغه دپاره دا تنخواه اخستل جائز دی. 《۲》 وهوالموفق

---

《۱》 ملاحظه. چه کله د دوه ملکونو کرنسی جدا جدا وی او د بین الاقوامی مالیاتی نظام په لحاظ سره ددې په مینځ کښې دکمی بیشی فرق وی مثلاً ددې سلو پاکستانی روپو قیمت اویا هندستانئ وی یا ۱۳۰ روپئ هندستائی وی نو د قیمت په دې کمی بیشی په لحاظ د مزکې په زکوة اثر نه غورزیږی لکه چه ددراهمو او د دنانیرو قیمت دپاکستانئ روپئ په لحاظ سره زیات دې مثلاً یو مزکی لس درهمه په زکوٰة کښې ورکړل او پاکستانی ته د پنځلسو روپو فی درهم په لحاظ سره یو نیم سل روپئ ملاؤ شوې نو دیکښې هیڅ څۀ مسئله نشته، والله اعلم بالصواب. (از مرتب)

《۲》 وفی الهندية: وهو من نصبه الامام لاستيفاء الصدقات والعشور ويعطيه ما يكفيه واعوانه بالوسط مدة ذهابهم وايابهم مادام المال باقيا الا اذا استغرقت كفايته الزكاة فلايزاد على النصف. (فتاوى عالمگيرية ۱:۱۸۸ الباب السابع فى المصارف)

...



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه دریم جلد

# باب زکوٰة الاموال



............

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

.....قال الله تعالىٰ.....

خُذۡ مِنۡ اَمۡوَالِهِمۡ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمۡ وَتُزَكِّيۡهِمۡ بِهَا

.....(التوبة).....

....

...



# باب الزكوٰة فى الاموال

## د دوه سوو درهمو او چاندئ نصاب

**سوال:** علماءِ دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه دسونې او چاندئ نصاب څه دې؟ اونن صبا دوه پنځوس نيمې تولې چاندى څنګه د دوه سوه درهمو برابر ده؟
المستفتى: مولانا عبدالغفور ګام ميله ضلع دير...۲۸/ صفر۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دسونې نصاب اوونيمې تولې دې اودچاندئ دوه پنځوس نيمې تولې دې اودوه سوه درهمه په دې طريقې سره د دوه پنځوس نيمو تولو چاندې برابرېږى چه وزن ئې د سبعه په اعتبار سره لس درهمه داووۀ مثقالو سره برابر شى (۲) نو دوه سوه درهمه به د يوسل څلويښتو مثقالو برابر شى او يو مثقال دڅلور نيمو ماشو وى نو $140 \times 4\frac{1}{2} = ۶۳۰$ ماشه شول اوس ترى نه تولې جوړې کړه نو په ۱۲ ئى تقيسم کړه هم دغه $52\frac{1}{2}$ تولې به جوړې شى وهوالموفق

## د نصاب نه كم خالص سونا اود پنځوس روپو په صورت كښې دزكوٰة حكم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه ديوى ښځې سره شپږ

---

(۱) قال العلامة برهان الدين: ليس فيما دون مائتى درهم صدقة...... فاذا كانت مائتين وحال عليه الحول ففيها خمسة دراهم...... ليس فيما دون عشرين مثقال من الذهب صدقة فاذا كانت عشرين مثقالا ففيها نصف مثقال. (هداية على صدر فتح القدير ۲:۱۵۸،۱۶۲ باب زكاة المال)

(۲) قال العلامة برهان الدين: والمعتبر فى الدراهم وزن سبعة وهو ان تكون العشرة منها وزن سبعة مثاقيل. (هداية على صدر فتح القدير ۲:۱۶۰ باب زكاة المال)

تولې سونا ده او چاندي ورسره بالکل نشته او دضرورت دپاره یعنی دوائی، صابن، رانجه وغیره دپاره ورسره پنځوس روپۍ دی نودې صورت کښې چه سونا دشرعی نصاب نه کمه ددې رقم سره یو ځای کولو سره به زکوة او قربانی واجب وی یا د سونی نصاب ته رسول لازمی دی؟

المستفتی: مولوی افسرگل میرعلی شمالی وزیرستان ۱۹۷۵ء/۲/۴

**الجواب:** پاکستانی روپی نه فضه ده اونه غالب الفضه ده بلکه دسامان او عروض التجارة نه دی لهذا په صورت مسئوله کښې به دضم په وجه دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد زکوٰة او قربانی واجب وی.

نظیره ما فی ردالمحتار ۲:۳۵ وفی النهر قال الزاهدی وله ان یقوم احد النقدین ویضمه الی قیمة العروض عند الامام وقالا لا یقوم النقدین بل العروض ویضمها، وفائدته تظهر فی من له حنطة للتجارة قیمتها مأة درهم وله خمسة دنانیر قیمتها مأة تجب الزکوة عنده خلافا لهما ﴿۱﴾. وهوالموفق

## د نصاب نه کمې سونې سره پیسې وی هغې کښې د زکوٰة مسئله اود بهشتي زیور د عبارت توضیح

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښی څه فرمائی چه یو سړی سره څو تولې سونا ده چه دمقدار نصاب نه کمه ده او ورسره دوه سوه روپۍ نقد هم دې آیا داسړی به د دواړو زکوة ادا کوی حال داچه سونا نصاب ته نه ده رسیدلې؟ اوکه نه صرف دنقد مال زکوة به ادا کوی دغه شان دبهشتې زیور (صفحه ۲۳۷باب الزکوة) مسئله (۹) په عبارت کښې څه التباس معلومیږی دهغې وضاحت اوکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی:مولوی شمس الحق سانگهړسندھ

**الجواب:** چه دکوم کس سره دوه سوه (شرعی) روپۍ وی او یوه یادوه تولې

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۷ باب زکاة المال)



سونا هم وی نودې صورت کښې دسونې په قیمت هم زکوة واجب دې (وهی مسئله الضم المذکورة فی سائر کتب الفقه﴿۱﴾) او دکوم عبارت متعلق چه په بهشتی زیور کښې شبه راغلې نو دهغې ازاله داده چه کله ددوه تولې سونې سره څه روپۍ هم وی اودسونې نرخ مثلا ۲۵ روپۍ فی توله وی او په یوه روپۍ باندی $1\frac{1}{2}$ توله چاندی ملاویږی نو زکوة واجب دې (لکونه نصاباً بعد الضم فافهم) ﴿۲﴾ وهوالموفق

## په غنمو اود سونې چاندۍ په زیوراتو کښې دزکوٰة مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی (۱) دزید سره ۲۵من غنم ټول کال پراته وو دیکښې زکوة شته یانه؟ (۲)دسونې او چاندۍ په زیوراتو کښې زکوة واجب دې یانه؟ بعضی خلق پکښې داستعمال شرط لګوې آیا داصحیح دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:حافظ نورالحق دارالعلوم اشاعة التوحیدوالسنه تورډهیر ۱۹۷۵ء/۸/۲۴

**الجواب:** (۱) غنم چه کله دتجارت دپاره نه وی نودا مال نامی نه دې لهذا دې کښې زکوة نشته ﴿۳﴾ (۲) دسونې چاندۍ زیورات که داستعمال دپاره وې

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وفی النهرقال الزاهدی وله ان یقوم احد النقدین ویضمه الی قیمة العروض عند الامام، وقالا لا یقوم النقدین بل العروض ویضمها وفائدته تظهر فیمن له حنطة للتجارة قیمتها مائة درهم وله خمسة دنانیر قیمتها مائة تجب الزکاة عنده خلافا لهما.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۷ باب زکاة المال)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: فلو ضم حتی یؤدی کله من الذهب او الفضة فلا بأس به عندنا ولکن یجب ان یکون التقویم بما هو انفع للفقراء رواجا.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۷ باب زکاة المال)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: ویشترط ان یتمکن من الاستنماء بکون المال فی یده او ید نائبه فان لم یتمکن من الاستنماء فلا زکاة علیه. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۷۴ الباب الاول کتاب الزکاة)

که بل څه مقصد دپاره وی خو زکوة پکښې فرض دې چه کل د مقدار نصاب نه کم نه وی.(۱) وهو الموفق

## د تعمیری کار دپاره کینودلې شوی رقم باندې به زکوٰة واجب وی

**سوال:** علمائې دین د مسئلې باره کښې څه فرمائی چه متاثرین تربیلا ډیم ته دحکومت دطرفنه کوم رقم ملاؤشوې دې که هغه کال دوه کاله په بینك کښې پروت وی په دې خیال چه په دې باندې به تعمری کار کولې شی او کور خو په ضروریاتو کښې دې او تراوسه بل کور تعمیری کړې شوی هم نه دې نو آیا په دې رقم به زکوة واجب وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ محمد حنیف خانپور هزاره....۱۹۷۵ء/۸/۲۷

**الجواب:** په دې زکوة فرض دی (خلافا لابن الملك (۲) فلیراجع الی البدائع (۳) (وهوالموفق)

(۱) قال العلامة ابن عابدین: ان الزکاة تجب فی النقد کیفما امسکه للنماء او للنفقة وکذا فی البدائع فی بحث النماء التقدیری.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۷ مطلب فی زکاة ثمن المبیع کتاب الزکاة)

(۲) قال العلامة ابن عابدین: نعم تظهر الفائدة فی ذکر القیدین علی ما قرره ابن ملك من ان المراد بالاول النصاب من احد النقدین المستحق الصرف الیها فیکون التقیید بالنماء احترازا عن اعیانها والتقیید بالحوائج الاصلیة احترازا عن اثمانها فاذا کان معه دراهم امسکها بنیة صرفها الیٰ حاجته الاصلیة لا تجب الزکاة فیها اذا حال الحول وهی عنده لکن اعترضه فی البحر بقوله ویخالفه ما فی المعراج فی فصل زکاة العروض ان الزکاة تجب فی النقد کیفما امسکه للنماء او للنفقة وکذا فی البدائع فی بحث النماء التقدیری الخ.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۷ کتاب الزکاة)

(۳) قال العلامة الکاسانی: وتجب الزکاة فی کل مال سواء کان نامیاً فاضلاً عن الحاجة الاصلیة لا کثیاب البذلة والمهنة والعلوفة والحمولة والعمولة من......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## چه د نصاب نه کم سونا او چاندی وی او د مجموعې قیمت نصاب ته رسیږی نو زکوة به واجب وی

**سوال:** علمائې دین د مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مثلاً ماسره د $7\frac{1}{2}$ تولو سونې نشته بلکه کمه ده او د چاندئ هم درې یا څلور تولې دې نقدی هم شته بغیر دجی پی فنډ نه چه هغه دحکومت قبضه کښې دې او ماشاء الله پټې می هم شته دیکښې صورت کښې دسونې او چاندئ دزکوة څه طریقه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اکبر کلرك محمکه نقول مردان....۱۹۷۴ء/۶/۱۹

**الجواب:** چه کله سونا د $7\frac{1}{2}$ او چاندی د $52\frac{1}{2}$ تولو نه کمه وی نو دواړه به د قیمت په اعتبار سره یوځائ کړېشی مثلاً تاسره څلور تولې چاندې ده او دوه تولې سونا ده چه په هغې سره پنځوس تولې چاندئ اخستلې کیږی نو ته د ۵۴ تولو چاندئ مالك جوړ شوې او په تا به زکوة واجب شې (۱) وهو الموفق

## د سونې چاندئ قیمت کول او د هغې څلوېښتمه حصه زکوٰة کښې ورکول جائز دې

**سوال:** علمائې دین د مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دیو سړی سره څه سونا یا چاندئ ده او نقدنوټونه هم دی نو څنګه چه سونا په چاندئ کښې یا چاندې په سونا کښې بدلولې شی نو دغه شان دزکوة دپاره سونا او چاندئ په نوټونو کښې بدلولې شی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبیدالله تحصیل وضلع کرك ۱۴ صفر المظفر ۱۴۰۳ھ

(بقیه حاشیه) المواشی وعبید الخدمة والمسکن والمراکب وکسوة الاهل وطعامهم.
(بدائع الصنائع ۲:۹۱ کتاب الزکاة مراتب الدیون)

(۱) قال العلامة برهان الدین المرغینانی: ویضم الذهب الی الفضة للمجانسة من حیث الثمنیة ومن هذا الوجه صار سببا ثم یضم بالقیمة عند ابی حنیفة رحمه الله.
(هدایة علی صدر فتح القدیر ۲:۱۶۹ فصل فی العروض کتاب الزکاة)

**الجواب:** په زکوة کښې قیمت ورکول جائز دی (۱) لهذا د سوني یا چاندی په نوټونو سره قیمت لګول او دهغې څلویښتمه حصه ورکول بغیر دشك او شبهې نه جائز دي (۲) وهو الموفق

## که زکوٰة دخپلو پیسوسره ګډوډ شی نو نور رقم ورکولو سره ذمه فارغه کیږی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو مزکی بل سړي وکیل جوړ کړو دزکوة رقم ئی ورته ورکړو هغه دخپلو پیسو سره یو ځائې خرچ کړې او س دا وکیل دخپلو پیسونه ددې زکوة درقم په مقدار مصارفوته ورکولې شی؟ که نشي نو مالك هم دغه رقم واپس کولې شي یانه؟ او دا زکوة کیدلې شی یا په دویم ځل به ادا کول وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حضرت مولانا اسید الله صاحب هزاروی
سابق مدرس جامعه هذا...۳۰ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په عرف کښې داسې وکیل ته داختلاط او دخپل طرفنه ادا کولو اجازت وی لهذاددې مزکی ذمه فارغه ده (۳) (ماخوذ از قواعد فقه) (هو الموفق)

---

(۱) قال العلامة الحصکفی: وجاز دفع القیمة فی زکاة وعشر وخراج وفطرة ونذر وکفارة غیر الاعتاق. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۴ باب زکاة الغنم)

(۲) قال عبدالرحمن الجزیری: الحنفیة: قالوا! یعتبر فی المغشوش الغالب من الذهب او الفضة او غیرهما فالذهب المخلوط بالفضة ان غلب فیه الذهب زکی زکاة ذهب واعتبر کله ذهبا وان غلب فیه الفضة فحکمه کله حکم الفضة فی الزکاة فان بلغ نصابا زکی والا فلا اما ان کان الغالب النحاس فان راج فی الاستعمال رواج النقد وبلغت قیمته نصاباً زکی کالنقود وکذلک یزکی زکاة النقد ان کان الخالص فیه تبلغ نصاباً، فان لم یرج ولم یبلغ خالصه نصابا، فان نوی به التجارة کان کعروض التجارة فیقوم وتزکی القیمة والا فلا تجب فیه الزکاة. (کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ۱: ۵۳۳ زکاة الذهب والفضة المخلوطین)

(۳) قال العلامة الحصکفی: ولو تصدق (الوکیل) بدراهم نفسه اجزأ ان کان علی نیة رجوع وکانت دراهم الموکل قائمة وفی ردالمحتار ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د اصل زر او سود د مجموعې نه زکوٰة ادا کول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه نن صباحکومت د بانډو په سطح د زکوٰة کمیټۍ جوړې کړې دی او حکومت دا زکوة د سیونګ اکاونټس نه وصول کوی چه په هغې کښې دسود رقم هم راځی یعنی دهغې نه هم کټوتي کیږی آیا دا زکوة اداکیدیشی یانه؟ اوکمیټۍ چه کوم زکوة تقیسموی دا کار ثواب دی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی:عبدالرؤف ویسه مسجد قبا اټك...۱۲۲ شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دسود او اصل زر دمجموعې نه زکوة ورکولو په وجې سره داصل زر په زکوة باندې هیڅ اثر نه غورزیږی (۱) البته په کمیټۍ باندې ضروری ده چه دعلماؤ په مشرئی کښې زکوة خرچ کوی (وهو الموفق)

---

(بقیه حاشیه) (قوله ولو تصدق) ای الوکیل بدفع الزکاة اذا امسک دراهم الموکل ودفع من ماله لیرجع ببدلها فی دراهم الموکل صح بخلاف ما اذا انفقها اولا علی نفسه مثلا ثم دفع من ماله فهو متبرع. (الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۱۲ مطلب فی زکاة ثمن المبیع وفاء کتاب الزکاة)

وقال العلامة خالد الأتاسی: المعروف عرفاً کالمشروط شرطاً ای المعروف المعتاد بین الناس وان لم یذکر صریحاً...... المعروف بین التجار کالمشروط بینهم وفی ص۱۲۷ اذا بطل الاصل یصار الی البدل یعنی ان الذی یجب اداءه هو الاصل فاذا تعذر ایفاءه بالفوات او التفویت یصار الی البدل. (شرح المجله ۱: ۱۰۰، ۱۲۷ ماده: ۴۳، ۴۴، ۵۳)

(۱) قال ابن عابدین: ان المراد لیس هو نفس الحرام لانه ملکه بالخلط وانما الحرام التصرف فیه قبل اداء بدله ففی البزازیة قبیل کتاب الزکاة ما یأخذه من المال ظلماً ویخلطه بماله وبمال مظلوم آخر یصیر ملکاً له وینقطع حق الاول فلا یکون اخذه عندنا حراما محضاً نعم لا یباح الانتفاع به قبل اداء البدل فی الصحیح من المذهب.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۹ قبیل مطلب استحلال المعصیة کفر)

وقال العلامة ابن نجیم: ولذا قالوا لو ان سلطانا.....(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## نصاب نه کمو زیوراتو او مهرموجل کښې د زکوٰة مسئله

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) دسونې چاندئ په زیوراتو باندې چه دښځې په استعمال کښې وی اودهغې وزن د $7\frac{1}{2}$ تولونه کم وی لیکن قیمت ئی د دوه سوه روپونه زیات وی. آیا دیکښې هم زکوة واجب دې؟ یا د زیوراتو وزن د $7\frac{1}{2}$ تولونه زیات وی خو قیمت ئې د دوه سوه روپونه کم وی آیا په دې کښې بیاهم زکوٰة واجب دې؟ (۲) زید یوې ښځې سره په زر روپئ حق مهر باندې نکاح اوکړه وعده اوشو لیکن حق مهر دنن صبا د دستور مطابق ادانه کړو اود زید پخه اراده ده چه حق مهر ورکړم لیکن اوس تراوسه پورې ئې نه شی ورکولې، آیا دې ښځې باندې ددې زکوة واجب دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم....

**الجواب:** (۱) په سونا چاندئ کښې دزکوة دارومدار په نصاب دې قیمت باندې نه دې لهذا په اووه تولو سونې کښې زکوة نشته اګر که قیمت ئی دوه زره روپئ وی او په $7\frac{1}{2}$ تولو سونا کښې زکوة واجب دې اګر که قیمت ئی هیڅ نه وی(۱) حق مهر چه ترڅو ښځې قبض کړې نه وی په هغې باندې زکوة فرض نه دې.(۲) (رد المحتار) وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) غصب مالا وخلطه صار ملکاً له حتی وجبت علیه الزکاة وورث عنه علی قول ابی حنیفة لان خلط دراهمه بدراهم غیره عنده استهلاک اما علی قولهما فلا.
(البحر الرائق ۲:۲۰۵ کتاب الزکاة)

(۱) وفی الهندیة: ومنها کون المال نصاب فلا تجب فی اقل منه هکذا فی العینی شرح الکنز. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۷۲ الباب الاول فی تفسیرها وصفتها وشرائطها کتاب الزکاة)

(۲) قال العلامة ابن عابدین: و اما المرأة فلان مهرها علی الزوج دین ضعیف وقد استحق الزوج نصفه قبل القبض فلا زکاة علیها ما لم یمض حول جدید بعد القبض.
(ردالمختار ۲:۴۱ قبیل باب العاشر)



## په بینکونو کښې جمع شوې رقوم داموال ظاهره په حکم کښې دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه په بینکونو کښې کوم رقوم جمع کولې شی حکومت دهغې نه زکوة وصول کوی آیا دا اموال ظاهره دی یا باطنه؟ لکه چه په شامی $\frac{42}{2}$ کښې دی.

فان مال الزکاة نوعان ظاهر وهو المواشی ویمر به التاجر علی العاشر وباطن وهو الذهب والفضة والاموال التی فی مواضعها وایضا فی الصفحة ۴۲ والاموال الباطنة بعد اخراجها من البلد لانها بالاخراج الحقت بالاموال الظاهرة فکان الاخذ فیها للامام الخ،

آیا په بینکونو کښې جمع کولو سره دا دحکومت په حمایت کښې داخلیدلې شې یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانامحبوب الله حقانی فاضل جامعه حقانیه ۱۹جمادی الاولیٰ ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** بینکونو کښې جمع شوې مال په اموال ظاهره کښې شمارلې کیږی(۱) کما فی الشامیه ۲: ۳۲.......

---

(۱) بینکونو کښې چه کومې روپئ او نقد مالیت کیښودلې کیږی اګرچه دا اموال باطنه دې لیکن بینک سسټم یو قسم دحکومت نظام دې چه دهغې حفاظت هم حکومتې انتظامیه کوی په دې وجه دې (بیوت الربا) کښې رقوم کیښودل اموال ظاهره جوړیږی.

قال الشامی: إن مال الزکاة نوعان ظاهر وهو المواشی وما یمر به التاجر علی العاشر وباطن وهو الذهب والفضة واموال التجارة فی مواضعها بحر ومراده هنا بالباطنة ما عدا المواشی بقرینة قوله المارین باموالهم والا فکل ما مر به علی العاشر فهو من نوع الظاهر وسماها باطنة باعتبار ما کان قبل المرور. (ردالمحتار ۲:۴۲ قبیل مطلب ما ورد فی ذم العشار).

اوکله چه حکومت والا ته دامعلومه شی چه عوام د اموال باطنه زکوٰة نه اداکوی نو حکومت ددې مطالبه کولې شی.

قال الخوارزمی: وفی التفاریق ایضا ان وقف علی اهل بلدة لا یؤدون زکاة الاموال الباطنة طالبهم بها وکذا من عرف بذلک وطولب بالاداء. (کفایة فی ذیل فتح القدیر ۲:۱۷۲ باب فیمن یمر علی العاشر) وقال الملا علی قاری: وهذا لا یسقط طلب الامام اصلا ولهذا لو علم ان اهل بلدة لا یؤدون زکاتهم طالبهم بها (مرقات ۴:۱۳۶)

دغه شان حکومت وخت ته دا اختیار شرعاً حاصل دې [باقی حاشیه په راروانه صفحه]

والاموال الظاهرة هی التی یاخذ زکاتها الامام وهی السوائم ومافیه العشر والخراج وما یمر به علی العاشر﴿١﴾. وهوالموفق

## د حج د پاره کېښودې شوی رقم کښې زکوٰة واجب دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړی دحج دپاره په بینك کښې پیسې کېښودلې نوکال تیریدلو نه پس په دې باندې دزکوة څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: شهبازخان حقانی بډه بیرپشاور ١٩٨٦ء/٦/ ٢٦

[بقیه حاشیه]...چه دخلقو دمالونو نه زکوة وصول کړی او مستحقینو ته ئی ورسوی. په مؤطا امام مالك کښې دی:

کان ابوبکر اذا اعطی الناس عطیاتهم یسأل الرجل هل عندک من مال قد وجبت فیه الزکوٰة فان قال نعم اخذ من عطاءه زکوٰة ذلک المال وان قال لا سلم الیه عطاءه قال محمد وبهذا نأخذ وهو قول ابی حنیفة. (موطا امام محمد ١٧٠ باب الرجل یکون له الدین هل علیه فیه زکوٰة)

او په بل روایت کښې دی:

عن عائشه بنت قدامة عن ابیها انه قال کنت اذا جئت عثمان بن عفان اقبض عطائی سألنی هل عندک من مال وجبت فیه الزکاة؟ قال: فان قلت نعم اخذ من عطائی زکوٰة ذلک المال وان قلت لا دفع الی عطائی.

(موطا امام مالک ٢٧٢ الزکوٰة فی العین من الذهب والورق)

په دې وجه زموږ د شیخ دامت برکاتهم په منهاج السنن شرح للترمذی کښې فرمائی.

حق الأخذ للامام فی الاموال الظاهرة وهی السوائم ومافیه العشر والخراج وما یمر به علی العاشر کما فی ردالمحتار وغیره ولعل ما یوضع فی البنک یدخل فی ما یمر علی العاشر فی ... المحتار عن مختصر الکرخی اذا اخذها الامام کرها فوضعها موضعها اجزء لان له ولایة ... الصدقات فقام اخذه مقام دفع المالک. (منهاج السنن شرح جامع السنن ٣: ١٤١ باب ... یة اخذ خیار المال فی الصدقة)......(ازمرتب)

﴿...﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٢٦ مطلب فیما لو صادر السلطان رجلا فنوی ... اداء الزکاة کتاب الزکاة)



**الجواب:** دا رقم تراوسه پورې ددې سړې دملکیت نه بهر نه دی لهذا دې سړې باندې ددې رقم باقاعده زکوة فرض دی﴿١﴾ وهوالموفق

## موجوده کاغذی نوټونه او د چاندئ نصاب

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دیو سړی سره دموجوده حکومت مُهر شوې روپو نوټونه موجود وی آیا دې باندې به زکوة واجب وی؟ که په موجوده نوټونو یاروپوسره زکوة ورکړې شی نو دهغې مطلب داشو چه د څلور تولو چاندئ نه ئی زکوة ورکړو نو دزکوة نصاب به څه وی دانوټ که چاندی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.........١٩٧٤ء/ ٢/ ٩

**الجواب:** واضحه دی وې چه موجوده روپئ نه خالص الفضه ده اونه غالب الفضه دی لهذا دیته به د سامان حکم ورکولې شی لهذا په $52\frac{1}{2}$ تولو چاندئ باندې چه څومره مهر شوې نوټونه جوړیږی هغه به دنصاب شرعی مقدار وی اونوټونه خو قائم مقام ددرهمو دی لهذا ددې به هم دغه حکم وی اونوټ عند التحقیق وثیقه نه ده بلکه ثمن عرفی دې او که وثیقه هم تسلیم کړیشی نو دسرکاری نرخ اوحساب موافق به قائم مقام جوړولې شی.﴿٢﴾ وهوالموفق

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدین: فی المعراج فی فصل زکاة العروض ان الزکاة تجب فی النقد کیفما امسکه للنماء او للنفقة وکذا فی البدائع فی بحث النماء التقدیری.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٧ مطلب فی زکاة ثمن المبیع وفاء کتاب الزکاة)

﴿٢﴾ قال العبد الرحمن الجزیری: جمهور الفقهاء یرون وجوب الزکاة فی الاوراق المالیة لانها حلت محل الذهب والفضة فی التعامل...... الحنفیة قالوا الاوراق المالیة، البنکنوت، من قبیل الدین القوی الا انها یمکن صرفها فضة فوراً فتجب فیها الزکاة فوراً.

(الفقه علی المذاهب الاربعة ١: ٥٢٧ زکاة الاوراق المالیة البنکنوت)

## د پاکستانئ کرنسئ په لحاظ سره نصاب د زکوٰة

**سوال:** علمائی دین دې باره کښې څه فرمائی چه په پاکستانئ کرنسئ (نقد نوټونو) کښې نصاب د زکوة څنګه جوړیږی؟ آیا په دوه سوه روپو کښې به زکوة ادا کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عیان الحق دانشکول چارسده ۴/ ۷/ ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** پاکستانئ روپۍ نه خالص الفضه ده او نه غالب الفضه بلکه عادم الفضه دی لهذا په دې کښې به دمال تجارت پشان قیمت معتبر وی **کمافی البدائع ۲:۱۷ وان کان الغالب هو الغش والفضة فیها مغلوبة فان کانت اثمانا رائجة او کان یمسکها للتجارة یعتبر قیمتها فان بلغت قیمتها مأتی درهم...... تجب فیها الزکوٰة والا فلا ﴿۱﴾**

که دچاندئ نرخ مثلاً اویا روپئ فی توله وی نو پاکستانئ روپئ سره به نصاب وی 70×105/2 = 3675 او ددې څلویښتمه حصه به ورکول فرض وی﴿۲﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (بدائع الصنائع ۲:۱۰۳ فصل واما صفة النصاب فی الفضة کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ قال الدکتور وهبة الزحیلی: ویقدر نصاب (الاوراق النقدیة) کما ابنت بسعر صرف نصاب الذهب المقرر شرعا وهو عشرون دیناراً او مثقالا، ونختار ان یکون وزنها ذهبا ۸۵ غراما، ومن الفضة ۵۹۵ غراما عملاً بالدرهم العربی وهو (۲،۹۷۵غم) والاصح تقدیر النصاب الورقی بالذهب لانه المعادل لنصاب الانعام ولارتفاع مستوی المعیشة وغلاء الحاجیات، وان کان یری کثیر من علماء العصر تقدیر النصاب بالفضة لانه انفع للفقراء وللاحتیاط فی الدین ولان نصاب الفضة مجمع علیه وثابت بالسنة الصحیحة وکان یساوی فی الماضی ستة وعشرین ریالا مصریا وتسعة قروش وثلثی قرش، ونحو خمسین ریالا فی السعودیة ودولة الامارات ونحو ۶۰ او ۵۵ روبیة فی باکستان والهند.

(الفقه الاسلامی وادلته ۳:۱۸۳۴ زکاة الاوراق النقدیة)

وقال الشیخ والمفتی الاعظم محمد فرید: ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## په صرف چاندئ یا چاندئ اوسونا کښې د زکوٰة طریقه

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې فرمائی چه دیو سړی سره چاندی ده او د نصاب نه زیاته ده لیکن دهغه سره روپئ نشته نو په دې چاندئ کښې به زکوة دقیمت په اعتبار سره په روپو کښې ورکولې شی یا هم دا چاندې به ورکولې شی او که چاندې ورکول وی نو دچاندئ دنصاب نه به څومره چاندی ورکولې کیږی او که ورسره لږه شان سوناهم وی نو بیا به څنګه زکوة ورکولې کیږی په روپئ کښې یا چاندئ کښې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمٰن بنوں....۱۹۷۵ء/ ۳/ ۳۰

**الجواب:** په $52\frac{1}{2}$ تولو کښې به ⅓ توله چاندی یا دهغې قیمت ورکولې شی او چاسره چه سونا او چاندی دواړه وی نو دقیمت په حساب سره به د زکوة څلویښته حصه ورکولې کیږی (ماخوز از رد المحتار) ﴿۱﴾ وهو الموفق

## په سونا چاندئ کښې به د حولان حول دوخت قیمت معتبر وی

**سوال:** علمائی دین دې مسئله ئی باره کښې څه فرمائی سونا چه په سل روپئ

---

(بقیه حاشیه) قوله فاذا بلغت مائتین ففیها خمسة دراهم) ارید من الدراهم ما تکون کل عشرة منها وزن سبعة مثاقیل، والمأتان منها بالوزن المعروف فی دیارنا اثنان وخمسون تولجة وست ما هجات، فالدراهم الخالصة الفضة وکذا الغالب الفضة من غیر وزن سبعة مثاقیل اذا بلغ وزنها اثنین وخمسین تولجة وست ما هجات تکون نصاباً.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۳:۱۲۶ باب زکوٰة الذهب والورق)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: فلو ضم حتی یؤدی کله من الذهب او الفضة فلا بأس به عندنا ولکن یجب ان یکون التقویم بما هو انفع للفقراء رواجا والایؤدی من کل منهما ربع عشرة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۷ باب زکاة المال)

فی توله اخستلې شوې وی او اوس آته سوه روپئ فی توله ده نو زکوة به کوم حساب سره ادا کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: بشیراحمد شیخ..... ۱۹۷۵ء/ ۱/ ۲۸

**الجواب:** دحولان حول په وخت چه کوم نرخ وی هغه به معتبروی ﴿۱﴾ وهوالموفق

## ښځې ته مهر نه علاوه ورکړې شوو زیوراتو کښې د زکوٰة حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه د واده په سلسلې کښې دغریب نه غریب سړې هم دحق مهر نه علاوه ددوه درې زرو روپو زیورات جوړوی او څه زیورات خو باقاعده په حق مهر کښې ورکوی اوس چه کله خاوند بدستور قرضدارې دې او زیورات دښځې سره په صندوق کښې محفوظ دی نو آیا دمهر نه علاوه په دغه نور زیوراتو کښې زکوة په ښځه باندې واجب دې که په خاوند؟ بینوا توجروا

المستفتی: یارمحمد عباس خیل ډاك اسماعیل خیل

نوشهره..... ۱۸| ذی قعده ۱۳۸۹ ھ

**الجواب:** که دا زیورات دښځې سره دعاریت په طورسره وی او مالك په حقیقت کښې خاوند وی نو په ښځه به زکوة واجب نه وی ﴿۳﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وتعتبر القیمة یوم الوجوب وقالا یوم الاداء.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۴ باب زکاة الغنم)

وفی الهندیة: وان ادی القیمة تعتبر قیمتها یوم الوجوب لان الواجب احدهما ولهذا یجبر المصدق علی قبوله وعندهما یوم الاداء الخ. (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۸۰ الفصل الثانی فی العروض)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وسببه ای سبب افتراضها ملک نصاب حولی نسبة للحول لحولانه علیه. (الدرالمختار علیٰ هامش ردالمحتار ۲: ۴، ۵ کتاب الزکاة)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: (ومنها الملک التام) وهو ما اجتمع فیه الملک والید واما اذا وجد الملک دون الید کالصداق قبل القبض او وجد الید..... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## داستعمال د پاره څلویښت پنځوس جوړو جامو کښې د زکوٰة مسئله

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړی کوژدن او کړه او دجینئ دپاره ئی څلویښت پنځوس جوړې جامې اخستلې دی اودائی داستعمال په خیال سره اینبودې دی دتجارت دپاره نه دی آیا په دې کپړو باندې زکوة واجب دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرزاق کهنده صوابی...۱۵| رمضان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په دې کپړو باندې زکوٰة واجب نه دې لعدم النماء﴿۱﴾ البته په دې کپړو کښې قربانې او صدقه الفطر واجب ده اوددې په وجه دچانه زکوة هم نشی اخستلې ﴿۲﴾ (شامی، بحر، هندیه) وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) دون الملک کملک المکاتب والمدیون لا تجب فیه الزکاة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۷۲ الباب الاول فی تفسیرها وصفتها وشرائطها کتاب الزکاة)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ولا فی ثیاب البدن المحتاج الیها لدفع الحر والبرد.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۸ کتاب الزکاة)

وفی الهندیة: ومنها کون النصاب نامیا حقیقة بالتوالد والتناسل والتجارة او تقدیراً بان یتمکن من الاستنماء بکون المال فی یده او فی ید نائبه وینقسم کل واحد منهما الی قسمین خلقی وفعلی، فالخلقی الذهب والفضة..... والفعلی ما سواهما ویکون الاستنماء فیه بنیة التجارة او الاسامة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۱۷۴ کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: لا بأس ان یعطی من الزکاة من له مسکن وما یتأثث به فی منزله وخادم وفرس وسلاح وثیاب البدن وکتب العلم ان کان من اهله فان کان له فضل عن ذلک تبلغ قیمته مائتی درهم حرم علیه اخذ الصدقة.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۷۰ باب المصرف)

## دَ کان په پیداوار کښې زکوٰة

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې څه فرمائی چه دیو سړی کان دې چه په اجاره دې دهغې دامدنئ نه لاندې ټیکسونه ماهانه ادا کولې شی (۱) د غرمالك ته د فی ټن په حساب سره رقم اداکولې شی.(۲) محکمه معدنیات ته دفی ټن په حساب سره رائلټی ټیکس ادا کولې شی (۳) اودکال په پوره امدنئ باندې حکومت آمدنی ټیکس اخلی ددې ټولې آمدنئ نه مذکوره بالا ټیکسونه ادا کولونه پس به په بقیه رقم باندې څه حساب سره زکوة اداکول وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا عبدالناصر مهتمم دارالعلوم عرفانیه شیروان ایبټ آباد....۱۲۹ رمضان ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** ددې سړی په نورو مالونو باندې چه کله حولان حول او شی نو دا سړې په ددې کان نه په خارج شوی جواهراتو باندې په دغه تاریخ زکوة ورکوی په دې شرط چه دا جواهرات فروخت شده وی هیڅ ټیکس به منها کیدلې نشی اوکه دا جواهرات فروخت شده نه وی نو دامعاف دی په دې زکوة واجب نه دی کمافی البدائع وغیره ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د کور جوړولو د پاره کینودې شوی رقم کښې د زکوٰة حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید دکرایئ په کور

---

﴿۱﴾ قال الکاسانی: واماما لا یذوب بالاذابة فلا خمس فیه ویکون کله للواجد لان الزرنیج والجص والنورة ونحوها من اجزاء الارض فکان کالتراب، والیاقوت والفصوص من جنس الاحجار الا انها احجار مضیئة ولا خمس فی الحجر. (بدائع الصنائع ۲:۱۹۴ زکاة المعادن)

وقال الحصکفی: لازکاة فی اللآلی والجواهر وان ساوت الفا اتفاقا الا ان تکون تجارة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۵ قبیل باب السائمة)





## د حکومت د طرف نه په زوره کټ شوې رقم او تنخواه کښې زکوٰة

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې سرکاری ملازم دې دهغه په تنخواه کښې اضافه اوشوه لیکن هغه ته د مخکښې پشان تنخواه ملاویږی. او کومه اضافه چه شوې ده. هغه حکومت ددې ملازم دپاره ځان سره جمع کوي، ما خلور پنځه کاله پس دا رقم راویستلې شو نو آیا دیکښې زکوة واجب دې؟دغه شان کومه تنخواه چه میاشتنئ ملاویږی هغې کښې زکوة شته یا نه؟ مونږ اوریدلې دی چه شاه اشرف علی تهانوی رحمة الله علیه په میاشتنئ تنخواه کښې زکوة ثابت کړیدې؟ بینواتوجروا

المستفتی:مولانا حفیظ الحق فاضل حقانیه.........۱۹۷۷/۱۱/۵

**الجواب:** (۱) دا رقم په دینِ ضعیف کښې داخل دې لهذا د قبض نه مخکښې به پرې زکوة واجب نه وی البته بعد القبض به زکوة واجب وی یعنی د حولان حول قصداً یا تبعاً نه پس ﴿۱﴾ (۲) تنخواه کښې زکوة باقاعده واجب دې چه کله حولانِ حول قصداً یا تبعاً شوې وی. وهوالموفق

## په تجارتی او نقد مال کښې د حولان حول نه پس هر حال کښې زکوة واجب دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې په تجارت کښې یو لاکهـ روپې اولګولې، د کورنئ خرچې په وجه کال تیریدلو نه پس ۹۵ هزار پاتې شوې یعنی نفع هم اونشوه اوکمې هم واقع شویا کال پس لس زره نفع هم اوشوه لیکن پنځلس زره خرچ شوې یعنی منافع هم اوشوه او په اصل زر کښې کمې هم راغې نوپه دواړو صورتونو کښې دزکوة ورکولو څه طریقه ده؟بینواتوجروا

المستفتی:حاجی عمر خان بلی ټنګ کوهاټ......۲۲\۱ شعبان ۱۴۱۰ھ

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: واعلم ان الدیون عند الامام ثلاثة قوی ومتوسط وضعیف فتجب زکاتها اذا تم نصابا وحال الحول لکن لافورا بل عند قبض اربعین درهما من الدین القوی کقرض وبدل مال تجارة فکلما قبض اربعین درهما...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

سوم جلد 28

**الجواب:** تاجر به د حولانِ حول وخت كښې د مالِ تجارت او منافعَ دواړونه زكوة ور كوى مثلاً اولنى رمضان باندې تاجر د يو لاكهـ روپو زرمنه غنم واخستل په بل كال اولنى رمضان ورسره پنځه سوه منه غنم او شپيته زره روپۍ موجود وې او د كال په دورانيه كښې ئې په كور كښې لس زره خرچ كړې نو دې صورت كښې به تاجر د پنځه سوه منو غنو او شپيته زره روپو زكوة ادا كوى داسې نه چه د ٥٠٠ من غنمو او اويا زرو روپو، يا صرف د شپيته زره روپو يا صرف د اويا زرو روپو ﴿١﴾ وهو الموفق

## په ذاتى كتابونو كښې د زكوة حكم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه د يو مولوى صاحب سره به تقريباً د اوو سوو روپو كتابونه وى چه ذاتى طور باندې د مطالعې دپاره دې دې كتابو نو كښې يا ددې د قيمت نه به زكوة ادا كولې شى يا نه؟ بينوا بالبرهان توجروا عند الرحمٰن

المستفتى: مولانا غلام حبيب صاحب هزاروى ويسه اټک ١١ شعبان ١٣٩٤هـ

**الجواب:** كوم كتابونه چه د تجارت دپاره نه وى نو په هغې كښې او دهغې په قيمت كښې هيڅ زكوة نشته خصوصاً چه كله د مطالعې او استعمال دپاره ...ى نو په هغې كښې زكوة خو څه كوې فطرانه او قربانى هم نشته.

...ا الاول فلعدم النماء لان المال هو الذهب والفضة والسائمة ومال التجارة، وفى ...هندية ١ : ٢٠١ وان كانت له كتب تساوى مأتى درهم الا انه يحتاج اليها للتدريس او ...حفظ او التصحيح يجوز صرف الزكوٰة اليه كذا فى فتاوىٰ قاضيخان ﴿٢﴾ فافهم

---

...ه حاشيه) يلزمه درهم الخ. (الدر المختار على هامش رد المحتار ٢ : ٣٨ باب زكاة المال)

﴿...﴾ قال العلامة الحصكفى: وشرط افتراض ادائها حولان الحول وهو فى ملكه وثمنية ...ال كالدراهم والدنانير لتعينهما للتجارة باصل الخلقة...... او نية التجارة فى العروض ...ريحاً...... او دلالة. (الدر المختار على هامش رد المحتار ٢ : ١١ كتاب الزكوٰة)

﴿...﴾ (فتاوىٰ عالمگيرية ١ : ١٨٩ الباب السابع فى المصارف)



واما الثانى فلانهم وان صرحوا بعلم اشتراط النماء ولكن صرحوا بكونه فارغاً من الحاجة الاصلية ﴿١﴾ والمسئلة من الواضحات فلا تحتاج الى نقل العبارات. وهو الموفق

## صرف د غوايا ميخې په صورت كښې د زكوة حكم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه د يوې كونډې ښځې سره يوه غوا يا ميخه يا دوه بيزې دى چه په هغې باندې خپله ګزاره كوى ځكه چه د خرچې ئې بل څه ظاهرى سبب نشته دې نو آيا دا ښځه به زكوة ادا كوى.؟ بينوا توجروا

المستفتى: مولانا عبد الحسيب مسجد فردوس هوتى مردان ١٤١٨١١٩٧٢

**الجواب:** په دې ښځه باندې زكوة واجب نه دې. (لعدم تحقق النصاب الشرعى ﴿٢﴾ او كه ددې څناورو قيمت دومره وى چه د پوره كال خرچه پرې پوره كيږى او د هغې نه علاوه د دوه پنځوس نيمو تولو سپينو زرو قيمت باقى پاتې كيږى نو ورته زكوة اخستل جائز نه دې ګنې نو جائز دى. (ونظيره مافى الهنديه ١ : ٢٠٠ ﴿٣﴾ وهو الموفق

---

﴿١﴾ وفى الهندية: ومنها فراغ المال عن حاجته الاصلية فليس فى دور السكنىٰ وثياب البدن واثاث المنازل...... وكذا كتب العلم ان كان من اهله وآلات المحترفين كذا فى السراج الوهاج. (فتاوىٰ عالمگيرية ١ : ١٧٢ كتاب الزكاة)

وقال الطاهر البخارى: رجل له كتب العلم مايساوى مائتى درهم ان كانت مما يحتاج اليها فى الحفظ والدراسة والتصحيح لايكون نصابا وحل له اخذ الصدقة فقها كان او حديثا او ادباً. (خلاصة الفتاوىٰ ١ : ٢٤٠ الفصل السابع فى الكتب والعروض)

﴿٢﴾ وفى الهندية: ومنها كون المال نصابا فلا تجب فى اقل منه. (فتاوىٰ عالمگيرية ١ : ١٧٢ الباب الاول كتاب الزكاة)

﴿٣﴾ وفى الهندية: وكذا لو كان عنده من المصاحف وهو...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## د نصاب د بقائې په شرط مال تجارت کښې د نقصان په صورت کښې هم زکوة فرض دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه کاروبار کښې کال تیریدلو باندې معلومه شوه چه نقصان شوې دې او دا سړې صاحبِ نصاب هم دې نو څنګه او د څه څه مال نه به زکوة ادا کولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی: بشیر احمد شیخ....۱۵ محرم ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** په صاحبِ نصاب باندې زکوة فرض دې اګر که نقصان ئې کړې وی لهذا هغه به د سونې یا چاندئ، زیوراتو او سامانِ تجارت وغیره نه باقاعده زکوة ادا کوي، ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د ګانړې په قرضه کښې د زکوة حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه زید مثلاً څلور زره روپئ قرض واخستلې او خپله زمکه ئې د عمرو سره ګانړه کړه نو اوس به د مذکوره رقم نه په کال تیریدلو باندې وجوبی زکوة ادا کوی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګل شهزاده بټ خیله ملاکنډ ایجنسی.....۲۱۱۱۰۱۱۹۶۹:

---

(بقیه حاشیه) یحتاج الیه وان کان لا یحتاج الیه وهو یساوی مائتی درهم لا یجوز صرف الزکاة ولا یجوز له اخذها، وکذا لو کان له حوانیت او دار غلة تساوی ثلاثة آلاف درهم وغلتها لا تکفی لقوته وقوت عیاله یجوز صرف الزکاة الیه فی قول محمد رحمه الله ولو کان له ضیعة تساوی ثلاثة آلاف ولا تخرج مایکفی له ولعیاله اختلفوا فیه قال محمد بن مقاتل یجوز له اخذ الزکاة الخ. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۸۹ الباب السابع فی المصارف)

﴿۱﴾ قال العلامة برهان الدین: الزکاة واجبة علی الحر العاقل البالغ المسلم اذا ملک نصابا ملکا تاما وحال علیه الحول.

(هدایة علی صدر فتح القدیر ۲:۱۱۲ کتاب الزکاة)



**الجواب:** دا څلور زره روپۍ دا راهن په ذمه د مرتهن قرضه ده لهذا په دې کښې به زکوة واجب وی فی الحال ئې هم ورکولې شی او د ګانړې خلاصولو نه پس ئې هم د ګانړې د ټولې مودې ورکولې شي. ﴿۱﴾ صرح فی رد المحتار والهندیه، وهو الموفق

## د قرضې په رقم کښې د زکوة مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د قرضې په رقم کښې زکوة واجب دې یا نه؟ که واجب وی نو وصولولو نه مخکښې یا روستو ځکه چه کله کله قرضه ورکیږی هم؟ بینوا توجرو

المستفتی: غنی الله تور ډهیر صوابی.....۳۰۱۷۱۱۹۶۹

**الجواب:** د قرضې په رقم کښې زکوة واجب دې لیکن ادا به هغه وخت واجب وی کوم وخت کښې چه کم نه کم څلویښت روپئ شرعی یعنی دنصاب پنځمه حصه قبض کړې ﴿۲﴾ او که ټول قرض ئې په یو ځائې وصول کړو نود ټولو کالونو زکوة به هغه وخت ادا کړې شی ﴿۳﴾ او دور کیدلو په صورت

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ولو کان الدین علی مقر ملئی...... فوصل الی ملکه لزم زکاة ما مضی. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۰، ۱۱ کتاب الزکاة) وفی الهندیة: واما سائر الدیون المقربها...... ووسط...... اذا قبض مأتین زکی لما مضی فی روایة الاصل وقوی...... اذا قبض اربعین زکی لما مضی. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۷۵ کتاب الزکاة باب الاول)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: واعلم ان الدیون عند الامام ثلاثة قوی ومتوسط وضعیف فتجب زکاتها اذا تم نصابا وحال الحول لکن لا فورا بل عند قبض اربعین درهما من الدین القوی کقرض وبدل مال التجارة فکلما قبض اربعین درهما یلزمه.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۸ باب زکاة المال)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: وافتراضها عمری ای علی التراخی وصححه الباقانی وغیره وقیل فوری ای واجب علی الفور وعلیه الفتویٰ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۴ کتاب الزکاة)

کښې په هغه باندې زکوة نشته. ﴿۱﴾ وهو الموفق

**د جمات فنډ باندې تجارت کول او هغې کښې د زکوة مسئله**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید سره د جمات فنډ دې هغه د ضرورت په وخت کښې جمات کښې خرچ کوی اوس دې رقم باندې تجارت کول جائز دې یا نه؟ او د حولانِ حول نه پس په دې زکوة واجب دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: احسان طوروي\مولوی نور احمد ټانک....۲۸\۲\۱۹۸۴

**الجواب:** دچندې ورکونکو یا دهغوی یو اعتماد والا کس په اجازت سره په دې رقم تجارت کول جائز دی. او که چرې دا رقم متولی ته نه وی ورکړې شوې نو دا رقم د چندې ورکولو د ملکیت نه خارج شوې نه دې او د چندې ورکونکو حیثیت ته به کتلې شی که هغوی مالداروی نو ددې مال دنه وقف کیدلو په وجې سره به زکوة دهغوی په ذمه واجب الاداد وی ګڼې نه ﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال الحصکفی: لا زکاة فی مال الضمار وهو مالا یمکن الانتفاع به مع بقاء الملک. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۰ کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ شاه اشرف علی التهانوی رحمة الله علیه په امداد الفتاوی ۲\۵۹۵ کتاب الوقف کښې لیکلې دی. چنده د چندې والا د مِلک نه اوځی نه. په دې وجه ددغې خلقو نه اجازت اخستل ضروری دی البته کوم ورکونکی چه مجهول یا مفقود وی د هغوی د حصې د نسبت موافق په بل جمات کښې خرچ کول جائز دی. (سوال: ۷۲۲)

دغه شان ۲\۵۷۲ (سوال: ۶۹۵ کښې د چندې په باره کښې لیکی: دا وقف نه دهٔ د ورکونکو مملوک ده که چندې والا صراحةً یا دلالةً په انعام ورکولو رضا وی نو صحیح دی ګڼې صحیح نه دی. انتهی. پس ددینه معلومه شوه چه د جمات فنډ د خرچ کیدلو نه مخکښې وقف عرفی وی شرعی نه وی. په هدایه کښې دی.

قال ابو حنیفة لا یزول ملک الواقف عن الوقف الا ان یحکم به الحاکم او یعلقه بموته فیقول اذا مت فقد وقفت داری علی کذا وقال ابو یوسف یزول ملکه بمجرد القول وقال محمد لا یزول حتی یجعل للوقف متولیا ویسلمه الیه، قال ابن الهمام: بعد ذلک القول وبه اخذ مشائخ بخاری. (هدایة مع فتح القدیر ۵: ۴۱۸ کتاب الوقف)



# باب زکوٰة السوائم

**د ګډو بیزو نصاب او زکوة**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ څلور رونړه یو دوه واده کړی دی اودوه نا واده کړي، او حال دا چه زمونږ د ټولو مالیت ۱۷۰ ګډې بیزې دی اوس سوال دادې چه آیا په مونږ باندې د اختر قربانی واجب ده؟ او آیا مونږ به دټولو څاروو زکوة ادا کوو؟ بینواتوجروا

المستفتی: حسن خان متعلم بحر العلوم کوئټه... ۱۴ شعبان ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** څلوېښت بیزې شرعی نصاب دې او د عارضی تقسیم په وخت تاسو کښې هر یو رور صاحبِ نصاب دې. لهذا تاسو ټولو رونړو باندې زکوة او قربانی واجب ده. ﴿۱﴾ وهو الموفق

**د نصاب نه کم ګډو بیزو کښې زکوة نشته**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یو سړی شل ګډې بیزې وی. دوه کاله پس دهغې نه شل بچی پیدا شول، اوس چه په دې شلو باندې کال تیر شوې دی نو دیکښې زکوة شته یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم...۱۳\۱۱\۷\۱۴۰۱هـ

**جواب: لا یجب علی هذا الرجل الزکوٰة لعدم کمال النصاب فی الابتداء**

﴿۱﴾ وفی الهندیة: فاذا کانت اربعین سائمة وحال علیها الحول ففیها شاة الی مائة وعشرین. (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۱۷۸ الفصل الرابع فی زکاة الغنم الباب الثانی فی صدقة السوائم)

نعم اذا كانت اربعين عند الابتداء وصارت مائة وثلثين عند حولان الحول فيجب فيه الشاتان ﴿۱﴾. وهو الموفق

## د ګډو بیزو د مشترکه نصاب مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د یو سړی شل ضآن دی او شل حملان دی لیکن ضآن باندې کال تیر شوې دې او حملان باندې صرف پنځه ورځې تیرې شوې دی نو دیکښې د زکوة څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: باران خان طالب علم.....۱۹ ربیع الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د ګډو بیزو نصاب څلویښت دې کما صرحوا بـهِ، او په دې صورت کښې نصاب باندې حولانِ حول نه دې شوې نه قصداً نه تبعاً پس دیکښې زکوة نشته. بخلاف ما اذا ولدت الاربعون شاة تسعين حملا فى وسط الحول فتجب فيها شاتان لوجود حولان الحول على الحملان تبعاً ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د غواګانو او میخو په زکوة باندې د چراګاه (ورشو) د کرائې هیڅ اثر نه پریوځي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه څناورو غواګانو میخو

﴿۱﴾ وفى الهندية: ليس فى اقل من اربعين من الغنم السائمة صدقة. فاذا كانت اربعين سائمة وحال عليها الحول ففيها شاة الى مائة وعشرين فاذا زادت واحدة ففيها شاتان الى مائتين. (فتاوىٰ عالمگيريه ۱:۱۷۸ الفصل الرابع فى زكاة الغنم الباب الثانى فى الصدقة السوائم)

﴿۲﴾ قال العلامة برهان الدين المرغينانى: ليس فى اقل من اربعين من الغنم السائمة صدقة فاذا كانت اربعين سائمة وحال عليها الحول ففيها شاة الى مائة وعشرين ، فاذا زادت واحدة ففيها شاتان الى مائتين فاذا زادت واحدة ففيها ثلاث...... والضان والمعز سواء لان لفظة الغنم شاملة للكل. (هدايه على صدر فتح القدير ۲:۱۳۵ فصل فى الغنم)



وغیره کښې مثلاً چه د سلو نه زیاتې غواګانې او میخې دی. چه د کال په اکثره حصه کښې د دریائې کابل په غاړه او مینځنو ځنګلونو او میدانو نو کښې څرېږی. لیکن داځنګل او زمکه په ټهیکه اخستلې شوې دي، سالانه د غواسل روپۍ او دمیخې دوه سوه روپۍ ورکوی. آیا په دې ټهیکه شوې زمکه کښې څریدونکو څناورو باندې هم زکوة او صدقه لازم ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی زمان خان سرحد ټیکسټائل ملز نوشهره ۱۹۷۵ / ۱۰ / ۱۴۱۱

**الجواب:** دا میخې څریدونکې دی په دیکښې باقاعده زکوة واجب دې او ټهیکه دار ته دددې مخصوص رقم ورکولو سره هیڅ فرق نه پریوځی. (کما فى الدرالمختار، وشرعا المكتفية بالرعى المباح ذكره الشمنى فى اكثر العام لقصد الدر والنسل (۲:۲۰)﴿۱﴾. وهو الموفق

## د ګډو بیزو په زکوة کښې معیت فی الرعی شرط نه دې.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه د یو سړی سره څلویښت ګډې بیزې دی چه یو نوکر ئې څروی. او دددې ګډو څلویښت بچی دی چه بل سړې ئې څروی اوس په هغې باندې کال تیر شوې دې. د بعضې علماؤ موقف دې چه په دې بچو کښې ځان له زکوة نشته دې ځکه چه دیکښې معیت فی الرعی شرط دې، او بعضی علماء فرمائی چه اعتبار ملکیت ته دې. لهذا په دواړو کښې زکوة فرض دې. په دیکښې کوم مذهب مفتی به دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: ملنګ غزنوی ۲۰ رجب المرجب ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** زمونږ د امامانو په نزد ځان ځانته یا یو ځائې کښې څریدل برابر دی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ (الدر المختار على هامش ردالمحتار ۲:۱۶ باب السائمة)

﴿۲﴾ قال الدكتور وهبة الزحيلى: ان يحول عليها حول كامل فى ملك صاحبها بان يمضى على تملكها عام كامل من بدء الملكية، ويبقى الملك فيها جميع الحول، فلو لم يمض الحول فى ملكه، لم تجب عليه الزكاة الخ. الفقه...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## په اجاره باندې ورکړې شوو ګډو بیزو کښې د زکوة مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې ګډې بیزې یو مزدور ته درې کالو دپاره ورکړی دې، دې دوران کښې دا ګډې بیزې ډیرې شوې بیا مالک مزدور ته اووئیل چه دا ګډې او بیزې خو زمونږ مینځ کښې نیم په نیمه دی. په دې وجه د تقسیم نه پس به د خپلې خپلې حصې نه زکوة ادا کوو. لیکن مزدور د زکوة ورکولو نه انکار اوکړو چه زکوة هم ته ادا کوه، نو اوس به دا زکوة مزدور ادا کوی یا مالک؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی ساده ګل بازو خیل ژوب بلوچستان. ۹ رمضان ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** دې صورت کښې دا اجاره فاسده ده. دا مزدور نه د ګډو بیزو مالک دې او نه پرې زکوة شته. البته مزدور ته به اجر مثل ملاویږی او صلح دغه شان هم کیدلې شي (ماخوذ از هدایه ﴿۱﴾ شامي ﴿۲﴾) وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) الاسلامی وادلته ۳: ۱۹۱۶ زکاة الحیوان او الانعام)

قال العلامة ابن عابدین: (قوله بالرعی)...... لو اطلق الکلا علی المنفصل ولقائل منعه بل ظاهر قول المغرب الکلأ هو کل مارعته الدواب من الرطب والیابس یفید اختصاصه بالقائم فی معدنه ولم تکن به سائمة لانه ملکه بالحوز فتدبر قلت لکن فی القاموس الکلأ کجبل العشب رطبه ویابسه فلم یقیده بالمرعیٰ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۶ باب السائمة)

﴿۱﴾ قال العلامة برهان الدین المرغینانی: ومن دفع الی حائک غزلا لینسجه بالنصف فله اجر مثله وکذا اذا استأجر حمارا یحمل طعاما بقفیز منه فالاجارة فاسدة.

(الهدایة علی صدر فتح القدیر ۸: ۴۹ باب الاجارة الفاسدة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ولو دفع غزلا لآخر لینسجه له بنصفه ای بنصف الغزل او استأجر بغلا لیحمل طعامه یبعضه او ثورا لیطحن ......فسدت فی الکل، قال ابن عابدین: (قوله فسدت فی الکل) ویجب اجر المثل لا یجاوز به المسمی.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵: ۳۹، ۴۰ باب الاجارة الفاسدة)



## زکوة کښې د ځناور ورکولو په ځائې قیمت ورکول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه چه یو سړې د ځناورو په زکوة کښې یو ځناور متعین کړو روستو پکښې څه تاخیر اوشو او اوس د هغې قیمت شپیته روپۍ مقرر شو نو هغه به څه څیز په زکوة کښې ادا کوي؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل الدین متعلم دار العلوم حقانیه......۱۹۷۸ء ۱۰، ۱۳۱۱

**الجواب:** په دې سړې باندې ګډه یا د ګډې قیمت واجب دې. ﴿۱﴾ هغه قیمت چه روستو وی او په دې حکم کښې تغیر نه کیږی. ګویا چه موجوده قیمت شپیته روپۍ به ورکوی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: ویجوز دفع القیمة فی الزکاة والکفارة وصدقة الفطر والعشر والنذر. (البحر الرائق ۲: ۲۲۱ فصل فی الغنم کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ قال الحصکفی: وتعتبر القیمة یوم الوجوب وقالا یوم الاداء وفی السوائم یوم الاداء اجماعاً وهو الاصح، قال ابن عابدین: ای کون المعتبر فی السوائم یوم الاداء اجماعاً وهو الاصح فانه ذکر فی البدائع انه قیل ان المعتبر عنده فیها یوم الوجوب وقیل یوم الاداء وفی المحیط یعتبر یوم الاداء بالاجماع وهو الاصح.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۲۴ باب زکاة الغنم)

.......

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

**فتاوی فریدیه دریم جلد**

# باب زکوة الزروع والثمار



............



بسم الله الرحمن الرحيم

**....قال الله تعالی....**

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْفِقُوْا

مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ

وَمِمَّآ اَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ

......(البقرة)......

............

# باب زكوٰة الزروع والثمار (العشر)

## د عشر د وجوب د پاره غنا او نصاب شرط نه دې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) زمونږ په علاقه کښې درياب بهيږي چه د هغې نه خلقو واړه واړه نهرونه ويستلي دي او په مفت کښې زمکې اوبه کيږي ديکښې عشر دې يا نصف عشر؟ (۲) يو سړې انتهائی قرضدار دې او د هغه دومره غله کيږي چه صرف د روزانه خرچې دپاره کافي کيږي آيا د هغه د زمکې په حاصلاتو کښې عشر واجب دې؟ (۳) زمونږ په علاقه کښې د دهقاني رواج دې او دهقان پنځمه حصه اخلي چه په هغې سره د کال گزاره مشکل سره کيږي آيا په دې دهقان باندې هم عشر واجب دې؟ بينو اتوجرو

المستفتي: شير بهادر بر شور سوات.........۱۹۷۵ء/۹/۲۲

**الجواب:** (۱) دداسې زمکې د حاصلاتو نه لسمه حصه ورکول واجب کيږي. (درمختار) (۲) د عُشر د وجوب دپاره نه غِنا شرط ده او نه څۀ نصاب، لهذا په دې سړې باندې به عشر واجب وی. (شامي) ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: وتجب في مسقى سماء اى مطر وسيح كنهر.
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۵۳،۵۴ باب العشر)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله بلا شرط نصاب) وبقاء فيجب فيما دون النصاب بشرط ان يبلغ صاعا وقيل نصفه.
(ردالمحتار ۲: ۵۴ مطلب مهم في حكم اراضى مصر والشام باب العشر)

ومثله في الهندية: ويجب العشر عند ابى حنيفة رحمه الله تعالىٰ في كل ما تخرجه الارض. (فتاوىٰ عالمگيريه ۱: ۱۸۶ الباب السادس في زكاة الزرع والثمار كتاب الزكاة)



(۳) د مفتی به قول په بناء به زمیندار د خپلې حصې نه عُشر ادا کوی (درمختار) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د حنفی مسلک په رڼا کښې په زرعی پیداوار کښې نصاب نه دې مقرر

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د عشر د وجوب د پاره زرعی پيداوار کښې څه مقرر نصاب شته يا نه؟ او آيا خاص مقدار د عشر نه مستثنى دې يا نه؟ دنفی په صورت کښې حديث دبخاری عن ابی سعيد الخدری چه د ديرشو منونه کمه غله يا کجورو کښې عشر واجب نه دې. دغه شان په روايت د علی کښې چه په ترکاريانو کښې عشر واجب نه دې. دا توضيح طلب دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: نا معلوم.........

**الجواب:** د امام ابوحنيفه په نزد د عُشر دپاره څه نصاب مقرر نه دې،
**لعموم قوله تعالىٰ ولعموم الحديث ﴿۲﴾ واما حديث خمسة اوسق فمحمول على حالة التجارة او على ما يأخذه الامام، واما حديث ليس في الخضراوات صدقة فمعناه اى لا يأخذه العاشر ﴿۳﴾. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: وفي المزارعة ان كان البذر من رب الارض فعليه ولو من العامل فعليهما بالحصة. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۶۱ باب العشر)

﴿۲﴾ قال العلامة الكاساني: ولابى حنيفة عموم قوله تعالىٰ: يا ايها الذين امنوا انفقوا من طيبات ما كسبتم ومما اخرجنا لكم من الارض (البقرة: ۲۶۷) وقوله عزوجل: وآتوا حقه يوم حصاده (البقرة ۲۶۷) وقول النبى ﷺ: ما سقته السماء ففيه العشر وما سقى بغرب اودالية ففيه نصف العشر (اخرجه البخارى فى صحيحه ۳: ۳۴۷ فى الزكاة باب العشر فيما يسقى من ماء السماء عن عبد الله بن عمر مرفوعا بلفظ قريب منه) من غير فصل بين القليل والكثير ولان سبب الوجوب وهى الارض النامية بالخارج لا يوجب التفصيل بين القليل والكثير. (بدائع الصنائع ۲: ۱۸۰ باب العشر شرائط المحلية)

﴿۳﴾ قال المرغيناني: قال ابو حنيفة فى قليل ما اخرجته...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

**د میوو په عشر کښې د یو کال ذخیره کیدلو شرط معتبر نه دې.**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بنده په یو کتاب کښې لوستلې دی چه د زمکې په پیداوار کښې داسې څیزونه چه د یو کال پورې نه ذخیره کیږی مثلاً ټماټر، پالک ساګ د سیب بعضې قسمونه په دې کښې عشر نشته بلکه څلویښتمه ده. آیا دا صحیح دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: فضل الرحمان راولپنډی...... ۲۵/۸/۱۹۷۵

---

(بقیه حاشیه) الارض وکثیره العشر...... ولابی حنیفة قوله علیه السلام ما اخرجت الارض ففیه العشر من غیر فصل وتأویل ما رویاه زکاة التجارة لانهم کانوا یتبائعون بالاوساق وقیمة الوسق اربعون درهما...... وله ما روینا ومرویهما محمول علی صدقة یأخذها العاشر. وقال ابن الهمام: ما اخرجت الارض ففیه العشر اخرج البخاری عنه علیه السلام فیما سقت السماء والعیون او کان عثریا العشر وفیما سقی بالنضح نصف العشر وروی مسلم عنه علیه السلام فیما سقت الانهار والغیم العشر وفیما سقی بالسانیة نصف العشر وفیه من الآثار ایضا ما اخرج عبد الرزاق اخبرنا معمر عن سماک بن الفضل عن عمر بن عبد العزیز قال فیما انبتت من قلیل وکثیر العشر واخرج نحوه عن مجاهد وعن ابراهیم النخعی واخرجه ابن ابی شیبة ایضا عن عمر بن العزیز ومجاهد وعن النخعی وزاد فی حدیث النخعی حتی فی کل عشر دستجات بقل دستجة والحاصل انه تعارض عام وخاص فمن یقدم الخاص مطلقا کالشافعی قال بموجب حدیث الاوساق ومن یقدم العام او یقول یتعارضان وبطلب الترجیح ان لم یعرف التاریخ وان عرف فالمتأخر ناسخ وان کان العام کقولنا یجب ان یقول بموجب هذا العام هنا لانه لما تعارض مع حدیث الاوساق فی الایجاب فیما دون الخمسة الاوسق کان الایجاب اولیٰ للاحتیاط فمن تم له المطلوب فی نفس الاصل الخلافی تم له هنا ولو لاخشیة الخروج عن الغرض لاظهرنا صحته ای اظهار مستعیناً بالله تعالیٰ واذا کان کذلک فهذا البحث یتم علی الصاحبین لا لتزامهما الاصل المذکور وما ذکره المصنف من حمل مرویهما علی زکاة التجارة طریقة الجمع بین الحدیثین ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



**الجواب:** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دې ټولو سبزیانو کښې لسمه یا شلمه واجب ده. دهغوی په نزد یو کال پورې باقی پاتې کیدل شرط نه دې.

لعموم حدیث البخاری ای فیما سقته السماء الحدیث﴿۱﴾ واما الحدیث لیس فی الخضراوات صدقة فمحمول علی ما یأخذه العامل﴿۲﴾ وفی الدرالمختار: وبلا شرط بقاء وحولان حول. (هامش ردالمحتار ۲: ۶۷)﴿۳﴾. وهوالموفق

**پاکستانی زمکې عشری دی خراجی نه دې**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دپاکستانئ او بالخصوص د پیښور او مردان ابادې شوو زمکو باندې د عُشر د زمکو اطلاق کیږی

---

(بقیه حاشیه) قیل ولفظ الصدقة یشعر به فان المعروف فی الواجب فیما اخرجت اسم العشر لا الصدقة بخلاف الزکاة.

(فتح القدیر مع الهدایة ۲: ۱۸۷، ۱۸۸ باب زکاة الزروع والثمار)

﴿۱﴾ (الصحیح البخاری ۱: ۲۰۱ باب العشر فیما یسقی من ماء السماء والماء الجاری کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: قوله فقال لیس فیها شیئ: قال ابویوسف ومحمد لا عشر فی الخضراوات ای فیما لا یبقیٰ سنة من غیر معالجة، وقال ابوحنیفة یجب فیها العشر ونصف العشر وحجته عموم قوله تعالیٰ انفقوا من طیبات ما کسبتم ومما اخرجنا لکم من الارض وعموم حدیث الباب الآتی، ویؤیده ما رواه ابن ابی شیبة عن عمر بن عبد العزیز قال فیما انبتت الارض من قلیل او کثیر العشر، والجواب عن حدیث الباب انه علی تقدیر ثبوته محمول علی ما یأخذه العاشر کما فی الهدایة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۳: ۱۵۲ باب زکاة الخضراوات)

﴿۳﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۳ باب العشر)

يا د خراجي زمكو په جواب مومطمئن كړئ ډيره مهرباني به وي؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوى عبدالرحمان لوند خوړ مردان

**الجواب:** ددې علاقې باراني زمكې او هغه نهري زمكې چه د هغې نهرونه مسلمانانو جوړ كړي وي د ابلاشک شبهې عشري دى. اوهغه نهرونه چه انگريزانو جوړ كړي وى نو په هغې كښې هم د عُشرى كيدوحكم صحيح او راجح دې ځكه چه د انگريز حكومت نه مخكښې دا زمكې عُشرى وى. او بيا چه انگريزانو كوم نهرونه وغيره جوړ كړې وو. نو دغه انهار وغيره د مسلمانانو په لاسونو على طريق المن والفئ داخل شوى دى. دا نه چه مسلمانانو په زور او غلبې سره اخستې دى. لهذا دا به خراجي نه وى.

**قال العلامة الشامى ٢: ٥٣ والحاصل ان ماء الخراج ما كان للكفرة يد عليه ثم حويناه قهراً وما سواه عشرى لعدم ثبوت اليد عليه فلم يكن غنيمة ﴿١﴾. وهو الموفق**

## د وقف زمكې د عُشر مسئله

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه د وقف شوې زمكې په پيداوار كښې عُشر شته يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: لعل محمد بلوچستان.....١٢٢محرم ١۴٠٣ھ

**الجواب:** دوقف شوې زمكې دپيداوارنه به عُشرور كولې كيږى ﴿٢﴾ وهو الموفق

**﴿١﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٥٧ باب العشر)**

**﴿٢﴾ قال العلامة الحصكفى: ويجب مع الدين وفى ارض صغير ومجنون ومكاتب ومأذون ووقف، قال العلامة ابن عابدين: (قوله ووقف) افاد ان ملک الارض ليس بشرط لوجوب العشر وانما الشرط ملک الخارج لانه يجب فى الخارج لافى الارض فكان ملكه لها وعدمه سواء. (الدرالمختارمع هامش ردالمحتار ٢: ٥۴ باب العشر)**



## انمه مساجد ته په وركړې شوې سيرئ كښې عُشر واجب دې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائې چه د جمات امامانو ته قوم كومه سيرى وركړې وى دهغې په پيداواركښې عُشرشته يانه؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد ابراهيم كنډ و بالا تيمر گره ډير.....٢٧١٣١١٩٨٩

**الجواب:** كومه سيرى (زمكه) چه د جمات امامانو ته وركړې شوې دى نو امامان د هغې مالكان دې دهغې دپيداوارنه باقاعده عُشرور كول ضرورى دى ﴿١﴾ اودا زمكه نه وقف ده او نه عاريت بلكه د عُمرىٰ پشان ده. وهوالموفق

## د رهن شوې زمكې عُشر او د رهن په پيسو كښې د زكوة مسئله

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه زمونږ په علاقه كښې خلق زمكې گانړا كوى. نو ددې گانړا شوې زمكې د آمدنئ عُشر به راهن ادا كوى او كه مرتهن او آيا د رهن نفع مرتهن دپاره جائز ده يا نه؟ او هغه روپئ چه د مرهو نې (گانړا شوې څيز) په عوض كښې اخستلې شوې دى دهغې زكوة به راهن ادا كوى كه مرتهن؟ بينوا توجروا

المستفتي: غلام حسن شاه.....٢١٩١١٩٧٧

**جواب:** عُشرپه مرتهن باندې دې. لانه مالك الغلة ﴿٢﴾ او د پيسو رهن كړې شوو زكوة هم په ده واجب دې. لانه دين قوي ﴿٣﴾ او د مرهونې نه انتفاع اخستل

**﴿١﴾ قال العلامة ابن نجيم: وكذا ملک الارض ليس بشرط للوجوب لوجوبه فى الارض الموقوفة. (البحر الرائق ٢: ٢٣٧ باب العشر)**

**﴿٢﴾ وفى الهنديه: اذا كان الرهن ارضا فاذن له فى زرعها او شجرا او كرما فاباح له ثمارها او بهيمة فاباح له شرب البانها فالحيلة فيه ان يبيح له ذلک على انه متى نهاه عن ذلک فهو ماذون له فى ذلک اذنا مستأنفا كذا فى خزانة المفتيين.**

**(فتاوىٰ عالمگيريه ۵: ۴٦٧ تصرف الراهن والمرتهن فى المرهون)**

**﴿٣﴾ قال العلامة الحصكفى: واعلم ان الديون عند الامام ......** (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

مکروه تحریمی دی که معروف وی او که مشروط (شامي) ﴿۱﴾ وهو الموفق

## په باغونو کښې د عُشر مسئله او د امام ابو یوسف د قول تشریح

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ د علاقه په ژورو زمکو کښې د سیب انار، انګور او خرمانو وغیره، باغونه دی. او په بعضې زمکو باندې آلوګان کرلې کیږی نو مذکوره میوې او آلوګان د منتفع کیدلو نه پس او پخیدلو نه مخکښې خرخولې شی. په دومره ګران قیمت باندې خرخولې کیږی مثلاً چه یو باغ ئې په لس زره باندې واخستلو نو مشتری ته پکښې پنځه سوه نه واخله تر اته سوه پورې ګټه پاتې کیږی. اوس یو عالم فتوی ورکړې چه عُشر په مشتری باندې دې چه د هغې په وجه اصل مالکانو عُشر ورکول پریخودې دی او مشتری وائی چه واه واه حضرت صاحب: جیب دې بائع ډک کړې او څه دې د رآس المال او نفع ددواړو نه عشر ادا کړم؟ ګزارش دادې چه انجناب په علمی ژور والی سره د زمانې بدلیدل مخې ته کیږدئ او راهنمائی اوکړی. دغه شان په امداد الفتاویٰ ج۱ص۵۰ کښې ئې دامام ابو یوسف مذهب ته اعدل وئیلې دی ددې مطلب دادې چه عشر په دواړو باندې دې لیکن دابویوسف د مذهب تشریح ناقل غلطه کړې ده لهٰذا د مولانا موصوف د فتوی وضاحت اوکړئ؟ بینواتو جروا

المستفتی: مولانا نور محمد وانا جنوبی وزیرستان. جمادی الثانی ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې عُشر په بائع دې.

**لما فی الدرالمختار: ولو باع الزرع ان قبل ادراکه فالعشر علی المشتری ولو بعده فعلی البائع انتهیٰ وفی ردالمحتار ۲:۷۴**

---

**(بقیه حاشیه) ثلاثة قوی ومتوسط وضعیف فتجب زکاتها اذا تم نصابا وحال الحول لکن لا فورا بل عند قبض اربعین درهما من الدین القوی کقرض وبدل مال تجارة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۸ باب زکاة المال)**

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: والغالب من احوال الناس انهم انما یریدون عند الدفع [illegible]اع ولو لاه لما اعطاه الدراهم وهذا بمنزلة الشرط لان المعروف کالمشروط وهو مما [illegible]المنع. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۳۴۳ کتاب الرهن)**



**وعند ابی یوسف عشر قیمة الفصل علی البائع والباقی علی المشتری ﴿۱﴾**

یعنی د اخستلو وخت کښې به دا معلوم کړیشی چه دې وخت کښې ئې څه قیمت دې او د لو (پریکولو) په وخت کښې ئې څومره قیمت دې. مثلاً د اخستلو وخت کښې یو زر (۱۰۰۰) روپئ او د لو په وخت کښې ۳۰۰۰ روپئ دی. نو د زرو روپو عُشر به بائع ادا کوی او د دوه زرو به مشتری ادا کوی. وهو الموفق

## د عُشر باره کښې د امام ابو یوسف په قول باندې دویم تپوس

**سوال:** جناب مفتی جامعه حقانیه اکوړه خټک!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! د عُشر په باره کښې رالیږلې شوې فتوې ملاؤ شوه، جزا کم الله. د لاندینو څو جزئیاتو باره کښې راهنمائی اوکړئ اجر دارین حاصل کړئ؟

**(۱) وقت الوجوب متی هو فعند ابی حنیفة عند ظهور الثمرة وعند ابی یوسف وقت الادراک وعند محمد وقت القضیة وعنده یجب عشر ما اکل او اطعم. (فتح القدیر ۲:۴). (۲) وفی البحر ان استهلکه غیر المالک اخذ الضمان منه وادی عشره. (بحر الرائق ۲:۲۳۷). (۳) لوغصب ارضاً عشریة فزرعها ان نقصتها الزراعة کان العشر علی صاحب الارض لانه یأخذ ضمان نقصانها فیکون بمنزلة نمائها عند ابی حنیفة. (فتح ۲:۸).**

**(۴) اما طریق ابی حنیفة فهو ان الواجب اداء جزء من النصاب من حیث المعنی وهو المالیة واداء القیمة مثل اداء الجزء من النصاب من حیث الزمان (بدائع الصنائع ۲:۲۶)**

یا د دوې چه دا د بدائع جزئیه د زکوة سره خاص نه ده د عُشر هم دا حکم دې لکه چه د هدایه په دفع القیم کښې په دې تصریح ده دغه شان په بدائع ۲:۲۳ باندې تصریح ده ﴿۵﴾ فقهی قاعده: للبدل حکم مبدل منه.

د پورتنو جزئیاتو نه واضحه شوه چه د عُشر د وجوب سبب د بائع په حق کښې متحقق شو برابره خبره چه بیع قبل الادراک وی او که بعد الادراک وی.

---

**﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۶۰ باب العشر)**

خصوصاً که جزئیه نمبر ۴ چه هغې کښې ئې قیمت ته معنًی ما خرج وئیلې دی. اوس د بائع دبری الذمه کیدلو د وه صورتونه دی (۱) اذا ما وجب اوکړی (۲) چه محل د وجوب د عشر عند البائع فوت شی. هم داثانی وجه ده چه مسئله بیع القصیل قبل الادراك ثم ترکه باذن البائع الی وقت الادراك، کښې ئې بائع د عشر نه بری کړې دې چه دې صورت کښې محل د وجوب د عشر بدل شو او چه کله محل فوت شو نو ما وجب هم ساقط شو.

**ففی العنایة: فان قیل ینبغی ان یجب العشر فی التبن لانه کان واجباً وقت کون الزرع قصیلا والتبن هو القصیل ذاتاً الا انه زادت فیه الیبوسة وبها لا یتغیر الواجب، اجیب: بانه لا یجب العشر فی التبن لان العشر کان واجباً قبل ادراک الزرع فی الساق حتی لو قصله وجب العشرفی القصیل فاذا ادرک تحول من الساق الی الحب کما تحول الخراج من المکنة عند التعطیل الی الخارج. (عنایة علی هامش فتح القدیر ۲:۵)**

دعنایه دسوال اوجواب نه دمسئله دقصیل اصل مذهب ابوحنیفه سره د خاص کیدلو په وجه صفا ظاهره شوه. اوداهم معلومه شوه چه تبدل د ذات د محل عشر سره عشرساقطیږی، په تبدل د وصف سره نه. او مسئله شما زمین کښې د ذاتِ عشر (چه هغه سبب دې مثلاً) نه دې بدل شوې. بلکه صفت بدل شو چه د کچه کیدلو نه پخیدلو طرفته هر سبب منتقل شو. دغه شان علامه شامی د مدار تحول، عشر من ذمة الی ذمة دپاره ضرور واضح اصل ساتلې دې.

**قوله: والعشر علی الموجر عنده وقالا علی المستاجر الخ، آگے لکھتا ہے: فان امکن اخذ الاجرة کاملة یفتی بقول الامام والا بقولهما لما یلزم علیه من الضرر الواضح الذی لا یقول به احد، (ردالمحتار ۲:۶۰)**

هم دا مدار د تحول مولانا اشرف علی تهانوی رحمة الله علیه په امداد الفتاوی جلد دویم کښې زیات واضح کړې دې. اوس به مسئله مذکوره کښې د الزام د ضرر علی المشتری په وجې سره که د ابو یوسف په مذهب باندې فتوی ورکړیشی نو څه حرج به وی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا نورمحمد جامع مسجد وانا جنوبی وزیرستان



**الجواب:** واضحه دې وی چه دلته دوه ځان ځانته مسئلې دی اول دا چه د عشر وجوب څه وخت کیږي؟ نو په دې کښې زمونږ امامان مختلف دی.

**فلیراجع الی ردالمحتار ۲:۲۷﴿۱﴾ والبدائع ۲:۶۳﴿۲﴾ وفتح القدیر ۲:۴﴿۳﴾،**
او دویم دا چه عشر په بائع دې که په مشتری باندې؟ نو دا هم مختلف فیهاده.

**قاله فی البدائع ۲:۵۷، ولو باع الارض العشریة وفیها زرع قد ادرک مع زرعها او باع الزرع خاصة فعشره علی البائع لانه باعه بعد وجوب العشر وتقرره بالادراک (هو وقت الوجوب عند ابی حنیفة) ولو باعها والزرع بقل فان قصله المشتری للحال فعشره علی البائع ایضاً لتقرر الوجوب فی البقل بالقصل وان ترکه حتی ادرک فعشره علی المشتری فی قول ابی حنیفة ومحمد لتحول الوجوب من الساق الی الحب، وروی عن ابی یوسف انه قال عشر قدر البقل علی البائع وعشر الزیادة**

---

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ویؤخذ العشر) قال فی الجوهرة واختلفوا فی وقت العشر فی الثمار والزرع فقال ابو حنیفة وزفر یجب عند ظهور الثمرة ...... وقال ابویوسف عند استحقاق الحصاد وقال محمد اذا حصدت وصارت فی الجرین.**
**(ردالمحتارهامش الدرالمختار ۲:۵۸ باب العشر)**

**﴿۲﴾ قال العلامة الکاسانی: واما وقت الوجوب فوقته وقت خروج الزرع وظهور الثمر عند ابی حنیفة وعند ابی یوسف وقت الادراک وعند محمد وقت التنقیة والجذاذ فانه قال اذا کان الثمر قد حصد فی الحظیرة وذری البر، وکان خمسة اوسق ثم ذهب بعضه کان فی الذی بقی منه العشر فهذا یدل علی ان وقت الوجوب عنده هو وقت التصفیة فی الزرع ووقت الجذاذ فی الثمر. (بدائع الصنائع ۲:۱۸۶ فصل واما وقت الوجوب کتاب الزکاة)**

**﴿۳﴾ قال العلامة ابن الهمام: فعند ابی حنیفة عند ظهور الثمرة فلا یکون تعجیلا وعند ابی یوسف وقت الادراک وعند محمد عند تصفیة وحصوله فی الحظیرة.**
**(فتح القدیر ۲:۱۸۹ باب زکاة الزروع والثمار)**

على المشترى وكذلك حكم الثمار على هذا التفصيل ﴿١﴾،
لهذا په صورت مسئوله کښې د طرفینو په قول باندې فتوی ورکول او یا د شیخ ابو یوسف په قول فتوی ورکول په یو قول هم زمونږ اعتراض نشته.باقی ستا حوالې چه دی نو داولنۍ حوالې خو د صورت مسئله سره هیڅ تعلق نشته. دا ځان ځانته مسئلې دی اود دویم،دریم،څلورم او پنځم جواب دا دې چه د صریح جزئیه با وجود استنباط کول بې قاعدې خبره ده.
وهوالموفق

## په عُشر کښې د وجوب د وخت قیمت معتبر دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د یو سړی لس منه د زکوة چنړه د. د عُشر ادا کولو نه مخکښې ئې د ګرانۍ په وجه د ټولې چنړې سودا اوکړه مثلاً په جنوری ۱۹۷۵ کښې ئې ۸۰ روپۍ فی من په حساب سره ټوله چنړه خرڅه کړه. او عشر ئې ادا نکړو تر دې چه د مئ په میاشت کښې د چنړې قیمت ۴۰ روپۍ فی من شو. اوس که صاحبِ نصاب د اولنی قیمت وخت کښې عشر ورکولو نوفقیر ته زیاته فائده وه،اوس که د دویم قیمت په حساب سره عشر ورکوی نو دمخکښې په شان فائده فقیر ته نشته اوس مسئله داده چه د شریعت په رنړا کښې دواړو قیمتونو کښې کوم یو قیمت په زکوة کښې ورکول معتبر دې؟ بینوا توجرا

المستفتی: نامعلوم.....۸ جون۱۹۷۵

**الجواب:** په دې سړی ضروری ده چه یو من چنړا وزکړی اویا دې د وجوب د زمانې د نرخ اعتبار اوکړی.(كما فى الدرالمختار وتعتبر القيمة يوم الوجوب (هامش رد المحتار ۲:۳۰) ﴿۲﴾ وبمعناه فى سائر الفتاوٰى ﴿۳﴾ وهوالموفق

﴿١﴾ (بدائع الصنائع ۲:۱۷۵ فصل فى الخراج والعشر كتاب الزكاة)
﴿۲﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۲۴ باب زكاة الغنم)
﴿۳﴾ وفى الهندية: وان ادى القيمة تعتبر قيمتها يوم الوجوب.
(فتاوىٰ عالمگیریه ۱:۱۸۰ الفصل الثانى فى العروض)



## په عُشر کښې د جنس د قیمت ورکولو په صورت کښې مقامی نرخ معتبر دې سرکاری نه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په ملاکنډ ډویژن کښې حکومت اوس اوس عُشری نظام ختم کړې دې اوس بعضې خلق د جنس په صورت کښې ادائیګی کوی او بعضې د قیمت په صورت کښې لیکن د قیمت په صورت کښې علماء مختلف شوې دی. بعضې وائی چه سرکاری نرخ معتبر دې. ځکه په دا نرخ (همیشه) دې،او بعضې وائی چه د هرغټ کلي په دکانونو کښې چه کوم نرخ مقرر وی د هغې په حساب ئې ورکوئ. ځکه چه د عرفی نرخ دې. اوس مطلوب دادی چه په سرکاری او عرفی نرخ کښې کوم یو معتبر د ې. دغه شان د جنس او قیمت په ادائیګۍ کښې کوم څیز معتبر دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:مولانا عبیدالله چترالي(شهید

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې بهتره داده چه جنس ورکړیشی اود قیمت ورکولو په صورت کښې به مقامی نرخ معتبر وی سرکاری نۀ.

لان تسعير الحاكم غير معتبر ولذا قالوا ان الحاكم لا يسعر وانهم قالوا: ويقوم فى البلد الذى المال فيه ولو فى مفازة ففى اقرب الامصار اليه (هامش الرد ۲:۳۵) ﴿١﴾. وهوالموفق

## د عُشری زمکې نه د خراج اخستلو په صورت کښې ذمه نه فارغه کیږی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه حکومت خلقونه خراج وصول کوی که زمکه خراجی وی او که عُشري؟ او حکومت هم د مسلمانانو دې،نو آیا عُشر اداکول نه دی پکار؟ بینوا توجروا

المستفتی:لعل مرجان کوهاټ.....۹۱۸۱۱۹۷۴

﴿١﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۲۴ باب زكاة الغنم)

**الجواب:** د عُشر زمکې د پیداوار نه عُشر ورکول ضروری دی د خراج ورکولو سره ذمه نه فارغه کیږی.(کما فی رد المحتار ۳:۳۲۵ وکذا لو کانت عشرية لايؤخذ منها خراج ﴿۱﴾ قلت فالاجتماع جهل وظلم، وهو الموفق

## د خور حصه زمکه باندې غاصب رور خور ته عُشر ورکولې شي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کومې خورته د پلار په جائیداد کښې د میراث حصه نه وی ورکړې شوې او زمونږ ځائې کښې د پخوا نه ښځو (زنانو) ته میراث نه ورکولې کیږی نو وله به نوله زمکه د رونړو سره وی نو دې صورت کښې دا رونړه ددې زمکې عُشر خپلې غریبې خور ته ورکولې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالله کیملپوری......۱۹۷۵/۱۱/۳

**الجواب:** دا پیدا وار درور (غاصب) مملوک دې. ﴿۲﴾ لهذا دا رور خپلې خور ته عُشر ورکولې شی. ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۲۸۹ باب العشر والخراج والجزية كتاب الجهاد)

﴿۲﴾ قال الشيخ محمد امين (قوله والا فالخارج للزارع الخ) اى ان لم يكن عرف فى دفعها مزارعة ولا فى قسم حصة معلومة يكون الزارع غاصباً فيكون الخارج له وقوله وعليه اجر مثل الارض مشكل ولا تفيده النقول المارة لانها حينئذ ليست مما اعد للاستغلال حتى يجب عليه الاجر بل الواجب عليه نقصانها الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۱۳۷ مطلب زرع فى ارض الغير يعتبر عرف القرية)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله ولا الى من بينهما ولاد) وقيد بالولاد لجوازه لبقية الاقارب كالاخوة والاعمام والاخوال الفقراء بل هم اولى لانه صلة وصدقة.

(ردالمحتار ۲:۶۹ باب المصرف)



## افغان مجاهدین عُشر اخستلې شي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه افغان مجاهدین د افغانستان د زمکې عُشر په زُور یارضا اخستلې شي؟ او دا جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبد الله مجاهد فاضل حقانیه...۲۸ جمادی الثانی ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** جاز اخذ العشور للمجاهدين بشرط صرفها فى المصارف الشرعية والوجه فيه انهم ليسوا بالادنى عن البغاة ﴿۱﴾ وهو الموفق

## په شرابو تماکو. افیمو او بنګو کښې د عُشر مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه آیا حرام څیزونه مثلاً شراب، تماکوانو، آفیمو، او بنګو کښې عُشر واجب دې یا نه؟ که واجب دې نو دهغې د جنس به ورکوی یا د قیمت نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد غنی سنګولئې دیر....۱۹۷۹/۷/۱۹

**الجواب:** په شرابو کښې عُشر واجب نه دې په تماکوانو او افیمو کښې واجب دې. ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ قال الحصكفى: اخذ البغاة والسلاطين الجائرة زكاة الاموال الظاهرة كالسوائم والعشر والخراج لا اعادة على اربابها ان صرف المأخوذ فى محله الآتى ذكره والايصرف فيه فعليهم فيما بينهم وبين الله.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۲۶ قبيل مطلب فى مالو صادر السلطان رجلاً الخ)

﴿۲﴾ وفى الهندية: ويجب العشر عند ابى حنيفة رحمه الله تعالىٰ فى كل ما تخرجه الارض من الحنطة والشعير والدخن والارز واصناف الحبوب والبقول والرياحين والاوراد والرطاب وقصب السكر والذريرة والبطيخ والقثاء والخيار والباذنجان والعصفر واشباه ذلک مماله ثمرة باقية او غير باقية قل او كثر. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۸۶ الباب السادس فى زكاة الزرع والثمار)

که جنس ورکوی او که قیمت(۱) د تماکو کرل مطلقاً جائز دی. ﴿۲﴾ او د افیمو کرل د دوایئ د پاره جائز دي. ﴿۳﴾ وهو الموفق

## د غیر مملوک ځنګلاتو د آمدنئ او د عشر او زکوة مسئله

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ علاقه کښې د ځنګلاتو د قیمت څلور اخماسه د علاقې خلقوته ورکولې کیږی. او یو خُمس حکومت اخلی آیا دا یو خُمس د عشر او زکوة قائم مقام دې او که نه د دینه علاوه به عُشر اداکولې شی. دغسې ټهیکه دار نهه روپئ فی فټ دغه علاقائی خلقو ته ورکوی نو آیا عُشر د ټهیکدار په ذمه واجب دې یا په علاقائی خلقو باندې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عنایت الرحمان واشنګ آلائی......۹رمضان ۱۴۰۲

**الجواب:** (۱) دمُباح او غیر مملوک زمکې په قدرتی ونو کښې عُشر واجب نه دې. البته دهغې دقیمت نه به د حولانِ حول نه پس باقاعده زکوة ورکولې کیږی. **یدل علی الحکم الاول ما فی تنقیح الفتاویٰ ۱:۱۰ وفی محیط السرخسی کل شیئ یتبع الارض فی البیع بغیر شرط فلا عشر فیه لانه بمنزلة اجزاء الارض، وکل شیئ لا یتبع الارض الا بشرط ففیه العشر کالحبوب والثمر﴿۴﴾ وفی الخانیة ولا یجب العشر فی القنب والصنوبر والقصب**

---

﴿۱﴾ قال الحصکفی: وجاز دفع القیمة فی زکاة وعشر وخراج وفطرة ونذر وکفارة.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲۲ باب زکاة الغنم)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین: فانه لم یثبت اسکاره ولا تفتیره ولا اضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة الاصل فی الاشیاء الاباحة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۳۲۶ کتاب الاشربة)

﴿۳﴾ وفی الشامیة: (قوله ویحرم اکل البنج والحشیشة والافیون) وهو صریح فی حرمة البنج والافیون لا للدواء وفی البزازیة والتعلیل ینادی بحرمته لا للدواء.
(فتاویٰ شامیه هامش الدر ۵:۳۲۵ کتاب الاشربة)

﴿۴﴾ (تنقیح الفتاویٰ الحامدیه ۱:۱۰ باب الزکاة والعشر)



**الفارسی ......ولو جعل ارضه مشجرة او مقصبة یقطعها ویبیعها فی کل سنة کان فیه العشر (هامش الهندیه ۱:۲۱۶)﴿۱﴾.**

(۲) دا زمکه مباح او غیرمملوک ده او دا ونې قدرتی دی. لهذا د دې مالک شرعی کټ کونکې یعنی مزدوردې، خرڅونکې او ټهیکدارنه دې دا صرف قانونی امور دی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د مملوک او غیر مملوک غرونو په چلغوزو کښې د عُشر حکم

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه کښې لوئې لوئې غرونه دی چه په هغې باندې چلغوزی هم دی. دا غرونه د چا مملوک کیدلې شی یا نه؟ او دا د غرونو تقسیم په خسنړی سره (قرعه اندازي) صحیح کیدلې شی یا نه؟ دغه شان د چلغوزو دا میوه خرڅول جائز دی یا نه؟ که جائز وی نو زکوة او عُشر به د چا په ذمه واجب وی په بائع یا مشتري؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید احمد جدرانی ۱۷۱۱۲۱۱۹۸۵

**الجواب:** غرونه په دوه قسمه وی مملوک او غیر مملوک اودا تعین مقامی خلق کولې شی. نو دمملوک غرونو او میوې به هم مملوک وي، دهغې اخستل خرڅول صحیح دی اود قواعدو په لحاظ سره دغې ونو کښې عُشر واجب نه دې. البته په میوو کښې واجب دې. ﴿۳﴾ اوچه کله په میوو کښې اخستل خرڅول

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ قاضی خان علی هامش الهندیه ۱:۲۷۶ فصل فی العشر کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن الهمام: ولا تجوز الشرکة فی الاحتطاب والاصطیاد وکذا الاحتشاش والتکدی وسؤال الناس وما اصطاده کل واحد منهما او احتطبه او اصابه من التکدی فهو له دون صاحبه وعلی هذا الاشتراک فی کل مباح کاخذ الحطب والثمار من الجبال کالجوز والتین والفستق وغیرها الخ. (فتح القدیر ۵:۴۰۹ فصل فی الشرکة الفاسدة)

﴿۳﴾ قال العلامة برهان الدین: وما یوجد فی الجبال من العسل والثمار ففیه العشر.
(هدایة علی صدر فتح القدیر ۲:۱۹۳ باب زکاة الزروع والثمار)

دپوخوالی نه مخکښې شوی دی. عُشر به په مشتری واجب وی ګنې په بائع واجب دې﴿۱﴾ اود غیر مملوک غرونو میوې او ونې به دهغه کس مملوک وی چا چه هغه پریکړې او حاصل کړې وی. (کما هو الاصل فی المباحات ﴿۲﴾ او عُشر صرف په میوو کښې خالص په هغه چا واجب کیږی چه څوک قابض وی که هغه بائع وی او که مشتری (ماخوذ از تنقیح الفتاویٰ ۱:۱۰ وشـرح التنویر باب العشر) ﴿۳﴾ وهوالموفق

## په غرانزه میوو کښې عُشر نشته

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه غرائزه علاقو کښې ګهنګور(میوه) پیدا کیږي، دا قدرتی پیدا واردې. دیته نه څوک اوبه ورکوی او نه ئې څوک حفاظت کوی لیکن خلق ئې دغرونونه راوړی او په غنمو یا پیسو باندې ئې خرڅوي، نودیکښې (ګنګور میوې کښې) عشرشته یانه؟ بینوا توجروا

المسفتی: نا معلوم.....۹۱۶۱۱۹۷۵

**الجواب:** حکومت ددې حفاظت نه کوي، لهذا دیکښې به عُشر واجب نه وی. کما فی الدرالمختار ویجب العشر فی ثمرة جبل او مفازة ان حماه الامام لانه مال مقصود لا ان لم یحمه لانه کالصید (هامش ردالمحتار ۲:۶۶) ﴿۴﴾. وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ولوباع الزرع ان قبل ادراکه فالعشر علی المشتری ولو بعده فعلی البائع. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۰ باب العشر)

﴿۲﴾ قال ابوالبرکات عبد الله بن احمد النسفی: ولا تصح شرکة فی احتطاب واصطیاد واستقاء والکسب للعامل وعلیه اجر مثل ما للاخر الخ.

(کنز الدقائق علی هامش بحر الرائق ۵:۱۸۴ فصل فی الشرکة الفاسدة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: وفی محیط السرخسی کل شیئ یتبع الارض فی البیع بغیر شرط فلاعشر فیه لانه بمنزلة اجزاء الارض وکل شیئ لا یتبع الارض الابشرط ففیه العشر کالحبوب والثمر. (تنقیح الفتاویٰ الحامدیة ۱:۱۰ باب الزکاة والعشر)

﴿۴﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۳ باب العشر)



## په قاشقاشو. او افیمو او ړوړه کښې د عُشر مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه عُشرصرف د قاشقاشو په تخم کښې واجب دې یاصرف په افیمو کښې او یا صرف په ړوړه کښې اوکه نه په درې واړو کښې یا دوو کښې وضاحت اوکړئ او خبر کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد نسیم قریشی ناوګئی چمله سوات......۲۲۱۷۱۱۹۷۴

**الجواب:** قاشقاش او افیم دواړو مقصود وی نو په دیکښې به عُشر واجب وي، په خلاف د ړوړې او تنه کښې.

یدل علیه ما فی البدائع ۲:۵۸ ومنها ان یکون الخارج من الارض مما یقصد بزراعة نماء الارض وتستغل الارض به عادة فلا عشر فی الحطب......ویجب فی قصب السکر وقصب الزریرة لانه یطلب بهما نماء الارض فوجد شرط الوجوب فیجب هذا ولم اجده صریحاً ﴿۱﴾. وهوالموفق

## د افیمو عُشر د پخیدلو نه پس د زمکې په مالک باندې دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه زمونږ په مُلک کښې د افیمو فصل کرلې کیږي، چه کله دا پاخه شی نو زمیندار ئې په چا خرڅوی نو ددې صورت کښې به د زمکې مالك عُشر ورکوی یا مشتري؟ بینواتوجروا

المستفتی: سعید اکبر ګدون صوابی:......۱۷رمضان۱۴۰۳ه

**الجواب:** که دا اخستل او خرڅول د پخیدلو نه پس شوې وی نو عُشرد زمکې په مالک باندې واجب وی. (کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمختار ۲:۳۳۳ باب العشر ولوباع الزرع ان قبل ادراکه فالعشر علی المشتری ولو بعده فعلی البائع ﴿۲﴾ وهوالموفق.

﴿۱﴾ (بدائع الصنائع ۲:۱۷۸ فصل واما شرائط المحلیة فانواع کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۰ باب العشر)

## د غرانزو وونو په میوو کښې د عشر حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې بل کس سره په غرانزو ونو کښې شریک کړی چه څومره میوه ته ددې ونو نه جمع کړې نو نیمه ستا نیمه زما. اوس به د هغې عُشر په مالک باندې واجب وی یا په مزدور باندې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی هستی خان برمل شمالی وزیرستان ۱۴ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** که دا ونه ددې امر کونکی ملکیت وی نو دا اجاره د قفیز الطحان، د قبیلې نه ده او نا جائز ده. البته د بلخ علماء په بعضې صورتونو کښې د جواز فتوی ورکوی. ﴿۱﴾ پس په دې صورت کښې د ټولو میوو عُشرد ونو په مالک باندې دې. اوکه دا ونې مباح وی نو عشر په دې حاصل کونکی باندې دې، ځکه چه دې ئې مالک دې. ﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ وفی الهندیه: وهذا بخلاف ما لو اشتر کافی الاحتطاب فاحتطب احدهما و جمعه الآخر فانه یجب الاجر بالغا مابلغ عند محمد رحمه الله تعالیٰ کذا فی الکافی...... دفع غزلا الی حائک لینسجه بالنصف فالثوب لصاحب الغزل ومشائخ بلخ جوزوا هذه الاجارة لمکان الضرورة والتعامل والصحیح جواب الکتاب لانه فی معنی قفیز الطحان وللحائک اجر مثله لا یجاوز به قیمة المسمیٰ. (فتاویٰ عالمگیریه ۴: ۴۴۵ الفصل الثالث فی قفیز الطحان)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: (قوله ولاتصح شرکة فی احتطاب واصطیاد واستقاء) لان الشرکة متضمنة معنی الوکالة والتوکیل فی اخذ المباح باطل لان امر الموکل به غیر صحیح والوکیل یملکه بدون امره فلا یصلح نائباً عنه اشار بالثلاثة الی ان اخذ کل شیئ مباح کالاحتشاش واجتناء الثمار من الجبال والتکدی وسؤال الناس ونقل الطین وبیعه من ارض مباحة او الجص او الملح او الثلج او الکحل او المعدن او الکنوز الجاهلیة الخ. (البحر الرائق ۵: ۱۸۳ فصل فی الشرکة الفاسدة)





## د مالټو د باغ یا نورو ونو مینځ کښې په غلې وغیره کښې د عُشر حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ما په پټی کښې د مالټو باغ لګولې دې په مینځنۍ زمکه کښې غله هم پیدا کیږي. بوټی اوس ان شاء الله کامیابیږی. آیا ددې مالټو او فصل دواړو نه به عُشر ورکول لازمی وی یا د یو څیز نه؟ او زمونږ زمکه نهری ده چه په هغې باند آبیانه هم وصول کولې شی نو لسمه به لازمیږی یا شلمه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالکریم راولپنډی...... ۱۰/۹/۱۹۶۹

**الجواب:** ته به د میوې او غلې دواړو نه شلمه یا دهغې قیمت ورکوې په دې شرط چه زمکه د باران په اوبو نه اوبه کیږی ګنې نو لسمه ورکښې ضروری ده. قال رسول الله ﷺ فیما سقت السماء والعیون او کان عثریا العشر وما سقی بالنضح نصف العشر، رواه البخاری ﴿۱﴾، وفی درالمختار وتجب فی مسقی سماء ای مطر وسیح کنهر ......ویجب نصفه فی سقی غرب ای دلو کبیر او دالیة ای دولاب انتهیٰ مختصراً ﴿۲﴾. وهوالموفق

## په میوه دارو او غیر میوه دارو ونو کښې د عُشر مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه کښې ونې دی او دا ونې د قومونو او خاصو کورونو ملکیت دی. د هر یو خپله حصه معلومه ده او داونې په دوه قسمه دی میوه دارې چه چلغوزی کوی په هغې کښې مونږ عُشر ورکوو. اوس که مونږ داونې خرڅوو یائې خپلو کورونو ته راوړو نو په دې قسم ونو کښې به عُشر واجب وی او که نه؟ او بغیر میوو ونو کښې عُشر واجب دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی جهانګیر خان شین مینار ډی آئی خان...... ۱۴۰۱/۶/۲۲ھ

﴿۱﴾ (الصحیح البخاری ۱: ۲۰۱ باب العشر فیما یسقی من ماء السماء والماء الجاری کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۳، ۵۵ باب العشر)

سوم جلد 30

**الجواب:** د ونو په میوو او خاص قسم ځانګو کښې (چه د نیزو او کټونو په استعمال کښې راوستلې شی) عُشر واجب دي، ﴿۱﴾ البته د ونو تنو کښې عُشر د وونو تنو کښې عُشر واجب نه دي.

کما فی تنقیح الفتاویٰ ۱ : ۱۰ وفی محیط السرخسی کل شیئ یتبع الارض فی البیع بغیر شرط فلا عشر فیه لانه بمنزلة الارض ﴿۲﴾. وهوالموفق

## د سیوانو په باغونو کښې د عُشرویستلو طریقه

**سوال:** علمائې د ین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ زیارت علاقه کښې د منږو باغونه دی چه د هغې خرڅول په دوه طریقو سره کیږی یو دا چه د زمیندار او ټهیکدار سودا جوړه شی زمیندار خپلې پیسې واخلی دهغې عُشر ورکوی لیکن کوم زمیندار چه باغ نه خرڅوی هغوی دپاره دا مسئله جوړه شوې ده. چه مخکښې به زمونږ خلقو کله ټولې منږې خرڅې کړې او حساب به ئې اولګولو چه اوس دومره رقم جوړ شو بیا به ئې د ټرک کرایه، دلالی محصول، کریټ، میخونو وغیره خرچه جُدا کړه او د باقی نه به ئې عشر ورکولو نودې باره کښې سوال دادې چه دې صورتونو کښې د عشر څه طریقه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالمجید قذافی مارکیټ کوئټه.......۲۹ رجب ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** د باغونو مالکان دې میوو پریکولو وخت کښې د لسمې حصې د معلومولو تکلیف اوکړی او ددغې لسمې حصې د قیمت (مقامی قیمت) دې معلوم کړی او دغه قیمت دې حالاً یا بعدالبیع اداکړی.

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (تحت قوله وقصب) هو کل نبات یکون ساقه انا بیب و کعوبا والکعوب العقد والانبوب ما بین الکعبین واحترز بالفارسی عن قصب السکر وقصب الذریرة وهو قصب السنبل ففیهما العشر. ...... فلو استنمی ارضه بقوائم الخلاف وما اشبهه او بالقصب او الحشیش و کان یقطع ذلک ویبیعه کان فیه العشر.

(ردالمحتارهامش الدرالمختار ۲ :۵۵ باب العشر)

﴿۲﴾ (تنقیح الفتاویٰ الحامدیة ۱ : ۱۰ باب الزکاة والعشر)



(ماخوز از هندیه شامي) ﴿۱﴾ او یا پنجاب کراچۍ وغیره کښې د خرڅولو نه پس دې د ټول قیمت نه (بغیر کرایه خرڅ وغیره لرې کولو نه) لسمه ورکړې.

کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۲ : ۳۰ ویقوم فی البلد الذی المال فیه وفی ردالمحتار فلو بعث عبداً للتجارة فی بلد آخر یقوم فی البلد الذی فیه العبد بحر ﴿۲﴾ وفیه ایضاص ٦۹ قوله بلا رفع مؤن ای یجب العشر فی الاول ونصفه فی الثانی بلا رفع اجرة العمال ونفقة البقر...... بل یجب العشر فی الکل ﴿۳﴾. وهوالموفق

## د ګیا د پاره کرلې شوو شړشمو کښې عُشر واجب دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ ځاې کښې په غنمو یا جوارو کښې شړشم کرلې کیږی چه د څاروو د ګیا دپاره استعمالیږی او مقصود غنم یا د جوارو فصل وی. نو آیا په دې شړشمو کښې عُشر واجب دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل عظیم دفترپولیټکل ایجنټ

خار باجوړ ایجنسی....۱۶ رمضان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دا شړشم مقصود بالاستغلال دی قدرتی ګیا نه ده په دې وجه دیکښې عُشر واجب دې. (ما خوذ از هندیه) ﴿۱﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولو باع العنب اخذ العشر من ثمنه و کذلک لو اتخذه عصیرا ثم باعه فعلیه عشر ثمن العصیر کذا فی محیط السرخسی ولا تحسب اجرة العمال ونفقة البقر وکری الانهار واجرة الحافظ وغیر ذلک فیجب اخراج الواجب من جمیع ما اخرجته الارض عشرا او نصفا. (فتاویٰ عالمگیریه ۱ : ۱۸۷ قبیل باب السابع فی المصارف)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲ : ۲۴ باب زکاة الغنم)

﴿۳﴾ (ردالمحتارهامش الدرالمختار ۲ : ۵٦ باب العشر)

﴿۴﴾ وفی الهندیة: وان یکون الخارج منها مما یقصد بزراعته...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د حکومتی حفاظت نه بهر د غرونو په میوو کښې د عُشر مسئله

**سوال:** مايقول العلماء فی هذه المسئلة الفقهية هل يجب العشر فی الجبل الذی لم يحم الامام؟ وقال صاحب الدر المختار يجب العشر فی العسل وان لم يكن فی الارض العشری كالجبال والمفازاة ان لم يكن خراجية، ويجب العشر فی ثمرة الجبل ان حماه الامام، فالمطلوب ان فی وطننا جبال لا يتصرف الامام فيها ولا حمايته للامام ولكن الحماية لاهل القرية، وقد عين نصيب كل من اهل القرية واهلها يبايعون حصصهم فيما بينهم فهل يصح التمليك والبيع لهم؟ وان صح البيع فالعشر على البائع او المشترى وان لم يصح البيع فعلى ای منهما العشر؟ وايضا قال الشامی فی عشر الثمار ان باع قبل الادراک فعلى المشترى وان كان بعد الادراک فعلى البائع؟ اطلب منكم تشريح المسائل مفصلاً لعموم البلوىٰ وان اجبتم بالادلة فلكم الشكر. بينوا توجروا

المستفتی: نامعلوم متعلم دار العلوم حقانیه...... ۱۷\۵\۱۹۸۳

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې دې میوه جاتو (چلغوزو وغیره) کښې عُشر واجب دې. البته که یو مالک خپله حصه د ادراک نه مخکښې خرڅه کړې نو دا عُشر به د مشتری په ذمه وی. په اصل مالک باندې به نه وی. (یدل علیه ما فی شرح التنویر کما ذکره المستفتي﴿۱﴾ واضحه دې وی چه گومو ښارونو

(بقیه حاشیه) نماء الارض...... حتى لو استنمى بقوائم الخلاف والحشيش والقصب وغصون النخل او فيها دلب او صنوبر ونحوها وكان يقطعه ويبيعه يجب فيه العشر.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۸۶ الباب السادس فی زكاة الزرع والثمار)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: ولو باع الزرع ان قبل ادراكه فالعشر على المشترى ولو بعده فعلى البائع والعشر على المؤجر كخراج موظف وقالا على المستأجر.

(الدر المختار على هامش رد المحتار ۲:۶۰ باب العشر)



کښې تول غرونه او ځنګلات ملکیت مشترکه ګڼړلې کیږی نه دا چه موات یا غیر مملوک. نو د داسې علاقو میوه جاتو کښې وجوب د عشر واضحه خبره ده په دې کښې د امام د حفاظت شرط د هیچا په نزد معتبر نه دې ﴿۱﴾ وهو الموفق

## په غرانزو وونو او لرګو کښې د عُشر مسئله

**سوال:** یوه رساله ستاسو خدمت کښې درلیږم چه په هغې کښې د ونو په ځانګو کښې د عُشر وجوب نفی کړې شوې دې حال دا چه ونې په دې غرونو کښې مقصود وی او اقوام باقاعده د هغوی تقسیم کوی او حفاظت ئې کوی او دا لرګی ډیر قیمتی وی د هغې متعلق تاسو صاحبان د خپلې رائې نه مونږ خبر کړئ چه دې کښې عُشر شته یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا سردار صاحب مفتی ومدرس دار العلوم

تِل ۲۹\۱۱\۱۹۸۶

**الجواب:** په دې ونو کښې عُشر واجب نه دې (کما فی تنقیح الفتاوٰی الحامدیة ۱:۱۰ وفی محیط السرخسی کل شیئ یتبع الارض فی البیع بغیر شرط فلاعشر فیه﴿۲﴾ البته د دې غرانزو ونو په میوه جاتو کښې بعضې وختونو کښې عُشر واجبیږی (هدایه)﴿۳﴾ دغه شان د کومې ونې ځانګه چه د نیزې وغیره د پاره پکاریږی

﴿۱﴾ قال ابن عابدين: (ان حماه الامام) الضمير عائد الى المذكور وهو العسل والثمرة والظاهر ان المراد الحماية من اهل الحرب والبغاة وقطاع الطريق لا عن كل احد فان ثمر الجبال مباح لا يجوز منع المسلمين عنه وقال ابويوسف لا شيئ فيما يوجد فی الجبال لان الارض ليست مملوكة ولهما ان المقصود من ملكها النماء وقد حصل.

(رد المحتار هامش الدر المختار ۲:۵۳ باب العشر)

﴿۲﴾ (تنقیح الفتاویٰ الحامدیة ۱:۱۰ باب الزكاة والعشر)

﴿۳﴾ قال العلامة برهان الدين: وما يوجد فی الجبال من العسل والثمار ففيه العشر.

(هداية على صدر فتح القدير ۲:۱۹۳ باب زكاة الزروع والثمار)

نو دهغې په تنه کښې عُشر نشته، لیکن په دغه ځانګو کښې عُشر واجب دې. لان قوائمها کالثمرات (بدائع) ﴿۱﴾ وهو الموفق

## په فصل او میوه جاتو کښې د عُشر مسئلې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلو باره کښې څه فرمائې! (۱) په میوو کښې دادراک مصداق کوم حالت دې؟ (۲) په میوو باندې عُشر کله واجب کیږي؟ (۳) دا عُشر په مشتری واجب کیږی یا په بائع باندې؟ (۴) څه میوه جات خرڅ ېل هلاک دې که استهلاک؟ (۵) د میوه جاتو او فصل په عُشر کښې فرق شته یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد علی مدرسه کریمیه لورالائی بلوچستان ۱۹۸۷ء ۲۹|۷|۱

**الجواب:** (۱) کوم وخت چه دا میوه جات د مرضونو او فصادونو نه محفوظ شی نو هغې ته وخت ادراک وئیلې کیږی. (کمافی رد المحتار ۴: ۳۸، لکن بدوالصلاح عندنا ان تومن العاهة والفساد ﴿۲﴾ (۲) دا مختلف فیه مسئله ده البته د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دادراک او ظهور صلاح په وخت کښې عُشر واجب کیږی.

**کما فی ردالمحتار ۲: ۷۲ قال فی الجوهرة واختلفوا فی وقت العشر فی الثمار والزرع فقال ابو حنیفة وزفر یجب عند ظهور الثمرة والا من**

---

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: ومنها ان یکون الخارج من الارض مما یقصد بزراعته نماء الارض وتستغل الارض به عادة فلاعشر فی الحطب، والحشیش والقصب الفارسی لان هذه الاشیاء لاتستنمی بها الارض ولا تستغل به عادة لان الارض لا تنمو بها بل تفسد فلم تکن نماء [illegible] الارض اذا اتخذها مقصبة وفی شجرة الخلاف التی یقطع فی کل ثلاث [illegible] یجب فیها العشر لان ذلک غلة وافرة.

[illegible] ۲: ۱۷۸ فصل واما شرائط المحلیة فانواع کتاب الزکاة)

[illegible] هامش الدرالمختار ۴: ۴۲ مطلب فی بیع الثمر والزرع والشجر مقصوداً



علیها من الفساد ﴿۱﴾ (۳) دا مروجه بیع، بیع فاسده ده، او بیع فاسد قبل القبض مفید ملک نه وی او عُشر به په بائع واجب وی. البته که بائع مُشتری ته قبضه ورکړه نو په مشتری به واجب وی

**کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۲: ۷۴ ولو باع الزرع ان قبل ادراکه فالعشر علی المشتری ولو بعده فعلی البائع ﴿۲﴾ فافهم.**

(۴) نه دې. ﴿۳﴾ (۵) ددې په احکامو کښې هیڅ فرق نشته، وهو الموفق

## د نشې والا څیزونو کرلو باندې عُشر واجب دې.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو زمیندار خپله زمکه باندې داسې څیز اوکرلو چه د هغې نه نشې والا څیزونه مثلاً چرس، بهنګ، افیم او هیروئن وغیره جوړیږی. آیا ددې حرام مال نه به هم عُشر ادا کولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی: خیال اکبر افریدی پی اې ایف پشاور ........ ۱۹۸۲|۱۱|۱۹

**الجواب:** دا څیزونه ددوایئ دپاره هم استعمالیږي. لهذا ددینه لسمه یا شلمه ورکول پکاردی. ﴿۴﴾ په عشریا نصف عُشر سره به مال پاک شی حلالیږی نه لکه د غلا جامې یا د رینمو جامې په صابن باندې پاکیږی حلالیږی نه. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۵۸ باب العشر)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۰ باب العشر)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: واستبدال مال التجارة بمال التجارة لیس استهلاکاً بلا خلاف سواء استبدلها بجنسها او بخلاف جنسها. (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۱۸۰ مسائل شتیٰ کتاب الزکاة)

﴿۴﴾ قال العلامة برهان الدین: قال ابوحنیفة فی قلیل ما اخرجته الارض وکثیره العشر. (هدایة علی صدر فتح القدیر ۲: ۱۸۶ باب زکاة الزروع والثمن)

## د تماکو استعمال او د عُشر مسئله

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ ورجینا تماکوان کرو. او د کرلو نه تر سنبهالولو پورې پرې کافی خرچ راځی مثلاً د مزدور مزدوری، کیمیاوی خاوره بیا په بټئ کښې پخولو وخت کښې د سوزؤلو د لرګو خرچ وغیره او س سوال دادې چه مونږه کله دا فصل حاصل کړو او مکمل طور سره ئې خرڅ کړو او دهغې نقدې وصول کړو. نو مخکښې ترې نه عُشر ادا کړو او بیا ترې نه قرضې وغیره ورکړو او که نه مخکښې ترې نه خرچې لرې کړو دباقی نه عُشر ادا کړو؟ او د تماکو استعمال خو ناجائز دې نو ددې تجارت او زراعت جائز دې؟ او زمونږ زمکې نهری دی چه دهغې مونږ حکومت ته باقاعده آبیانه ورکوو نو دیکښې عُشر دې یا نصفِ عُشر؟ بینواتوجروا

المستفتی: ریدی ګل تخت بهائی...۱۹۷۵ء۱۶۱۷

**الجواب:** واضحه دې وی چه د تماکوانو استعمال مباح دې.

**کما فی ردالمحتار ۵:۴۰۶ فانه لم یثبت اسکاره ولا تفتیره ولا اضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة الاصل فی الاشیاء الاباحة ﴿۱﴾**

لهذا په دېکښې د عُشر واجب کیدل څه لرې خبره نه ده دغه شان ددې پاڼو به د شجرالخلاف د څانګو پشان د میوو په حکم کښې وی. (فتامل ما فی ردالمحتار ۲:۲۸ فلواستنمیٰ ارضه بقوائم الخلاف وما اشبهه اوبالقصب او الحشیش وکان یقطع ذلک ویبیعه کان فیه العشر (غاية البيان) ﴿۲﴾ او دامام ابوحنیفه رحمة الله علیه په نزد د ادراک په وخت عُشر واجب کیږی نو چه کله دا پاڼې د پریکولو قابلې شی نو ددې پاڼو نه یاددې دقیمت نه به عُشر ادا کول وی. پس کله چه

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۳۲۶ کتاب الاشربة)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۵۵ باب العشر)



د یو کنال کچه تماکوانو قیمت پنځه سوه (۵۰۰) روپې وی او په بټئ کښې د پخیدلو نه پس د هغې قیمت دوه زره روپې وی نو د قاعدې مطابق به د ۵۰۰ روپو نه عُشر ورکول وی. یدل علیه ما فی الدر المختار ویؤخذ العشر عند الامام عند ظهور الثمر وبدو صلاحها ﴿۱﴾ فافهم. دغه شان مزدوری او خاوره وغیره به نشی لرې کولې. صرح به فی الهندية، ورد المحتار وغیره. ﴿۲﴾ او د ډیرو خرچو په وجه به د نهری زمکې د حاصلاتو نه شلمه ورکول وی. چه کله ددې نهری زمکه سره اوبه کیږی. ﴿۳﴾ وهوالموفق

## پ ګوړه کښې د عُشر حکم

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې د خپلې زمکې نه ګنی حاصل کړل بیا ئې د هغې نه ګوړه جوړه کړه بیا ئې هغه ګوړه خرڅه کړه نو ددې رقم نه به عُشر ادا کوی که زکوة؟ او د زکوة په صورت کښې حولانِ حول شرط دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: تنګی ملا شریک دوره حدیث......۱۴۱۲۱۱۹۷۳

**الجواب:** دې سړې باندې به دِ ګوړې نه لسمه یا شلمه ورکول وی.

**کما یشیر الیه ما فی الهندیة ۱:۱۹۹ ولوباع العنب اخذ العشر من ثمنه وکذلک لو اتخذه عصیراً ثم باعه**

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۸ باب العشر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: بلارفع مؤن ای کلف الزرع وبلا اخراج البذر لتصریحهم بالعشر فی کل الخارج. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۶ باب العشر)

وفی الهندیة: ولا تحسب اجرة العمال ونفقة البقر وکری الانهار واجرة الحافظ وغیر ذلک فیجب اخراج الواجب من جمیع ما اخرجته الارض عشراً او نصفاً.
(فتاویٰ عالمګیریه ۱:۱۸۷ قبیل باب المصارف)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: ویجب نصفه فی مسقی غرب ای دلو کبیر ودالیة ای دولاب لکثرة المؤنة (قوله لکثرة المؤنة) علة لوجوب نصف العشر.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۵ باب العشر)

فعلیه عشر ثمن العصیر کذا في محیط السرخسي ﴿۱﴾. او واضحه دې وی چه د عُشر یا نصف عُشر نه پس باقی رقم کښې حولانِ حول قصداً یا تبعاً تیریدلو نه پس زکوٰة (رُبع العشر) ورکول دی. وهو الموفق

## په ګنو او ګوړه کښې د عشر حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په ګنو کښې څومره زکوٰة واجب دې. ما په موطا امام محمد کښې لیدلې دی چه په زیتون کښې عُشر شته زکوٰة نه. دا مسئله واضحه کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد زئي

**الجواب:** د ګنو او ګوړې دواړو نه عُشر یا نصفِ عُشر ورکول صحیح دی.

**ونظیره ما فی الهندیة ۱:۱۹۹ ولو باع العنب اخذ العشر من ثمنه وکذلک لو اتخذه عصیراً ثم باعه فعلیه عشر ثمن العصیر کذا فی محیط السرخسی ﴿۲﴾ فافهم. وهو الموفق**

## تماکوانو کښې د عُشر مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د تماکوانو عُشر به د هغې د شنو پاڼرونه ورکولې کیږی که د هغې د قیمت نه. حال داچه د تماکوانو په پخولو باندې د بهټئ، لرګو وغیره خرچې هم راځي؟ بینوا توجروا

المستفتی: غاور خان اوګی مانسهره...... ۱۹۷۵\۱۱\۱۰\۱۲

**الجواب:** د تماکوانو په دې پاڼرو کښې عُشر یا نصف عُشر ورکولو سره یا د هغې قیمت ورکولو سره (په بهټئ کښې اوچوالی نه مخکښې) به ستا ذمه فارغه شی ځکه چه د زمکې پیداوار هم دادې ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمګیریه ۱:۱۸۷ الباب السادس فی زکاة الزرع والثمار)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمګیریه ۱:۱۸۷ الباب السادس فی زکاة الزرع والثمار)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: ویؤخذ العشر عند الامام عند ظهور الثمرة وبدو صلاحها. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۸ باب العشر)



## د تورو مچو په شهدو کښې عُشر واجب دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ما د شهدو مچۍ قیمتاً اخستلې او ساتلې دی په کال کښې د یوې بکسې نه دوه پیټئ جوړیږی د هغې دپاره پیټئ، چته اود موم تخته قیمتاً حاصلوم په کال کښې دوو نه پنځه ځلو پورې شهد حاصلوم. په کال کښې ئې د موسم په لحاظ سره ګلونو دپاره مختلفو ځایونو ته وړو چه کافی کرایې پرې خرچ کیږی. په بعضې ځایونو کښې ځائې هم په کرایه اخستل پریوځی په دې شهدو کښې عُشر واجب دې یا نه؟ او که په عُشر کښې قیمت ورکړې شی نو جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام نبی........ ۱۹۹۰\۱\۸\۲۱

**الجواب:** که تا دا پیټئ په غیر خراجی زمکه کښې ایخی وی نو په تا باندې عُشر واجب دې ګڼې نه. او په عُشر کښې شهد او قیمت دواړو ورکول جائز دی.﴿۲﴾ ماخوذ از شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۲:۶۶ باب العشر ......وهوالموفق

## د فصل په تخم کښې عُشر نشته

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ علاقه کښې خلق د ګیا د پاره شوتل (ریشقه) کری. آخره کښې مې لږ شوتل د تخم دپاره پریخودلو آیا اوس به ددې تخم نه هم عُشر ویستلې کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد منیر.... ۱۹۷۶\۱۱\۶\۲۱

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: یجب العشر فی عسل وان قل ارض غیر الخراج ولو غیر عشریة کجبل ومفازة بخلاف الخراجیة لئلا یجتمع العشر والخراج. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۳ باب العشر)

﴿۲﴾ قال الحصکفی: وجاز دفع القیمة فی زکاة وعشر وخراج وفطرة ونذر وکفارة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲۴ باب زکاة الغنم)

**الجواب:** کوم ځیز چه صرف د تخم او دوایئ دپاره استعمالیږی نو په هغې کښې به عُشر نه وی (۱) وهوالموفق

## په بهوسو کښې عُشر احوط دې واجب نه دې.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د غنمو یا جوارو په بهوسو کښې عُشر واجب دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: گل حنان کوهاټ

**الجواب:** په بهوسو کښې عُشر احوط دې. عملاً علی المروی عن محمد. البته واجب نه دې (۲) وهوالموفق

## په قدرتی وښو کښې عُشر واجب نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په وښو کښې د عُشر څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: جمعه خان کند یا کوهستان...... ۱۴۰۱/۲/۱۴ھ

**الجواب:** قدرتی واښه نه مملوک دی او نه پکښې عُشر واجب دی. لانـه لا یقصد به استغلال الارض (۳) وهوالموفق

---

(۱) وفی الهندیه: ولایجب فی البزور التی لا تصلح الا للزراعة والتداوی کبزر البطیخ والنانخواه والشونیز. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۸۶ الباب السادس فی زکاة الزرع والثمار)

(۲) قال العلامة الحصکفی: الا فیما لا یقصد به استغلال الارض نحو حطب وقصب فارسی وحشیش وتبن وسعف ...... حتی لو اشغل ارضه بها یجب العشر. قال ابن عابدین: قوله وتبن: قال فی الفتح غیر انه لو فصله قبل انعقاد الحب وجب العشر فیه لانه صار هو المقصود وعن محمد فی التبن اذا یبس العشر.

(الدرالمختار مع هامش ردالمحتار ۲:۵۵ باب العشر)

(۳) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۵ باب العشر)



## د ونو په پاڼړو کښې دعُشر حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چې ونو په پاڼړو کښې عُشر واجب دې یا نه؟ حال دا چه دا پاڼړې خرڅولې شی. زمونږ په علاقو کښې د شهتوتانو پاڼړې خرڅولې شی او د علماؤ په مینځ کښې په دې مسئله کښې ډیر اختلاف دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید اسید الله بکا خیل بنوں...... ۱۲ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د ونو په پاڼړو کښې هرحال کښې عُشر واجب نه دې که په بازار کښې خرڅیږی یانه، ځکه چه د عُشر د وجوب دارومدار قصداً استنماء باندې دې.

**کما فی البحر ۲:۲۳۷ واما شرائط المحلیة فان تکون عشریة وان یکون الخارج منها مما یقصد بزراعته نماء الارض (۱)**

البته که د توت ونې لګولو نه مقصود هم دا پاڼړې وی نو په هغې کښې به عُشر واجب وی. (کما فی تنقیح الفتاوٰی ۱:۱۱ (۲) فلیراجع. وهوالموفق

## د توت په پاڼړو، ونو او څانګوکښې عُشر واجب نه دې

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه د توت په پاڼړو، ونو او څانګو کښې عُشرواجب دې یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالخالق دته خیل شمالی وزیرستان... ۱۹۹۱ء | ۵ | ۲

---

(۱) (البحر الرائق ۲:۲۳۷ باب العشر)

(۲) قال العلامة ابن عابدین: قال فی صور المسائل نقلا عن الزاهدی ما صورته قلت یمکن ان یلحق به اغصان التوت عندنا واوراقها لانه یقصد بها الاستغلال بخوارزم وخراسان وقد نص علیه فی درر الفقه فقال یجب العشر فی اوراق التوت واغصان الخلاف التی تقطع فی اوان تعلیم الکروم وغیر ذلک. (تنقیح الفتاویٰ الحامدیة ۱:۱۱ باب الزکاة والعشر)

کما فی تنقیح الفتاوٰی

**الجواب:** ددې ونو په تنو کښې عُشر واجب نه دې، کما فی تنقیح الفتاوٰی الحامدیه ۱:۱۰ وفی محیط السرخسی کل شیئ یتبع الارض فی البیع بغیر شرط فلا عشرفیه لانه بمنزلة اجزاء الارض﴿۱﴾ انتهٰی، وبمعناه فی عشر فتح القدیر شرح الهدایه ﴿۲﴾ البته کله چه په پټی کښې ونې اوکرلې شی او زمکه کښې پیداوار اوشی نوپه هغې کښې عشر واجب دې:
کما فی قاضیخان، ولو جعل ارضه مشجرة او مقصبة یقطعها ویبیعها فی کل سنة کان فیه العشر، هامش الهندیة ۱:۲۷۶ ﴿۳﴾
اود توت په پاڼرو کښې عشر واجب نه دې دکهجورو د ښاخونو په شان، لعدم قصد الاستغلال ﴿۴﴾ یدل علیه مافی الخانیة فی الحوالة السابقة وکذا صرح به الفقهاء باسرهم﴿۵﴾. وهوالموفق

## د نهر په غاړو باندې کرلې شوې ونو کښې عشر واجب نه دې

**سوال:** څه فرمائی علمائې کرام ددین دې مسئلې باره کښې چه زمونږ په علاقو

﴿۱﴾ (تنقیح الفتاوىٰ الحامدیة ۱:۱۰ باب الزکاة والعشر)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن الهمام: ولا یجب فیما یخرج من الاشجار کالصمغ والقطران ولا فیما هو تابع للارض کالنخل والاشجار لانها کالارض ولذا تستتبعها الارض فی البیع ولا فی کل بزر لا یطلب بالزراعة کبزر البطیخ والقثاء لکونها غیر مقصود فی نفسها.

(فتح القدیر ۲:۱۸۷ باب زکاة الزروع والثمار)

﴿۳﴾ (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ۱:۲۷۶ فصل فی العشر)

﴿۴﴾ قال العلامة فخر الدین الاوزجندی: ولا یجب العشر فی التبن ولا فی الحطب والحشیش والقنب والصنوبر والقصب الفارسی ولا فی سعف النخل ولا فی الطرفاء. (فتاوىٰ قاضی خان علی هامش الهندیة ۱:۲۷۶ فصل فی العشر)

﴿۵﴾ قال العلامة الحصکفی: الا فیما لا یقصد به استغلال ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



کښې د نهرونو نظام دې ددې لختو په غاړو باندې ونې کرلې شی په دې ونو کښې عشر واجب دې که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد رفیق پیرسنګ پشاور...۲۳/ ذی قعده ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** په دې وونو کښې عشر واجب نه دې:
کما فی تنقیح الفتاوىٰ ۱:۱۰ کل شیئ یتبع الارض فی البیع بغیر شرط فلا عشر فیه لانه بمنزلة اجزاء الارض ﴿۱﴾
البته ددې زمکو د حاصلاتو نه به عُشر یا نصف العشر ورکول وی. وهوالموفق

## په تهریشر کټلې شوې غنمو کښې عُشر نشته

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه تهریشر باندې کټلې شوې غنمو کښې عُشر واجب دې یانه؟ ځکه چه هغه خو مزدوری وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالودود دوسیره پشاور

**الجواب:** کوم غنم چه په اجرت کښې ورکړیشی د هغې عُشر په مُوجر باندې واجب دې په مالکِ د تهریشر باندې نه (شامي) ﴿۲﴾ وهوالموفق

## په غرانړو قدرتی ونو کښې عُشر واجب نه دې.

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ علاقو کښې غرونو باند قدرتی ونې راخیژی او خلق دا ونې تقسیموی. په د ېکښې د عُشر څه حکم دې؟ بینو اتورجروا

المستفتی: نامعلوم متعلم دارالعلوم حقانیه......۱۱۹۱۷ ۱۴۰۱ھ

(بقیه حاشیه) الارض نحو حطب وقصب وحشیش وتبن وصمغ وقطران وخطمی واشنان وشجر قطن الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۵ باب العشر)

﴿۱﴾ (تنقیح الفتاوىٰ الحامدیة ۱:۱۰ باب الزکاة والعشر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: بلا رفع مؤن ای کلف الزرع وبلا اخراج البذر لتصریحهم بالعشر فی کل الخارج. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۶ باب العشر)

الجواب: په دې ونو کښې عُشر واجب نه دې (تنقیح الفتاوٰی الحامدیة ١: ١٠) ﴿١﴾ وهوالموفق

## د کور په میوه دارو اونو او سبزو وغیره کښې عشر نه دې واجب

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په کور کښې دننه کومې میوه دارې ونې یا سبزیانې وغیره دی آیا په دې کښې عُشر واجب دې؟ بینوا توجروا

المستفتی غلام نبی.... ١٤ محرم ١٤١١ھ

الجواب: په کور کښې دننه میوه دارواونو او سبزیانو وغیره کښې عُشر واجب نه دې ځکه چه دا د کور تابع شماریږی. (وفی الشامیة ٢: ٦٦ وخرج ثمر شجر فی دار رجل ولو بستانا فی داره لانه تبع للدار كذا فی الخانية ﴿٢﴾ وهوالموفق

## کښکونکی، تهریشر والا، لوهار او ترکاڼ ته ورکونکو غنمو کښې عُشر په زمیندار دې

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کله غنم تیار شی نو تهریشر والا د کټایئ حصه اخلی لوهار او ترکاڼ ته د هغوی حصه ورکولې شی د امام مسجد او استاذ حصه هم ورکولې شی دې ټولو ته ورکونکو غنمو

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدين: وفی محيط السرخسی كل شیئ يتبع الارض فی البيع بغير شرط فلاعشر فيه. (تنقيح الفتاوىٰ الحامدية ١: ١٠ باب الزكاة والعشر)

وقال ابن نجيم: وكذا لا عشر فيما هو تابع للارض كالنخل والاشجار لانه بمنزلة جزء الارض لانه يتبعها فی البيع الخ. (البحر الرائق ٢: ٢٣٨ باب العشر)

وفی الهندية: ولا عشر فيما هو تابع للارض كالنخل والاشجار.

(فتاوىٰ عالمگيريه ١: ١٨٦ الباب السادس فی زكاة الزروع والثمار)

﴿٢﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٥٣ باب العشر)



کښې عُشر په مونږ واجب دې یا په دوی؟ بینواتوجروا

المستفتی: شاد محمد اخوروالی کوهاټ...... ٢٣ رمضان ١٤٠٣ھ

الجواب: کوم غنم چه کټائی والا درمن ته وړلو والا، لوهار ترکاڼ وغیره ته بطور اجرت ورکولې کیږی. په دغه ټولو کښې عُشر په دې زمیندار باندې دې، په نور چا باندې نه. (هندیه، شامي، هدایه، وغیره) ﴿٢﴾ وهوالموفق

## د زمکې پیداوار په زمکه خرچ کول او قرض د عُشر مانع نه دې.

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یو سړی زمکه شاړه ده. ددې شاړې زمکې نه چه څه حاصلیږی هغه واپس په دې شاړه زمکه باندې لګی نو آیا په دې باندې عُشر واجب دې یا نه؟ بله دا که یو سړې د چا نه قرض واخلی زمکه پرې واخلی ددغې زمکې نه حاصل شوی امدن باندې مخکښې د ادائیګئ د قرض نه عُشر لازم دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی محمد جان سپین کوټ چارسده...... ٢١٧١١٩٦٩

الجواب: د زمکې په پیداوار کښې عُشر یا نصفِ عشر بهرحال واجب دې برابره

﴿١﴾ وفی الهندية: ولا تحسب اجرة العمال ونفقة البقر وكرى الانهار واجرة الحافظ وغير ذلك فيجب اخراج الواجب من جميع ما اخرجته الارض عشرا.

(فتاوىٰ عالمگيريه ١: ١٨٧ الباب السادس فی زكاة الزرع والثمار)

وفی الشامية: بلا رفع مؤن ای كلف الزرع وبلا اخراج البذر لتصريحهم بالعشر فی كل خارج. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ٢: ٥٦ باب العشر)

وقال المرغينانی: وكل شیئ اخرجته الارض مما فيه العشر لا يحتسب فيه اجر العمال ونفقة البقر، قال ابن الهمام: وكرى الانهار واجرة الحارس وغير ذلك يعنی لا يقال بعدم وجوب العشر فی قدر الخارج الذی بمقابلة المؤنة بل يجب العشر فی الكل.

(هداية مع فتح القدير ٢: ١٩٤ باب زكاة الزروع والثمار)

خبره ده چه دغه پیداوار ددغی زمکې په آبادئی باندې خرچ کړې یا ئې په نورو ضروریاتو کښې خرچ کړې او که دا مالک مقروض وی او که غیر مقروض وی.ځکه چه د عُشر تعلق د خارج شوې څیزاو پیداوار سره دې د مالک سره نه.(وفی الدرالمختار (یجب) بلا شرط نصاب وبلا شرط بقاء وحولان حول لان فیه معنی المؤنة ولذا کان للامام اخذه جبرًا ویؤخذ من الترکة ویجب مع الدین﴿۱﴾ وهوالموفق

## د پیداوار نه به د اجارې رقم نه شی منها کولې

**سوال**:علمائې دین دې مسلې باره کښې څه فرمائی چه بنده تقریباً شپږ کناله زمکه شپږ سوه روپئ اجاره کړې ده. په هغې تقریباً د پنځه ځلویښت سوه روپو د ګنی فصل کیږی اوس به څه د مذکوره رقم نه عُشر ادا کوم اوکه نه شپږ سوه به ترنه منها کړم نو باقی نه به عشرادا کوم؟ بنیو اتوجروا

المستفتی:شمشاد نوشهره.....۲۳ جمادی الاول ۱۴۰۳ھ

**الجواب**: په دې کښې زکوة الارض (عشر) لازم دې. چه په ټول پیداوار باندې به بغیر د خرچې منفی کولو نه لازمیږی.(کما فی شرح التنویر بلا رفع مؤن ای کلف الزرع وبلااخراج البذرلتصریـــحهم بالعشر فی کل الخارج﴿۲﴾ وهوالموفق

## د زمکې پیداوار کښې به د یوې وغیره خرچه نه منها کیږي

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې په زمکه کښې کرونده اوکړه اوشل منه فصل ئې حاصل کړولیکن په تیارو لوئې پنځه سوه روپئ خرچه هم راغله اوس به عُشر د پوره شلو منو ورکول وی یا به ترې نه پنځه سوه روپۍ منفی کړی باقی نه به عُشر اداکړي؟ بینوا توجروا

المستفتی: امیر نوشاد بټ خیله ملاکنډ ایجنسی.......۲۳\۲\۱۹۸۲

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۴ باب العشر)

﴿۲﴾ (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ۲:۵۶ باب العشر)



**الجواب**:عُشر اونصف العشربه د ټول پیداوارنه ورکولې کیږی.په یوه، کرونده وغیره چه کومه خرچه شوې ده هغه به ترې نه نه منفی کیږی.﴿۱﴾ وهوالموفق

## د باغونو عُشر په بائع دې که په مشتري؟

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه میوه جات د پخیدلو نه مخکښې خرڅولې شی او د پخیدلو نه پس پریکولې شی دې صورت کښې عُشر په بائع باندې واجب دې یا مشتری باندې؟بینواتوجروا

المستفتی:عبدالرحمن کوئټه......۵\۸\۱۹۷۵

**الجواب**:واضحه دې وی چه موجوده وخت کښ د باغونو سوداګانې باطلې دی یا فاسدې دی. د میوه جاتو ظاهریدلونه مخکښې باطل ده اود میوه جاتو د پخیدلو نه مخکښې فاسده ده. ځکه چه په ونو باندې باقی پاتې کول معروف عامه دی چه د عقد دپاره مفسد دې.(صرح به الشامي)﴿۲﴾ او په عقد فاسد کښې ملک په قبض سره حاصل او ثابتیږي ﴿۳﴾ په صورت مسئوله کښې که مشتری دپخیدلونه مخکښې قبض اوکړو نوپه مشتری باندې عُشر

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفی: بلا رفع مؤن ای کلف الزرع وبلا اخراج البذر لتصریحهم بالعشر فی کل الخارج. (الدرالمختار علیٰ هامش ردالمحتار ۲:۵۶ باب العشر)

﴿۲﴾قال العلامة ابن عابدین: قوله ظهر صلاحها او لا: قال فی الفتح لا خلاف فی عدم جواز بیع الثمار قبل ان تظهر ولا فی عدم جوازه بعد الظهور قبل بدو الصلاح بشرط الترک ولا فی جوازه قبل بدو الصلاح بشرط القطع فیما ینتفع به ولا فی الجواز بعد بدو الصلاح لکن بدو الصلاح عندنا ان تومن العاهة والفساد...... قال فی الفتح ولو اشتراها مطلقا ای بلا شرط قطع او ترک فاثمرت ثمراً آخر قبل القبض فسد البیع...... الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴:۴۲ مطلب فی بیع الثمر والزرع والشجر مقصوداً)

﴿۳﴾وفی الهندیة: واما الفاسد...... فانه ینعقد البیع بقیمة المبیع ویملک عند القبض کذافی محیط السرخسی. (فتاویٰ عالمگیریه ۳:۱۴۷ الباب الحادی عشر فی احکام البیع الغیر الجائز)

واجب دي ګڼي په بائع به واجب وی.《۱》 وهوالموفق

## د اجارې په صورت کښې عُشر په چا واجب دې؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو مالک خپله زمکه په لس منه اجاره باندې په دې شرط ورکړه چه د کال تیریدلو نه پس به ماته لس منه راکوې. اوس یو کال پس به په دې لس منه غنمو عُشر څوک ادا کوی د زمکې مالک یا اجاره دار؟ بینواتوجروا

المستفتی: ملت خان متعلم حقانیه اکوړه...... ۲۹۱۱۱۱۹۹۰

**الجواب:** غالبًا مستاجرته بچت زیات کیږی لهذا د ټول پیدوار عشر یا نصف عشر په مستاجر باندې واجب دې.نو که دا لس منه ددې اجاره شوې پټې پیداوار وی نو ددې عُشر یا نصف العشر به ددې مستاجر په ذمه واجب الاداء وی. 《۲》 وهوالموفق

## د عُشر او اجاره مختلفې مسئلې

**سوال:** علمائې دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کله مستاجر موجر ته تقریبا ۵۰۰ روپۍ مخکښې ورکړې او دا خبره ورسره او کړې چه د یو کال برابر به پنځوس روپۍ سوزی. (۱) اول د جواب طلب خبره چه د پنځه سوه روپو زکوة او قربانی په مستاجر واجب کیږي؟ حال دا چه رقم د هغه د قبضې نه وتلې دې او که نه په موجر باندې واجب کیږي؟ ځکه چه پیشګی رقم د هغه په قبضه کښې دې. (۲) چه کله مستاجر ته د پنځوس روپو سوزیدلو نه

《۱》قال العلامة الحصکفی: ولو باع الزرع ان قبل ادراکه فالعشر علی المشتری ولو بعده فعلی البائع. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۰ باب العشر)

《۲》قال العلامة الحصکفی: والعشر علی المؤجر کخراج موظف وقالا علی المستأجر کمستعیر مسلم وفی الحاوی وبقولهما ناخذ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۰ باب العشر)



علاوه پنځوس روپۍ نفع ملاؤ شی چه د مجموعې حاصل سل روپۍ راځی نو عُشر په سلو ټولو روپو کښې واجب دې یا د سوزیدلو پنځوسو نه علاوه نورو پنځوسو ګټې والا روپو کښې؟(۳) دا عُشر په مؤجر باندې واجب کیږي،یا په مستاجر باندې؟ (۴) مطلق مزارعت چه په نیمه نیمه باندې وی نو عُشر به په مزارع باندې خپله نیمه کښې واجب الاداء وی او مالک باندې خپله نیمه کښې او که نه؟(۵) حکومت وخت ته مالیه (آبیانه) ورکولو سره عُشر کښې څه تحفیف شته یا نه؟(۶) په رهن او کاشت رهن کښې ممانعت یوشان دې او که څه فرق پکښې شته؟ حال دا چه عرفاً په دواړو کښې دا فرق دې چه په رهن کښې مرتهن د نقصان ذمه دار نه وی بلکه د نفع د پاره دا معامله کوی.او د کاشت رهن صورت دا وی چه د زمکې مالک د مزارع (زمیندار) نه رقم مخکښې واخلی او زمکه مزارع ته د فصل او کروندې دپاره حواله کړی او د مزارع سره په نیم پیدا وار اخستلو باندې معامله اوکړی او چه کله د زمکې مالك اوغواړی چه دده نه زمکه واخلی بل مزارع ته ئې ورکړی نو مالک مزارع ته هغه پیشګی رقم پوره واپس کوی. (۷) چه کله یو ګوجر دوکاندار نه دوه سوه روپۍ پیشګی واخلی او دا مصالحت اوکړی چه څه به تا ته روزانه دوه سیره پۍ درکوم آیا دا معامله صحیح ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا عبدالسمیع حقانی...... ۱۷۱۱۱۱۹۷۲

**الجواب:** (۱) دا پیشګی رقم په حقیقت کښې قرض دې لهذا د سوزیدلې شوې مقدار نه د علاوه رقم زکوة په مستاجر باندې واجب دې《۱》(۲) عُشر د مجموعه حاصلات نه ادا کول ضروری دی. 《۲》په دې کښې مقدار د اجرت (مثلاً پنځوس روپۍ) مستثنی نه دی. صرح به فی جمیع الکتب.(۳) مفتٰی به د صاحبینو قول دې (صرح به فی الدرالمختار) دغه شان غالباً مستاجر

《۱》قال العلامة الحصکفی: واعلم ان الدیون عند الامام ثلاثة قوی ومتوسط وضعیف فتجب زکاتها اذا تم نصابا وحال الحول لکن لا فورا بل عند قبض اربعین درهما من الدین القوی کقرض وبدل مال تجارة فکلما قبض اربعین درهما یلزمه درهم.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۸ باب زکاة المال)

《۲》قال العلامة الحصکفی: بلا رفع مؤن ای کلف ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

نه بچت او نفع ډیره وی لهذا عشر به په مستاجر واجب وی.(۴) مفتی به قول ذ صاحبینو دي لهذا په هر یو باندې به د خپل خپل نصف نه عُشر ادا کول وی. (درمختار) ﴿۲﴾ (۵) هیڅ تخفیف نه کیږی ځکه چه نه د عُشر نیت وی او نه د مصرف لحاظ ساتلې کیږی.

(۶) که دا رقم په عقد د مزارعت کښې مشروط نه وی نو په دې جدید معامله کښې هیڅ نقصان نشته.(صرح به فی البحر ۶\۱۸۵) ﴿۳﴾

(۷) دا رقم قرض دې و دیعت نه دې او دا معامله جائز ده هره ورځ به بیع تعاطی منعقد کیږی. ﴿٤﴾ ونظیره ما فی ردالمحتار ۱۳\۴_

**ملاحظه**: که د تفصیل ضرورت وی نو صرف یو سوال راولیږه. اووه سوالونه نهٔ. وهو الموفق

(بقیه حاشیه) الزرع وبلا اخراج البذر لتصریحهم بالعشر فی کل الخارج.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۶ باب العشر)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: والعشر علی المؤجر کخراج موظف وقالا علی المستأجر کمستعیر مسلم وفی الحاوی وبقولهما ناخذ.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۰ باب العشر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وفی المزارعة ان کان البذر من رب الارض فعلیه ولو من العامل فعلیهما بالحصة. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۱ باب العشر)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم: بان قال زارعتک ارضی علی ان تقرضنی کذا او ان قدم فلان لانها اجارة فلا یصح تعلیقها بالشرط کالاجارة...... ثم قال بعد تفریعات کثیرة هذا کله فی الشرط النافع لاحدهما وان شرطا لا ینفع کما لو شرط ان لا یسقی احدهما حصته لا تفسد المزارعة وفیما اذا کان شرطا مفسدا لو ابطلاه ان الشرط فی صلب العقد لا ینقلب جائزا والاعاد جائز الی آخر ما فیها. (البحر الرائق ۶: ۱۸۵ باب المتفرقات)

﴿۴﴾ قال العلامة ابن عابدین: ومن بیع التعاطی تسلیم المشتری ما اشتراه الی من یطلبه بالشفعة فی موضع لا شفعة فیه. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۴: ۱۳ مطلب البیع بالتعاطی کتاب البیوع)



## د اجارې او مزارعت په مختلفو صورتونو کښې د عُشر د وجوب مسئله

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په ریاست سوات کښې به عُشر د سوات والی جهانزیب عبدالحق صاحب وصول کولو. اوس د حکومت ختمیدلو سره د عُشر نظام هم ختم شوې دې. اوس زمونږ د پاره لاندینی مسئلې نوې دی دوضاحت ضرورت ئې دی. (۱) بعضې خلق د ټول کال د پاره خپله زمکه په معلومو روپو باندې ورکوی اوس به عُشر مالک ورکوی که زمیندار (کسان). ؟ (۲) بعضې خلقو زمکه د یو کال په فصل باندې ورکړې ده مثلاً څلور منه جوار او دوه منه غنم به مالک ته ورکوی نو دې صورت کښې به عُشر څوک ادا کوي؟ (۳) بعضې خلقو زمکې په نیم فصل ورکړې دی یعنی چه کوم فصل اوشی نیم ستا اونیم زما اوس به عُشر څوک ادا کوي؟ (۴) بعضې خلق زمکه په پنځه حصه باندې ورکوي، مالک هم کار کوی او کسان هم اوس پهٔ وزن کونکې کسان او مالک باندې مجموعی طور سره عُشر دې یا ځان ځانته او یا صرف مالک باندې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ محمد ارشاد دیولئ سوات.......... ۲۹\۶\۱۹۷۴

**الجواب**: (۱-۲) دا دواړو داجارې صورتونه دی او مستاجرته غالباً ډیربچت کیږی لهذا عُشر به هغه باندې واجب وی مالک باندې نه، (درمختار مع رد المحتار) ﴿۱﴾ (۳) داد مزارعت صورت دې. په دې کښې عُشرپهٔ مالک اومزارع

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: والعشر علی المؤجر کخراج موظف وقالا علی المستأجر، قال العلامة ابن عابدین قلت: لکن فی زماننا عامة الاوقاف من القریٰ والمزارع لرضا المستأجر بتحمل غراماتها ومؤنها یستأجرها بدون اجرا لمثل بحیث لاتفی الاجرة ولا اضعافها بالعشر او خراج المقاسمة فلا ینبغی العدول عن الافتاء بقولهما فی ذلک لانهم فی زماننا یقدرون اجرة المثل بناء علی ان الاجرة سالمة لجهة الوقف ولاشیئ علیه من عشر وغیره اما لو اعتبر دفع العشر من جهة الوقف وان المستاجر لیس علیه سوی الاجرة فان اجرة المثل تزید اضعافا کثیرة کما لا یخفیٰ فان امکن اخذ الاجرة کاملة.....(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

دوارو باندې د خپلو خپلو حصونه ورکول واجب دی. (در مختار) ﴿۱﴾ (۴)
مذکوره صورت نه اجاره ده او نه مزارعت، بلکه دا کسان مزدور دی لهذا
دا ټول پیداوار به د مالک وی او د ټول عُشر به د هغه په ذمه واجب الادا وی
او د عقد فاسد په وجه به ټول ګنهګاران وي (هدایه، درمختار، شامي) او دې
مزدوراو وزن کونکی ته به اجر مثل ورکولې شی ﴿۲﴾ (لکون الاجارة فاسدة
لجهالة الاجرة) او که د اجرمثل په عوض کښې په دې خاص غله باندې طرفین
راضی شی نو دا هم جائز ده. وهوالموفق

## په مستاجر باندې د عُشر اشتراط مفسد د عقد نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه کښې
زمکې په اجاره ورکولې کیږی دهغې عُشر په مالک دې که په مستاجر؟ که
په مالک باندې وی نو بیا د زمکې مالک په مستاجر باندې دا شرط
اولګوی چه ددې زمکه عُشر به ته ادا کوې او که نه بالعکس شرط اولګوی.
نو ددې قسم شرط لګولو سره د مالک ذمه ماخوذ ده یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سمیع الله کالام ضلع سوات.... ۲۰۱۱۲۱۱۹۷۱

**الجواب:** غالبًا مستاجر ته ډیر بچت کیږی په دې وجه د مفتی بهِ قول په بنا د

---

(بقیه حاشیه) یفتی بقول الامام والا فبقولهما لما یلزم علیه من الضرر الواضح الذی لا یقول به احد. (الدر المختار مع هامش ردالمحتار ۲:۶۰ باب العشر)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وفی المزارعة ان کان البذر من رب الارض فعلیه ولو من العامل فعلیهما بالحصة. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۱ باب العشر)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: وفی شرح درر البحار عشر جمیع الخارج علی رب الارض عنده لان المزارعة فاسدة عنده فالخارج له اما تحقیقا او تقدیرا لان البذر ان کان من قبله فجمیع الخارج له وللمزارع اجر مثل عمله. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۱ مطلب هل یجب العشر علی المزارعین فی الاراضی السلطانیة باب العشر)



عُشر وجوب په مستاجر باندې کیږی. ﴿۱﴾ لهذا په مستاجر باندې ددې
شرط لګول عقد لره مفسد نه دې. وهوالموفق

## د مزارعت په صورت کښې د عُشر حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د مزارعت په صورت
کښې عُشر په چا باندې واجب دې په مزارع که په مالک باندې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالرحیم باجوړ ایجنسی....... ۲۱۱۷۱۱۹۷۹

**الجواب:** د مزارعت په صورت کښې به مالک او مزارع هر یو د خپلې خپلې
حصې نه عشر ادا کوی (لان الفتوٰی علی قول ابی یوسف ومحمد فی باب المزارعة
﴿۲﴾ او د اجارې په صورت کښې عُشر په مستاجر باندې واجب دې په موجر
باندې نه. خصوصاً چه هرکله مستاجر ته بچت هم زیات کیږی. (وتمام الکلام
فی شرح التنویر مع رد المحتار باب العشر ﴿۳﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: والعشر علی الموجر کخراج موظف وقالا علی المستاجر کمستعیر مسلم وفی الحاوی وبقولهما ناخذ. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۰ باب العشر)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین: والحاصل ان العشر عند الامام علی رب الارض مطلقا وعندهما کذلک لو البذر منه ولو من العامل فعلیهما وبه ظهر ان ما ذکره الشارح هو قولهما اقتصر علیه لما علمت من ان الفتویٰ علی قولهما بصحة المزارعة فافهم...... ان العشر علی رب الارض عنده علیهما عندهما من غیر ذکر هذا التفصیل وهو الظاهر لما فی البدائع من ان المزارعة جائزة عندهما والعشر یجب فی الخارج والخارج بینهما فیجب العشر علیهما. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۱ باب العشر)

﴿۳﴾ قال ابن عابدین: (والعشر علی المؤجر وقالا علی المستاجر) ای لو اجر الارض العشریة فالعشر علیه من الاجرة کما فی التتارخانیة وعندهما علی المستأجر قال فی فتح القدیر لهما ان العشر منوط بالخارج وهو للمستأجر...... (قوله وفی الحاوی وبقولهما ناخذ)...... قلت لکن فی زماننا عامة الاوقاف من القریٰ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د مشین په ذریعې اوبه شوې فصل کښې شلمه واجب ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کومه زمکه چه په غویانو وغیره (یعنی ارهټ) سره اوبه کیږی په هغې کښې شلمه واجب ده اوس که په دې کوهی باندې مشین ولګولې شی نو آیا دیکښې به هم شلمه واجب کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: دوست محمد میاں منډی پشاور....۲۵ رمضان۱۴۰۲ه

**الجواب:** په مشین کښې هم مؤنت او مشقت موجود دې نو په دې سره اوبه شوې زمکه کښې به هم شلمه واجب وي﴿۱﴾وهو الموفق

## په کاریز سره اوبه شوې زمکه کښې د عُشر مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه کښې

(بقیه حاشیه)والمزارع لرضا المستأجر بتحمل غراماتها ومؤنها یستأجرها بدون اجر المثل بحیث لا تفی الاجرة ولا اضعافها بالعشر او خراج المقاسمة فلا ینبغی العدول عن الافتاء بقولهما فی ذلک لانهم فی زماننا یقدرون اجرة المثل بناء علی ان الاجرة سالمة لجهة الوقف ولا شیئ علیه من عشر وغیره اما لو اعتبر دفع العشر من جهة الوقف وان المستأجر لیس علیه سوی الاجرة فان اجرة المثل تزید اضعافا کثیرة کما لا یخفیٰ فان امکن اخذ الاجرة کاملة یفتی بقول الامام والا فبقولهما لما یلزم علیه من الضرر الواضح الذی لا یقول به احد. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۶۰ مطلب هل یجب العشر علی المزارعین فی الاراضی السلطانیة)

﴿۱﴾وفی الهندیة: وما سقی بالدولاب والدالیة ففیه نصف العشر وان سقی سیحا وبدالیة یعتبر اکثر السنة فان استویا یجب نصف العشر.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۸۶ الباب السادس فی زکاة الزرع والثمار)



کاریزونه دی چه په هغې باندې لکهونه روپئ خرچه کیږی او په کلیزه صفایئ باندې ئې هم زرګونه روپئ خرچه کیږی په دې اوبو سره حاصل شوې پیداوار کښې به عُشر لازم وی که نصفِ عُشر؟ بینواتوجروا

المستفتی: حافظ حبیب الرحمان وانا کیمپ............۱۹۷۴\۱۲\۹

**الجواب:** ظاهری طور سره کاریز باندې د اوبه شوې زمکې په پیداوار کښې عُشر واجب کیږی.

لحدیث البخاری او کان عثریا﴿۱﴾ وقالوا العاثور شبه نهر یحفر فی الارض یسقی به البقول والنخل والزرع، ولانه لم یشق بآلة کما اشار الیه کلام البحر ۲:۲۳۸ فلیراجع﴿۲﴾ ویمکن ان یقال ان المدار علی کثرة المؤنة کما اشار الیه صاحب الدر المختار انتهیٰ﴿۳﴾. وهو الموفق

## د مالئې په نهری زمکو د عُشر او نصف عُشر په مسئله کښې مناظره او فیصله

**سوال:** د سلامونو او آدابونو نه پس عرض کونکې یم! چه علاقه لوند خوړمقام

﴿۱﴾عن عبد الله بن عمر عن النبی ﷺ قال فیما سقت السماء والعیون او کان عثریا العشر وما سقی بالنضح نصف العشر، رواه البخاری، وعلیٰ هامش المشکوٰة فی حاشیة الغرغشتویة: قوله او کان عثریا: العثری ما سقتها السماء وکذا ذکره التور پشتی وبعض الشراح ولا یخفیٰ انه یلزم منه التکرار وعطف الشیئ علی نفسه فالحق ما ذکره بعض آخرون من ان العثری ما سقی بالعاثور والعاثور شبه نهر یحفر فی الارض یسقی به البقول والنخل والزرع والعثری یجیئ بمعنی الفارغ من الدنیا والآخرة، لمعات.

(هامش مشکوٰة المصابیح حاشیة غرغشتویة ۱:۱۷۴ کتاب الزکاة فیما تجب فیه)

﴿۲﴾قال العلامة ابن نجیم: ای ویجب نصف العشر فیما سقی بآلة للحدیث.

(البحر الرائق ۲:۲۳۸ باب العشر)

﴿۳﴾قال العلامة الحصکفی: نصفه فی مسقی غرب ای دلو کبیر ودالیة ای دولاب لکثرة المؤنة. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۵ باب العشر)

منعقد شوه. چه په هغې دوپيز کښې يوه اجتماع د شرعى مسئلې په غرض منعقد شوه. چه په هغې کښې ددوه لويو علماؤ مينځ کښې مناظره اوشوه په دې خبره چه موجوده نهرى زمکو باندې حکومت ماليه اخلى عُشر دې يا نصف عشر؟ يو مولانا صاحب د جامع الرموز وغيره کتابونو نه معتبر عبارتونو سره اوَ بالخصوص د علامه شامى جلد دويم دې.عبارت لان المعتمد عندنا ان شراء الشرب لايصح سره ئې د عُشر ثبوت او وجوب ثابتولو او د دويم فريق مولانا صاحب ددې عبارت په بناء چه (وقيل ان تعارفوه صح، دې سره ئې د نصف العشر وجوب ثابتولو.په مذکوره اجتماع کښې دريم ګړې او جج حضرت مولانا شفيع الله ! فاضل حقانيه مقررشوې وو نو د مبحث نه پس مولانا شفيع الله د فيصلې اعلان اوکړو چه، لان المعتمد عندنا سره د عُشر افضليت ثابتيږى او په قيل ان تعارفوه،، سره نصف عُشر خو بيا هم مسئله مجمله پاتې شوه. تاسو صاحبان دا اختلافات، شکَونه او وهمونه ختم کړى ددې مسئلې متعلق خپله رائې واضحه کړئ؟ بينوا توجروا

المستفتى:مولانا عبدالرحمان لوند خوړ مردان

**الجواب:** دا مسئله په کتب الفروع کښې صراحةً نشته په دې وجه پکښې علماء خپل مينځ کښې اختلاف لرى. زمونږ په قاصره رائې کښې د نصف العشر وجوب راجح معلوميږى. ځکه چه دا آبيانه ثمن نه دې.(لعدم صحة بيع الماء الغير المحرز فليراجع الى باب الشرب﴿١﴾ بلکه دا آبيانه په مؤنت کښې داخل ده. ځکه چه حکومت په دې سره باقاعده دنهر انتظام کوى او دا د پټو والاؤ نه د يو قانون په طور سره وصول کوى او د ډيرې خرچې دعلت په وجې سره د نصف عُشر وجوب ظاهر دې.

**يدل عليه تعليل الفقهاء قال فى الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۹ نصفه فى مسقى غرب اى دلو کبير ودالية اى دولاب لکثرة المؤنة انتهىٰ﴿۲﴾ قلت ولا فرق بين الاصالة**

**﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله ولا يصلح الماء) اى ماء الشرب الغير المحرز. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۳۱۷ فصل الشرب)**

**﴿۲﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۵۵ باب العشر)**



**کما فى البير وبين الوکالة کما فى النهر فافهم﴿١﴾. وهوالموفق**

## په بارانى او د مالئې والا نهرى زمکو په عُشر کښې فرق

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائى چه د عُشر په باره کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله قول دې (ماخرج الارض ففيه العشر ليکن د ګنى يا تماکوانو په فصل باندې ډير زياته خرچه راځى مثلاً ماليه، خاوره وغيره، آيا ددې خرچې په وجې سره د عُشر په حکم کښې تغير راځى حال دا چه دا زمکې نهرى دى. او فقهاء وائى چه په نهرى زمکو کښې عُشر دې؟ بينواتوجروا

المستفتى: سيد ګل بادشا کوټک ترناب چارسده.....۱۳ذى الحجه ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** که دا زمکې د کوهى په اوبو باندې اوبه کيږى نو په هغې کښې نصف العشر يعنى شلمه واجب ده.يعنى دټول پيداوار (لماروواه البخارى مرفوعا فيما سقت السماء والعيون اوکان عثريا العشر وما سقى بالنضح نصف العشر (مشکوٰة ۱۷۴)﴿۲﴾ اوټولو فقهاؤ په دې باندې تصريح کړيده،اوکه دا زمکې نهرى وى نو په ديکښې لسمه حصه ورکول بهتردى. اود آبيانې په صورت

**﴿١﴾ وفى المنهاج: اعلم ان ما سقته الانهار التى يأخذ الحکومة بالسقى منها الخراج ما يقال له بالفارسية "آبيانه" قيل يجب فيه العشر لانه سقى بالانهار والعاثور دون النضح وقيل الوجه فى وجوب العشر انه سقاه بماء اشتراه وفيه الماء الغير المحرز لا يصح بيعه وشراءه، وقال شيخنا (الغرغشوى) يکفى فيه آداء نصف العشر لان منشأ وجوب نصف العشر کما فى شرح التنوير کثرة المؤنة وهى ههنا متحققة بلاريب، وبالجملة ان المأخوذ منهم هى المؤنة دون الثمن لان ارباب الحکومة انما يأخذونها لبقاء هذا النظام لا يخطر ببالهم معنى البيع والشراء فافهم.**

**(منهاج السنن شرح جامع السنن ۳:۱۵۳ باب الصدقة فيما يسقى بالانهار)**

**﴿۲﴾ (مشکوٰه المصابيح ۱:۱۵۹ باب ما يجب فيه الزکوٰة الفصل الاول کتاب الزکاة)**

وفی کتب الشافعیة او سقاه بماء اشتراه وقواعدنا لاتاباه﴿١﴾ او واضحه دې وی که په نهری زمکه کښې آبیانه د شرب ثمن وی او د بیع شرطونه موجود وی نو د نصُف العشر په وجوب کښې هیڅ اشتباه نشته. او که دا آبیانه د نهر داصلاح او حفاظت دپاره وی نو بیاهم دنصف العشر حکم صحیح دې ځکه څنګه چه د بیع په کښې شلمه ورکول هم کافی دی (لما فی الدرالمختار: اوبو باندې اوبه شوې فصل کښې د نصف العشر وجوب منصوصی نه د بلکه د ډیرې خرچې په وجه سره دې نو دغه شان په دیکښې هم کثرت مؤنت موجود دې. ﴿٢﴾ وهوالموفق

## عشر به په مالیه کښې نشی ورکولې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یو سړی د عشر غنم دی او حکومت دهغه نه د ټول جائیداد مالیه (ټیکس) هم وصول کوی آیا دا سړې دغې عُشر لره په حکومتی مالیه کښې ورکولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.........

**الجواب:** عُشر په مالیه کښې ورکول خلافِ احتیاط دی. او په عبادتونو کښې احتیاط باندې عمل کول ضروری دی.

**(وفی الهدایة ١:١٧٢) وقیل اذا نوی بالدفع التصدق علیهم سقط عنه وکذا الدفع الی کل جائر لانهم بما علیهم من التبعات فقراء والاول احوط انتهیٰ﴿٣﴾. وهوالموفق**

---

**﴿١﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢:٥٥ باب العشر)**

**﴿٢﴾ قال العلامة الحصکفی: ویجب نصفه فی مسقی غرب ای دلو کبیر ودالیة ای دولاب لکثرة المؤنة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢:٥٥ باب العشر)**

**﴿٣﴾ (هدایة علی صدر فتح القدیر ٢:١٥٠ فصل ولیس فی الفصلان والحملان والعجاجیل صدقة کتاب الزکاة)**



## د اجارې په عُشرکښې د امامانو اختلاف او د نهری زمکو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د زمکې مالک او زمیندار کښې کوم یو باندې عُشر واجب دې؟ امام صاحب رحمه الله فرمائی چه عُشر په زمکې والا باندې دې. او صاحبین فرمائی چه په کاشتکار باندې دې. بله دا امام صاحب په دې خبره کښې د صاحبینو قول ته رجوع کړیده یعنی په مذهبِ احناف کښې غالبًامتفق علیه مسئله داشوه چه عُشر په مزارع باندې دې. او خلقو دا مسئله جوړه کړیده چه په زمکې والا باندې عُشر ورکول لازمی کوی. بله دا چه دا خلق شلمه حصه ورکوی. او وائی چه زمونږ خرچه ډیره ده. مالیه او آبیانه ورکوو. حال داچه ددغې خرچو هیڅ اعتبار نشته. ځکه چه دا زمکې اصل کښې نهری نه دی بلکه د اول نه بارانی دی او که نهر راغلې دی نو ددې دپاره. (وما کراه العجم فهو کالسیح په حکم کښې کیدل پکار دی. بله دا چه په دغه نهری زمکو کښې اګر چه خرچه ډیره ده لیکن امدن ئې هم د حد نه ډیر دې او په رکعت (ارهټ) کښې خرچ ډیر دې او آمدن کم نو نهری زمکې په ارهټی زمکو باندې قیاس کول دحق نه بعید دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید غلام قیس خطیب مرهتی طورو مردان ١٣٩٣\٦\٢٥ هـ

**الجواب:** واضحه دې وی چه د اجارې په صورت کښې به عُشر په مستاجر واجب وی ځکه چه غالبًا هغه ته بچت زیات کیږی او که مستاجر ته کم بچت اوشو نود امام ابو حنیفه په قول باندې به فتوی ورکولې شی.

**کما فی الدرالمختار وردالمحتار ٢:٨٥ والعشر علی الموجر وقالا علی المستاجر وفی الحاوی وبقولهما نأخذ، قلت ولکن افتیٰ بقول الامام جماعة من المتاخرین قلت لکن فی زماننا عامة الاوقاف من القریٰ والمزارع لرضا المستاجر یتحمل غراماتها ومؤنها یستأجرها بدون اجر المثل فلا ینبغی العدول عن الافتاء بقولهما فی ذلک (الی ان قال)**

فان امکن اخذ الاجرة کاملة یفتی بقول الامام والا فبقولهما (بحذف)﴿١﴾ او کوم نهرونه چه کافرانو کنستلي وی او مفتو کښې مسلمانانو ته ملاؤ شوي دی نو دهغې اوبه عشری دي.

کما یدل علیه ما فی ردالمحتار ۳: ۳۵۹ باب العشر والخراج﴿٢﴾ پس د آبپاشی په صورت کښې ددې د پیداوار نه نصف العشر ورکول کافی دی.

کما یدل علیه تعلیل درالمختار ونصفه فی مسقی غرب ودالیة لکثرة المؤنة﴿٣﴾ لان ما یأخذه الحکومة لیس بثمن لعدم ارادتهم بیع الماء ولعدم صحة بیع الماء الغیر المحرز بل هو مؤنة وسبب لبقاء هذا الماء وهذا النظام نظام الانهار. وهو الموفق

## په مشترکه نهر باندی ظالمانه قبضه اودآبیانې په صورت کښې دعشر مسئله

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی (۱) یو نهر دپخو انه مشترک راروان دی لیکن یوقوم د قومیت د تعصب او زور په وجه دغه نهر باندې قبضه اچولې ده او دنورو خلقو نه دجریب په سر دوه منه کم و بیش اخلی یعنی داوبو ئی باقاعده قیمت مقرر کړی دی اوس په علماؤ کښې اختلاف دی بعضی عشراو بعضی دخرچې په وجه نصف عشر وائی او دپخوا نه دا خلاقې والا عشر ورکوی نو آیا مونږ عُشر ورکوو که نصف عشر؟ (۲) دغه ان دا اوبه دالله په قدرت دچینو او غرونو نه راځی او نهر نه چا جوړ کړې

---

﴿١﴾ (الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۶۰ مطلب هل یجب العشر علی المزارعین فی اضی باب العشر)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله بماء العشر) والحاصل انه ما کان علیه ید الکفرة ثم سناه قهرا وما سواه عشری. (ردالمحتار ۳: ۲۸۴ مطلب فی خراج المقاسمة باب العشر راج والجزیة کتاب الجهاد)

﴿٣﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۵ باب العشر)





دی او نه حقیقتاً دچا ملکیت دی آیا دې خاص قوم لره په دې نهر باندې قبضه کول اوغریبانانو باندې اوبه خرڅول جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا محمدهاشم چغرزی... ۱۹۷۵ء | ۵ | ۱۲

**الجواب:** اګر چه دډیری خرچی په وجه نصف عشر دکتابونو دقواعدو موافق دی لیکن په مسئوله صورت کښې دا رقم مونت نه دی

لانه لیس سببا لبقاء هذا النظام بل هو ظلم او بیع الماء الغیر المحرز﴿١﴾ والمظلوم لا یظلم بخلاف انهار دیارنا (ای انهار الحکومیة) لان لها حافرین وقاسمین وحاکمین لا یبقیٰ هذا النظام الابهم والرقم الماخوذ من اهل المزارع یصرف علیهم. وهو الموفق

## د سرکاری نهر دآبیانې په صورت کښې د نصف عشر مسئله

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څهٔ فرمائی چه زمونږ علاقه دورسک په نهر سره اوبه کیږی ددې آبیانه دنورو نهرونو په نسبت سره لږه ډیره ده ددې آبیانې پیش نظر یو عالم فتوی ورکړی چه په دی زمکو کښې شلمه حصه واجب ده آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: سیف الرحمٰن تیله بند پشاور... ۱۹۷۰ء | ۱ | ۱۶

**الجواب:** دبعضی علماؤ په نزدپه دېکښې شلمه حصه واجب ده ځکه چه دا اوبه په بیعه دی.

والدلیل علیه ما فی الدر المختار وفی کتب الشافعیة او سقاه بماءٍ اشتراه

---

﴿١﴾ قال ابن عابدین: ان العلة فی العدول عن العشر الی نصفه فی مسقی غرب ودالیة هی زیادة الکلفة کما علمت وهی موجودة فی شراء الماء ولعلهم لم یذکروا ذلک لان المعتمد عندنا ان شراء الشرب لا یصح وقیل ان تعارفوه صح وهل یقال عدم شرائه یوجب عدم اعتباره ام لا تأمل نعم لو کان محرز اباناء فانه یملک الخ.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۵۵ باب العشر)

وقواعدنا لا تاباه(هامش ردالمحتار ۲:۲۹)﴿۱﴾

لیکن اخستل خړځول په ماء محرز کښې صحیح کیږی او په صورت مسئوله کښې احراز بالحوض حاصل دی اگر چه دا بیع او شراء فاسد ده او بعضی فرمائی چه آبیانه حقیقت کښې ثمن نه دی بلکه دامؤنت دی سرکار ئې دتجارت دپاره نه اخلې بلکه دنهر دبقاء او انتظام دپاره ئې اخلې او دامؤنت دکوهی دمؤنت نه کم نه دې لهذا په دې کښې به نصف العشر واجب وی

لوجود علة وجوب نصف العشر وهی كثرة المؤنة وزيادة الكلفة يدل عليه ما فى الدر المختار نصفه فى مسقى غرب ودالية لكثرة المؤنة، وفى ردالمحتار ۲:۲۹ لان العلة فى العدول عن العشر الى نصفه فى مسقى غرب ودالية هى زيادة الكلفة﴿۲﴾ انتهىٰ فافهم ولا تعجل والاخير هو المختار عندى وهذا ما عندى لعل عند غيرى احسن من هذا﴿۳﴾. وهو الموفق

---

﴿۲،۱﴾(الدر المختار مع هامش ردالمحتار ۲:۵۵ باب العشر)

﴿۳﴾وفى المنهاج : اعلم ان ما سقته الانهار التى يأخذ الحكومة بالسقى منها الخراج ما يقال له بالفارسية "آبيانه" قيل يجب فيه العشر لانه سقى بالانهار والعاثور دون النضح وقيل الوجه فى وجوب العشر انه سقاه بماء اشتراه وفيه ان الماء الغير المحرز لا يصح بيعه وشراءه وقال شيخنا (الغرغشتوى رحمه الله) يكفى فيه اداء نصف العشر، لان منشأ وجوب نصف العشر كما فى شرح التنوير كثرة المؤنة وهى ههنا متحققة بلا ريب، وبالجملة ان المأخوذ منهم هى المؤنة دون الثمن لان ارباب الحكومة انما يأخذونها لبقاء هذا النظام لا يخطر ببالهم معنى البيع والشراء فافهم.

(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذى ۳:۱۵۳ باب الصدقة فيما يسقى بالانهار)

..........



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه دریم جلد

# باب صدقة الفطر



..........

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

قال رسول الله صلی الله علیه وسلم

ادوا عن کل حر وعبد

صغیر وکبیر نصف صاع من بر

او صاعًا من شعیر

...(ابو داؤد)....

...



# باب صدقة الفطر

## د صدقة الفطر مقدار

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه دناپ تول په حساب سره دصدقة الفطر څه مقدار دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: سیداحمد خان چارسده..۱۱۰ ذی قعده ۱۳۹۵هـ

**الجواب:** دصدقة الفطر مقدار تقریباً دوه سیره انګریزی اود پوخ سیر په حساب سره دیو سیر او دریمې حصې په مقدار دې ﴿۱﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ د علمائی احناف په نزد غنمو کښې نیم صاع واجب دی او دامام ابو حنیفه او امام محمد رحمهما الله په نزد دصاع نه مراد اته رطله عراقی صاع دې.

**قال الدکتور وحبة الزحیلی: الصاع عند ابی حنیفة ومحمد ثمانیة ارطال بالعراقی والرطل العراقی مئة وثلاثون درهما ویساوی ۳۸۰۰ غراماً، لانه علیه السلام کان یتوضأ بالمد رطلین ویغتسل بالصاع ثمانیة ارطال وهکذا کان صاع عمر وهو اصغر من الهاشمی وکانوا یستعملون الهاشمی (الفقه الاسلامی وادلته ۳:۲۰۴۴)**

اود یو رطل مقدار ۹۰ مثقال دی نو په ضرب ورکولو سره ۷۲۰ مثقاله دصاع وزن شو او یو مثقال $4\frac{1}{2}$ ماشې دی نو پوره صاع ۳۲۴۰ ماشه شو او د دولسو ماشو یوه توله وی نو په دولسو باندې تقیسمولو سره تقسیم دحاصل ۲۷۰ توله راځی نو نیم صاع ۱۳۵ توله شو اوس په دنیا کښې اعشاری نظام جاری دی نو په دی لحاظ سره اوس دتولې نه وزن ګرامونو ته منتقل کولې شی د اوزان شرعیه (مفتی محمد شفیع رحمه الله په اخره کښې مولانا محمد اشرف قریشی د ۱۳۶٫۵! تولو په حساب سره د نصف صاع وزن ۱٫۵۹۲۱۳۶ کلوګرام لیکلې دی مولانه خالد سیف الله رحمانی دپاؤ کم دوه سیرو په لحاظ سره ۶۶۶ یو کلوګرام..........

[بقیه حاشیه په راروانه صفحه]

## په صدقه فطر کښې مقامی نرخ معتبر دې

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه صدقه فطر به دحکومتی نرخ مطابق ورکولې کیږی یا دعوامی نرخ مطابق؟ بینوا توجروا

المستفتی: سرفرازخان میاں والی... ۱۹۷۵ء|۱۰|۱۴

**الجواب:** دحکومت نرخ حاوی نه وی نو لهذا مقامی نرخ به معتبروی ﴿۱﴾ وهوالموفق

## صرف په درې تولې سونې باندې صدقة الفطر اوقربانی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دیو ښځې سره صرف

[بقیه حاشیه] حساب لګولې دی مولانا مفتی عبدالرحیم لاهوری رحمۃ اللہ علیہ نصف صاع لره یو کلو ۵۷۵ ګرام لیکلې دی.بنده (مرتب) هم دیو زرګر دکان ته لاړه او په هر پهلو سره ئی د رتئ ماشه او توله حساب او په هندوستان کښې مختلف رائج الوقت وزنونو په باره کښې اطمینان حاصل کړو،اودا معلومه شوه چه زمونږ د سرحدی علاقې توله ۱۵، ۱۲ ګرام ده،او دویمه توله کومه چه پنجابی تولې سره زمونږ په علاقو کښې مشهوره ده،هغه ۶۶۴، ۱۱ګرام وی نو ۱۳۵ توله لره د صوبه سرحد په اعتبار سره یو کلو ۲۵_ ۶۴۰ ګرام جوړیږی او دپنجابی تولې نه یو کلو ۶۴=۵۷۴ ګرام جوړیږی او غالباً هم داحساب مولانا لاجپوری صاحب هم کړی دی چه پوره ۵۷۵ ګرام ئی اخستلې دی بهرحال دیو وطن ناپ تول چه کله دبل وطن په ناپ تول کښې اچولې کیږی نو دواړه د بنیاد دمختلف کیدلو په وجی سره مکمل انطباق [illegible] کیږی نه په دې وجه دبرقی مشینانو په ذریعې سره خصوصی [illegible] صحت د ادا معلق کول صحیح نه دی په دې [illegible] ب،، په موجب چه ئی په احکام شرعی سره په [illegible] صحیح دی نو هم ددې وجی نه به ددې حسابی باریکو [illegible] ادائیګی صحیح او معتبر منلې کیږی (ازمرتب)

﴿۱﴾ [illegible] الحصکفی: ویق[illegible] الذی المال فیه.

[illegible] صدر ردالمح[illegible] زکاة الغنم)......(بقیه حاشیه اګلے صفحه پر)



درې تولې سونا ده دهغې نه علاوه ورسره څه مال موجودنه دې آیا په دې ښځه به صدقه الفطر او قربانی واجب وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا نجم الدین صاحب... ۱۹۸۸ء|۳|۱۴

**الجواب:** په دومره مقدار سونې سره دوه پنځوس نیمې تولې چاندی حاصلیدلې شی لهذا په دې ښځه باندې قربانی او صدقة الفطر دعلامه مرغینانی او وهبانیه د روایت په بنا واجب ده (فلیراجع الی رد المحتار ۲:۸۹ ﴿۱﴾ واضحیة الهندیه ﴿۲﴾ وهوالموفق

(بقیه حاشیه) وفی الهندیة: ویقومها المالک فی البلد الذی فیه المال حتی لو بعث عبداً للتجارة الی بلد آخر فحال الحول تعتبر قیمته فی ذلک البلد ولو کان فی مفازة تعتبر قیمته فی اقرب الامصار الی ذلک الموضع. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۸۰ الفصل الثانی فی العروض)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله لکن اعتمد فی الشرنبلالیة الخ)...... قال فی العنایة ولا یجوز دفع الزکاة الی من ملک نصابا سواء کان من النقود اوالسوائم اوالعروض...... تقدیر النصاب بالقیمة سواء کان من العروض اوالسوائم لما ان العروض لیس نصابها الا ما یبلغ قیمته مأتی درهم وقد صرح بان المعتبر مقدار النصاب فی التبیین وغیره واستدل له فی الکافی بقوله صلی اللہ علیہ وسلم من سأل وله ما یغنیه فقد سأل الناس الحافا قیل وما الذی یغنیه قال مأتا درهم او عدلها فقد شمل الحدیث اعتبار السائمة بالقیمة لاطلاقه وقد نص علی اعتبار قیمة السوائم فی عدة کتب من غیر خلاف فی الاشباه والسراج والوهبانیة وشرحیها والذخائر الاشرفیة وفی الجواهرة قال المرغینانی اذا کان له خمس من الابل قیمتها اقل من مائتی درهم تحل له الزکاة وتجب علیه وبهذا ظهر ان المعتبر نصاب النقد من ای مال کان بلغ نصابا من جنسه اولم یبلغ الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۷ بعید مطلب فی جهاز المرأة هل تصیر به غنیة)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: والموسر فی ظاهر الروایة من له مائتادرهم او عشرون دیناراً او یبلغ ذلک سوی مسکنه ومتاع مسکنه ومرکوبه وخادمه فی حاجته التی لا یستغنی ع[illegible] ما عدا ذلک من سائمة او رقیق او خیل او متاع لتجارة او غیرها فانه یعتد به من ی[illegible] (فتاویٰ عالمگیریه ۵:۲۹۲ کتاب الاضحیة)

## په صدقه فطر کښې مقامی نرخ معتبر دې

**سوال:** علمائی دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه صدقه فطر به دحکومتی نرخ مطابق ورکولې کيږی يا دعوامی نرخ مطابق؟ بينوا توجروا

المستفتی: سرفرازخان مياں والی........ ۱۹۷۵ء / ۱۰ / ۱۴

**الجواب:** دحکومت نرخ حاوی نه وی نو لهذا مقامی نرخ به معتبروی (۱) وهوالموفق

## صرف په درې تولې سونې باندې صدقة الفطر اوقربانی

**سوال:** علمائی دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ديو ښځې سره صرف

[بقيه حاشيه] حساب لګولې دی مولانا مفتی عبدالرحيم لاهوری رحمة الله عليه نصف صاع له يو کلو ۵۷۵ ګرام ليکلې دی بنده (مرتب) هم ديو زرګر دکان ته لاړه اوپه هر پهلو سره ئی د رتئ ماشه او توله حساب او په هندوستان کښې مختلف رائج الوقت وزنونو په باره کښې اطمينان حاصل کړو، اودا معلومه شوه چه زمونږ د سرحدی علاقې توله ۱۵، ۱۲ ګرام ده، او دويمه توله کومه چه پنجابی تولې سره زمونږ په علاقو کښې مشهوره ده، هغه ۱۱،۶۶۴ ګرام وی نو ۱۳۵ توله لره د صوبه سرحد په اعتبار سره يو کلو ۲۵ _ ۶۴۰ ګرام جوړيږی او دپنجابی تولې نه يو کلو ۶۴-۵۷۴ ګرام جوړيږی او غالباً هم داحساب مولانا لاجپوری صاحب هم کړی دی چه پوره ۵۷۵ ګرام ئی اخستلې دی بهرحال ديو وطن ناپ تول چه کله دبل وطن په ناپ تول کښې اچولې کيږی نو دواړه د بنياد دمختلف کيدلو په وجی سره مکمل انطباق او صحيح کيږی نه په دې وجه دبرقی مشينانو په ذريعې سره خصوصی اوزان لازم ګرځول اوپه هغې باندې صحت د ادا معلق کول صحيح نه دی په دې وجه د نحن امة امية لانكتب ولا نحسب،، په موجب چه ئی په احکام شرعی سره په انسانئ ځنګه هم ادا کړی صحيح دی نو هم ددې وجی نه به ددې حسابی باريکو باوجود هم دټولو واجب ادائيګی صحيح او معتبر منلې کيږی (ازمرتب)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى: ويقوم فى البلد الذى المال فيه.
(الدرالمختار على صدر ردالمحتار ۲: ۲۳ باب زكاة الغنم)...... (بقيه حاشيه اګلے صفحه پر)



درې تولې سونا ده دهغې نه علاوه ورسره څه مال موجودنه دې آيا په دې ښځه به صدقه الفطر او قربانی واجب وی؟ بينوا توجروا

المستفتی: مولانا نجم الدين صاحب........ ۱۹۸۸ء / ۳ / ۱۴

**الجواب:** په دومره مقدار سونې سره دوه پنځوس نيمې تولې چاندی حاصليدلې شی لهذا په دې ښځه باندې قربانی او صدقة الفطر دعلامه مرغينانی او وهبانيه د روايت په بنا واجب ده (فليراجع الى رد المحتار ۲:۸۹ ﴿۱﴾ واضحية الهنديه ﴿۲﴾ وهوالموفق

(بقيه حاشيه) وفى الهندية: ويقومها المالک فى البلد الذى فيه المال حتى لو بعث عبداً للتجارة الى بلد آخر فحال الحول تعتبر قيمته فى ذلک البلد ولو كان فى مفازة تعتبر قيمته فى اقرب الامصار الى ذلک الموضع. (فتاویٰ عالمگيريه ۱: ۱۸۰ الفصل الثانى فى العروض)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله لكن اعتمد فى الشرنبلالية الخ)...... قال فى العناية ولا يجوز دفع الزكاة الى من ملک نصابا سواء كان من النقود اوالسوائم اوالعروض...... تقدير النصاب بالقيمة سواء كان من العروض اوالسوائم لما ان العروض ليس نصابها الا ما يبلغ قيمته مأتى درهم وقد صرح بان المعتبر مقدار النصاب فى التبيين وغيره واستدل له فى الكافى بقوله صلى الله عليه وسلم من سأل وله ما يغنيه فقد سأل الناس الحافا قيل وما الذى يغنيه قال مأتا درهم او عدلها فقد شمل الحديث اعتبار السائمة بالقيمة لاطلاقه وقد نص على اعتبار قيمة السوائم فى عدة كتب من غير خلاف فى الاشباه والسراج والوهبانية وشرحيها والذخائر الاشرفية وفى الجواهرة قال المرغينانى اذا كان له خمس من الابل قيمتها اقل من مائتى درهم تحل له الزكاة وتجب عليه وبهذا ظهر ان المعتبر نصاب النقد من اى مال كان بلغ نصابا من جنسه اولم يبلغ الخ. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۱۷ بعيد مطلب فى جهاز المرأة هل تصير به غنية)

﴿۲﴾ وفى الهندية: والموسر فى ظاهر الرواية من له مائتادرهم او عشرون ديناراً او شيئ يبلغ ذلک سوى مسكنه ومتاع مسكنه ومركوبه وخادمه فى حاجته التى لا يستغنى عنها فاما ما عدا ذلک من سائمة او رقيق او خيل او متاع لتجارة او غيرها فانه يعتد به من يساره الخ.
(فتاویٰ عالمگيريه ۵: ۲۹۲ كتاب الاضحية)

## د لیونی او پاګل دطرفنه به باقاعده فطرانه ادا کولې شي

**سوال:** علماء دین دې مسئلې څه فرمائی چه یو تندرست سړې وو چه ټول عمر به ئی روژه ساتله ناڅاپه پاګل شو اوس نه مونځ پیژنی او نه روژه دده دطرفنه به صدقه فطر ادا کولې شی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ماسټر سرفراز کردکالا باغ...۱۸ شوال ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** دلیونی او پاګل دطرفنه به باقاعده فطرانه اداکولې شی (هندیه ۱/۲۰۴) ﴿۱﴾ یعنی دوه سیره (انګریزی سیرونونه) غنم یا دهغې قیمت او دروژی وغیره فدیه به نه ادا کوی. وهوالموفق

## د قیدی په جرمانه کښې فطرانه ورکول

**سوال:** علمائی دې مسئلې باره کښی څه فرمائی چه په الحرج کښې غټ جیل دې په هغې کښې کافی پاکستانیان قیدیان دی دلته یو پاکستانی قیدی څه حادثه شوی وه چه په هغې سره یو سعودی او سیدونکی مړ شوی وو قاضی دیولاکهـ ریال جرمانې اداکولو فیصلې وا وروله دهغې فیصلې نقل ئی زمونږ کمپنۍ ته را او لیږلو چه دفطرانی رقم ددغه سړی په جرمانه کښې اداکړۍ آیا مونږ فطرانه په دی مد کښې ورکولې شو؟ ځکه چه ډیرو ملګرو فطرانې جمع کړیدی؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل رحمٰن سعودی عرب.... ۱۹۸۶ء|۶|۲۶

**الجواب:** که دا قیدی غریب وی نو دهغه په وینا سره حکومت ته دا فطرانه ورکول جائز دی. ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: والمعتوه والمجنون بمنزلة الصغیر سواء کان الجنون اصلیا او عارضیا وهو الظاهر من المذهب کذا فی المحیط.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۹۲ الباب الثامن فی صدقة الفطر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وصدقة الفطر......(بقیه حاشیه اګلے صفحه پر)



## صدقة الفطر څو مسکینانو ته ورکول جائز دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه صدقه فطر یو نه زیات مسکینانو باندې تقسیم کول جائزدی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد آیاز یارحسین مردان... ۱۳۰ جمادی الثانی ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** یوه صدقه الفطر څو مسکینانو ته ورکول جائز دی (شرح التنویر هامش رد المحتار ۲: ۱۰۷) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په اجرت کښې فطرانه ورکول جائز نه دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه یو صاحب جائیداد مالدار امام دی آیا هغه ته فطرانه ورکول جائز دی؟ لکه چه عام رواج دی؟

المستفتی: محمدارشاد ګړهی افغانان راولپنډی...۱۹۷۵ء|۱۰|۱۴

**الجواب:** امام ته داجرات په طورسره فطرانه ورکول جائزنه دی ټولو فقهاؤلیکلې

---

(بقیه حاشیه) کالزکاة فی المصارف وفی کل حال. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۸۶ قبیل کتاب الصوم)...... وفی الهندیة: ولو قضی دین الفقیر بزکاة ماله ان کان بامره یجوز وان کان بغیر امره لا یجوز وسقط الدین.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۹۰ باب المصارف)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وجاز دفع کل شخص فطرته الی مسکین او مسکین علی ماعلیه الاکثر وبه جزم فی الولوالجیة ...... هو المذهب کتفریق الزکاة والامر فی حدیث اغنوهم للندب فیفید الاولویة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۸۵ باب صدقة الفطر)

دی چه ددې مصرف مسکینان او فقیران دی ﴿۱﴾ البته د تصدق او صلې په طور ئې امام ته ورکول جائزدی ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د صدقه فطر مقدار

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه د صدقه فطر صحیح مقدار څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرقیب تاجك لال قلعه میدان دیر... ۱۷ شوال ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** په غنمو کښې د صدقة الفطر مقدار دوه انگریزی سیرونه دی احتیاطاً ﴿۳﴾ وهوالموافق

## د تنخواه دار امام فطرانه اخستل

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو پیش امام د انجمن نه اتیاروپۍ ماهانه تنخواه اخلی دا تنخواه ده ته په امامت کښې ملاویږی آیا دی امام د پاره خلقو نه فطرانه اخستل او خپل ځان باندې خرچ کول جائزدی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حکیم سید اختر حسین کیملپور

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وصدقة الفطر کالزکاة فی المصارف وفی کل حال الا فی جواز الدفع الی الذمی. (الدرلمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۸۶ باب صدقة الفطر)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ولو نوی الزکاة بما یدفع المعلم الی الخلیفة ولم یستأجره ان کان الخلیفة بحال لو لم یدفعه یعلم الصبیان ایضا اجزأه والا فلا وکذا ما یدفعه الی الخدم من الرجال والنساء فی الاعیاد وغیرها بنیة الزکاة.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۹۰ باب المصارف)

﴿۳﴾ د احنافو په نزد د صاع نه مراد عراقی صاع دی چه اته رطله وی او یو رطل د ۹۰ مثقالو وی نو ضرب ورکولو سره ۷۲۰ مثقاله د صاع وزن شو او یو د مثقال $4\frac{1}{2}$ ماشو وی نو پوره صاع د ۳۲۴۰ ماشو یعنی ۲۷۰ تولې وی نو نصف صاع د ۱۳۵ تولو شو او س د سیر په مقدار کښې فرق دی انگریزی... [بقیه حاشیه په راروانه صفحه]



**الجواب:** که دا امام غریب وی نو فطرانه اخستل ورله جائز دی (لانه مصرف من المصارف) ﴿۱﴾ وهوالموفق

[بقیه حاشیه]... سیر اتیا تولې وی، او زمونږ د سرحدی علاقو سیر یو سل اتۀ تولې وی، نو اتیا تولې انگریزی سیر په حساب سره درې سیره شپږ چټاکۍ پوره صاع شو او یو نیم سیر دری چټاکۍ نصف صاع شو پس مفتی محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه د ډیر تحقیق او تلاش نه پس دا ثابت کړی دی چه نصف صاع پاؤکم دوه سیرو برابر دی او حضرت تهانوی رحمة الله علیه تحقیق یو سیر $12\frac{1}{2}$ چټاکۍ دی (امداد الفتاوی ۸۵/۲) بهر حال د برطانوی نظام لاندې نصف صاع تقریباً د ۱۳۶ تولو وی او د اعشاری نظام لاندې یو کلو ۶۶۶ گرام یا یو کلو ۵۹۲۱۳۶ گرام یا یو کلو ۵۷۵ گرام جوړیږی حضرت تهانوی رحمة الله علیه لیکلې دی چه د احتیاط د پاره پاؤکم دوه سیره یا لږ نور ډیر ورکول پکار دی ځکه چه په زیاتیدلو کښې څۀ حرج نشته بلکه بهتر دی (بهشتی زیور ۲۴۰ صدقه کابیان)

او بعضی حسابونو کښې ئی د مذکوره مقدار نه هم ډیر حساب لګولې دی په دې وجه زمونږ شیخ دامت برکاتهم عام طور سره پاؤ باندې دوه کلو هم وائی او فرمائی چه دیکښې ثواب دې اسراف نه دی (از مرتب)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وصدقة الفطر کالزکاة فی المصارف وفی کل حال. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۸۶ قبیل کتاب الصوم)

.....

# باب صدقة التطوع

## د نابالغه د مال نه د تصدق او تبرع حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه مړی وصیت هم نه وی کړې او بالغ اولاد دهغه دمال نه خیرات وغیره.کوی او چه په وارثانو کښې نابالغه هم موجود وی ددی قسم خیرات شرعی حکم څۀ دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: وزیر ملا وزیرستان

**الجواب:** دنابالغه دمال نه تصدق او تبرع حرام دی﴿۱﴾ پس که دی بالغانو دا خیرات او اسقاط د مشترکه مال نه کړی وی. نو د هغې اخستل او ورکول حرام دی.

قال الله تعالیٰ: ان الذین یأکلون اموال الیتمی ظلما(بغیر حق) انما یأکلون فی بطونهم نارا وسیصلون سعیراً. الآیة﴿۲﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: وان اتخذ طعاماً للفقراء کان حسنا اذا کانت الورثة بالغین فان کان فی الورثة صغیر لم یتخذوا ذلک من الترکة کذا فی التاتارخانیة.

(فتاویٰ عالمگیریه ۵:۳۴۴ باب فی الهدایا والضیافات کتاب الحظر)

﴿۲﴾ قال الجلال: (ان الذین یأکلون اموال الیتمی ظلما) بغیر حق (انما یأکلون فی بطونهم) ای ملأها (ناراً) لانه یؤول الیها (وسیصلون سعیراً) ناراً شدیدة یحترقون فیها. (تفسیر جلالین ۱:۷۸ النساء آیت:۱۰ پاره:۴)

وقال العلامة ابن کثیر: (ان الذین یأکلون الخ الآیة) ای اذا اکلوا اموال الیتامیٰ بلا سبب فانما یأکلون ناراً تأجج فی بطونهم یوم القیامة. (تفسیر ابن کثیر ۲:۹۹)



## حرام مال د تصدق په نیت سره ورکول او د معطیٰ له مُعطی د پاره دعاء کولو حکم

**سوال:** علمائی دین ئی مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو سړی دتصدق په نیت سره حرام مال ورکړی او اخستونکې دا او وائی چه الله تعالی دی ستا خیرات قبول کړی او ورکونکې آمین او وائی نو ددې څۀ حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالوهاب متعلم حقانیه

**الجواب:** حرام مال (چه مستحق ئی معلوم نه وی) واجب التصدق دی خو بلا قصد الثواب﴿۱﴾ اوسره دپوهې نه دثواب قصد کول یا دقبولیت دعا کول مکفر دی البته فقیر دپاره ئی اخستل جائز دی

کما فی ردالمحتار عن الظهیریة رجل دفع الی فقیر من المال الحرام شیأ یرجو به الثواب یکفر ولو علم الفقیر بذلک فدعا له وامّن المعطی کفرا جمیعاً﴿۲﴾ (ردالمحتار ۲:۳۵) وفی الحموی شرح الاشباه ۱۱۲ وینبغی ان یستثنیٰ الاخذ بالربا للمحتاج فانه لا یحرم کما صرح به المصنف فی البحر ویحرم علی الدافع الاعطاء بالرباء﴿۳﴾. وهوالموفق

## دصدقې نه په خله خوړل او د مصیبتونو دفع کولو دپاره ذبحه کول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څۀ فرمائی چه دصدقې څناور ذبحه کړی او دهغې غوښه په مسکینانو تقسیم کړې نوپخپله ترې نه خوړلې شی یانه؟ او

---

﴿۱﴾ قال الشیخ محمد کامل: من یملک نصابا من حرام لا تجب علیه فیه الزکاة بل یلزمه التصدق بجمیعه علی الفقراء لا بنیة الثواب ان لم یکن صاحب المال موجوداً.

(فتاویٰ کامیله ص ۱۵ کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۸ مطلب فی التصدق من المال الحرام کتاب الزکاة)

﴿۳﴾ (غمز عیون البصائر شرح الاشباه ۱:۴۴۹ القاعدة الرابعة عشرة)

مصیبتونو دفع کولو دپاره ذبحه کول صحیح دی یا نور صدقات لکه نقد او جنس هم جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حضرت کلیم الله شاه صاحب مسکین پورشریف مظفر گړه ۷۳/۳/۱۵

**الجواب:** دصدقات غیرواجبه نه پخپله هم خوړلې شی البته دغه مقدار به تصدق کښې شمارنه وی او دمصیبت دفع کولو دپاره ذبحه کول ممنوع نه دی البته دفدئی په طور ذبحه کول بی اصله کار دی

لان الاقتداء لایدرک بالعقل والقیاس ، وقال الله تعالیٰ وفدیناه بذبح عظیم ﴿۱﴾. وهوالموفق

## د مشترکه مال نه صدقات ادا کول

**سوال:** علمائی دین مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه مونږ شپږ سکه رونړه یو او دوه دتره ځامن او زمونږ والدین وفات شوې دی مونږ کښې دوه رونړه مزدوری کوی جائیداد مو ټول مشترکه دی دتره ځوی هم کور کښې نشته اودغه رونړو یو رور مشر کړی دی او اجازت ئی ورکړې دی چه دمشترکه جائیداد نه ته صدقه کولې شی دلته بعضی کسانو وئیلې دی چه دمشترکه جائیداد نه صدقه جائز نه ده آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: گل صاحب شاه صورتی کلې ضلع کرك... ۱۴۰۱/۶/۳۰هـ

**الجواب:** داسی مروجه صدقات غالباً په اباحت کښې داخل وی لهذا شیوع ورته ضرر ورکونکې نه دی او که دا صدقات په تملیك کښې داخل وی نو دجامع صغیر دروایت په رنړا کښې شیوع هغې ته ضرر ورکونکی نه دی (فلیراجع الی هبة الهداية) ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (سورة الصّٰفّٰت پاره:۲۳ رکوع:۷ آیت:۱۰۷)

﴿۲﴾ قال المرغینانی: وفی الجامع الصغیر اذا تصدق علی محتاجین بعشرة دراهم او وهبها لهما جاز ولو تصدق بها علی غنیین او وهبها لهما لم یجز وقالا یجوز للغنیین ایضا جعل کل واحد منهما مجازا عن الآخر والصلاحیة ثابتة لان کل واحد منهما تملیک بغیر بدل.
(هدایة علی صدر فتح القدیر ۷:۴۹۷ باب الهبة)



## دینی طلبانو لره د کورونو نه دروټی سالن جمع کولو حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه دبعضو مدرسو ماشومان چنړیان دمحلی والو نه ډوډئ او سالن (انګلې) جمع کوی او دینی طالبان هغه خوری آیا دا جائز دی؟ آیا داسوال او ذلت نه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالله چارسده.... ۱۹۸۲ء

**الجواب:** دطالبانو دپاره دا وظیفه جمع کول جائز دی او خلق ئی هم په خوشحالئ سره ورکوی ددینی طالبانو کفالت په عوامو باندې لازم دی او داسوال او ذلت هم نه ګڼړلې کیږی (کما هوالمعروف) ﴿۱﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلی بن سلطان المعروف بملا علی قاری: واما سوال صدقة التطوع فمن لا یقدر علی کسب لکونه زمناً او ذاعلة اخری جاز له السوال بقدر قوت یومه ولا یدخر وان کان قادراً علیه فترکه لاشتغال العلم جازت له الزکاة وصدقة التطوع فان ترکه لاشتغال صلاة التطوع وصیامه لا تجوز له الزکاة ویکره له صدقة التطوع فان جلس واحد او جماعة فی بقعة واشتغلوا بالطاعة وریاضة الانفس وتصفیة القلوب یستحب لواحد منهم ان یسأل صدقة التطوع وکسرات الخبز لهم واللباس لاجلهم.

(مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ۴:۱۷۲ باب من لا تحل له المسئلة ومن تحل له)

....

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بہ

**فتاوی فریدیہ دریم جلد**

# باب المصارف



..........



بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

.....قال اللہ تعالی.....

اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلۡفُقَرَآءِ وَالۡمَسٰكِيۡنِ وَالۡعٰمِلِيۡنَ عَلَيۡهَا وَالۡمُؤَلَّفَةِ قُلُوۡبُهُمۡ وَفِى الرِّقَابِ وَالۡغٰرِمِيۡنَ وَفِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَابۡنِ السَّبِيۡلِ‌ؕ فَرِيۡضَةً مِّنَ اللّٰهِ‌ؕ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ ﴿۶۰﴾

........(التوبة)........

.........

# باب مصارف الزکوٰة

### مارغان او څناور د عشر او زکوة مصرف نه دی

**سوال:** علماء دین دی مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید مرغو څناورو وغیره ته غنم جوار وغیره غورځوی آیادا په عشر کښې حساب کیدئ شی؟ آیا دعشر غنم وغیره مرغوته غورځولو سره دعشر نه ذمه فارغ کیدیشی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالودود کوهاټ... ١٩٧٦ء|٣|٢٣

**الجواب:** مرغی دعشر او زکوة مصرف نه دی ﴿١﴾ لهذا په دې طریقې سره ثواب حاصلیږی لیکن دفریضې نه ذمه نه فارغه کیږی لکه چه یو سړی نفل مونځ کوی اوفرض نه کوی. وهو الموفق

### په مال او متاع کښې شریک فقیر ته زکوة ورکول

**سوال:** علماءئ دین دې مسئلې باره څهٔ فرمائی چه دخان سره بعضې مالونو کښې شریک فقیر ته زکوة ورکول جائز دی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل الدین متعلم دارالعلوم حقانیه ٧٨ء|١٠|٣١

﴿١﴾ قال العلامة ابن رشد: فاما عددهم فهم الثمانية الذين نص الله عليهم فی قوله تعالیٰ انما الصدقات للفقراء والمساکین الخ، الآیة.

(بدایة المجتهد ١: ٢٠٠ الفصل الاول فی عدد الاصناف) وقال الامام علی بن عثمان سراج الدین الاوشی: لا یجوز صرف الزکوٰة الی اهل الذمة ولا الی الکلاب والطیور.

(فتاویٰ سراجیة ٢٨ باب مواضع الصدقات)



**الجواب:** دی شریك فقیر ته داستقلال په طریقې سره زکوة ورکول جائزدی ﴿١﴾ او داشتراك په صورت کښې ناجائز دی ﴿٢﴾ وهوالموفق.

### د مړی په قرضه کښې د زکوة رقم ورکولو سره زکوة نه ادا کیږی.

**سوال:** علماءئ دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید دبکر وراره وو اودده په ذمه دبکر درې زره (٣٠٠٠) روپۍ دې اوس زید ددیری غریبئ په حالت کښې مړ شو بکر ورته خپله قرضه معاف کړه او په زید باندې دبل چاهم زر روپۍ قرض وو هغه بکر دزکوة درقم نه ادا کړې آیا په دې سره دبکر زکوة ادا شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمٰن مشین محله شهر جهلم... ١٩٧٢ء|١٠|٢٥

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې دزید ذمه دقرض نه فارغه شوی ده لیکن د بکر ذمه دزکوة نه فارغه نه ده ځکه چه زید تاته ددې اجازت نه وو کړې.

یدل علیه ما فی الهندیة ١: ٢٠٢ ولو قضی دین الفقیر بزکوٰة ماله ان کان بامره یجوز وان کان بغیر امره لا یجوز وسقط الدین انتهیٰ ﴿٣﴾. وهو الموفق

### ایا زکوٰة په کوهی جوړولو او هغې باندې مشین لګولو باندې خرج کولې شی؟

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که دیو کوهی په جوړولو

﴿١﴾ قال العلامة الحصکفی: ویشترط ان یکون الصرف تملیکا لا اباحة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٦٨ باب المصرف)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدین: ای بینه وبین المدفوع الیه لان منافع الاملاک بینهم متصلة فلا یتحقق التملیک علی الکمال هدایة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٦٩ قبیل مطلب فی الحوائج الاصلیة)

﴿٣﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ١: ١٩٠ الباب السابع فی المصارف)

او هغې باندې مشين لګولو دپاره دزکوٰة پيسې استعمال کړيشي نو آيا دا خرچ کول صحيح دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: مياں بهادرشاه زيارت کاکاصاحب نوشهره يکم ذی الحجه ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** په دې مد کښې زکوٰة نشی خرچ کيدې ځکه چه دزکوٰة دپاره تمليک شرط دې چه هغه په صورت مسئوله کښې موجود نه دې ﴿۱﴾ هاں په ديکښې هسې خيراتونه (شکرانې) صرف کيدلې شی لهذا دزيارت کاکا صاحب دشکرانو نه دې څه رقم باقاعدګۍ سره مقرر کړيشی ځکه چه دمزار ونو په معطل کيدلو سره دين ته نقصان نه رسيږی. بخلاف المدارس العربيه.وهوالموفق

## د زکوٰة او مصارفو بعضې مسئلې

**سوال:** علماء ئی دين دی مسئلو کښې څه فرمائی (۱) آيا زکوٰة رشته دار فقير ته ورکول جائز دی او آيا ورکونکی ته دزکوٰة وئيل ضروری دی؟ (۲) آياد زکوٰة په رقم سره د ګنډلو مشين وغيره اخستل او ورکول جائز دې؟ ﴿۳﴾ آيا ديو مقروض دقرض ختمولو دپاره قرض خواه ته د زکوٰة مال ورکول جائز دی؟ (۴) آيا زکوٰة په يو وخت کښې ورکول پکاردی او که نه دکال په مختلفو حصو کښې هم ورکول جائز دی؟ (۵) دزکوٰة بهترين مصرف کوم دې رشته داران يا فقيران؟ بينوا توجروا

المستفتی: کشميرخان مردان... ۱۲ رمضان ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** داصول او فروعو او د خپلې ښځې نه علاوه نورو رشته دارانو ته زکوٰة ورکولی شی په دې شرط چه مسکينان وی ﴿۲﴾ (۲) په زکوٰة کښې

---

﴿۱﴾ وفی الهندية: ولايجوز ان يبنی بالزکاة المسجد وکذا القناطر والسقايات واصلاح الطرقات وکری الانهار والحج والجهاد وکل مالا تمليک فيه.

(فتاویٰ عالمگيريه ۱:۱۸۸ الباب السابع فی المصارف)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ولا الی من بينهما ولاد...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



داضروری نه ده چه د زکوٰة نوم واخلې په زړه کښې اراده کافی ده﴿۱﴾ (۳) دمقروض په اجازت سره قرض خواه ته دمال زکوٰة نه ورکولې شی (عالمګيری)﴿۲﴾ (۴) ته دکال په مينځ کښې پيشګی زکوٰة ورکوه او د حولان حول په وخت زکوٰة دمقدار نه پيشګی اداشوې زکوٰة منفی کړه﴿۳﴾ (۵) په مصارفو کښې بهترين مصرف هغه بال بچه دار عالم دين دې چه چا خپل عمر ددين دخدمت دپاره وقف کړې دی (عالمګيری) ﴿۴﴾ وهوالموفق

## هغه زمکه موجب غنا نه ده چه دهغې نه دټول کال يا ددې نه کمه غله حاصليږی

**سوال:** علماء ئی دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ديو سړی دومره زمکه ده چه دهغې پيداوار ټول کال پورې نه رسيږی دزمکې قيمت پنځوس شپيته زره روپئ دې آيا مذکوره سړی ته زکوٰة ورکول جائز دې يانه؟ او ده باندې حج فرض دې يانه؟ بينوا توجروا

المستفتی: محمد جنيد شالفين سوات... ۱۹ جون ۱۹۷۵ء

**الجواب:** داسړې زکوٰة اخستلې شی او په ده حج فرض نه دې او نه دحج دپاره زمکه خرڅول فرض دی کمافی ردالمحتار ۲ | ۸۸ سئل محمدعمن له الارض يزرعها اوحانوت

---

(بقيه حاشيه) قال ابن عابدين: وقيد بالولاد لجوازه لبقية الاقارب کالاخوة والاعمام والاخوال الفقراء بل هم اولی لانه صلة وصدقة. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۶۹ باب المصرف)

﴿۱﴾ وفی الهندية: ومن اعطی مسکينا دراهم وسماها هبة او قرضا ونوی الزکاة فانها تجزيه وهو الاصح. (فتاویٰ عالمگيريه ۱:۱۷۱ کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ وفی الهندية: ولو امر فقيرا بقبض دين له علی آخر ونواه عن زکاة عين عنده جاز. (فتاویٰ عالمگيريه ۱:۱۷۱ کتاب الزکاة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن الهمام: وان قدم الزکاة علی الحول وهو مالک للنصاب جاز. (هداية علی صدر فتح القدير ۲:۱۵۴ فصل وليس فی الفصلان والحملان والعجاجيل صدقة کتاب الزکاة)

﴿۴﴾ وفی الهندية: التصدق علی الفقير العالم افضل من التصدق علی الجاهل. (فتاویٰ عالمگيريه ۱:۱۸۷ الباب السابع فی المصارف)

یستغلها او دار غلتها ثلثة آلاف ولا تکفی لنفقته ونفقة عیاله سنة یحل له اخذ الزکوٰة وان کانت قیمتها تبلغ الوفا وعلیه الفتویٰ وعندهما لا یحل﴿۱﴾ وفی الهندیة ۱:۲۳۱ وان کان صاحب ضیعة ان کان له من الضیاع ما لو باع مقدار ما یکفی الزاد والراحلة ذاهبا وجائیاً ونفقة عیاله واولاده ویبقی له من الضیعة قدر ما یعیش بغلته الباقی یفترض علیه الحج والا فلا﴿۲﴾. وهو الموفق

## غریبې طلاقې شوې ښځې ته زکوٰة ورکول جائز دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه یو سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړې دې ددې ښځې سره دهغې بچې هم دی چه سبق وائی آیا دې مطلقه ښځې ته زکوٰة ورکول جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: طاهرجواد حضرو اټك.... ۱۲ رمضان ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** که دا طلاقه شوې ښځه د زکوٰة مصرف وی او محتاجه وی نو ته هغې ته زکوٰة ورکولې شې.﴿۳﴾ وهو الموفق

## په مالدار مجاهدینو باندې زکوٰة نشې خرچ کیدلې

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مالدار مجاهدینو ته

---

﴿۱﴾( ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۷ مطلب فی الحوائج الاصلیة کتاب الزکاة)

﴿۲﴾(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۱۸ کتاب المناسک )

﴿۳﴾قال العلامة عبد الله بن احمد النسفی: المصرف هو الفقیر والمسکین وهو اسوء حالاً من الفقیر والعامل والمکاتب والمدیون ومنقطع الغزاه وابن السبیل فیدفع الی کلهم او الی صنف. (کنز الدقائق ۱:۶۴ باب المصرف)

.............



زکوٰة ورکول جواز لری یا نه؟ که جواز وی نو تحریر طورئی راولیږئ او مونږ مطمئن کړی والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

المستفتی: ح.خ ټریډنګ هاوس فردوس منزل پشاور شهر ۱۹۸۸ء/۱/۲۵

**الجواب:** دفقهاؤ په نزد مالدارو باندې زکوة خرچ کول جائز نه دی ﴿۱﴾ دعاملینو نه علاوه البته هغه کس چه په خپل کور کښې غنی وو لیکن ذجهاد نه پس دهغه مال دراتلونکو ضروریاتو دپاره ناکافی دې نو زکوة اخستلې شی (ماخوذ از بدائع) ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د زکوة په رقم څه څیز پخول او نورو باندې خوړلوسره د ذمې د فراغت مسئله

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دیو سړی سره دزکوة رقم دی آیا په هغې باندې خیرات کول جائزدی یعنی چه څه پاخه کړې او نورو باندې ئی او خوروی؟ بینوا توجروا

المستفتی: شادولی خان کیماړی کراچی.... ۱۹۹۰ء/۳/۹

**الجواب:** چونکه په دې عرفی خیرات کښې تملیك نه وی صرف اباحت وی ﴿۳﴾

---

﴿۱﴾قال العلامة برهان الدین: ولا تدفع الی غنی لقوله ﷺ لا تحل الصدقة لغنی. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ۲:۲۰۸ باب مایجوز دفع الزکاة وما لا یجوز)

﴿۲﴾قال العلامة الکاسانی: واما استثناء الغازی فمحمول علی حال الحدوث الحاجة وسماه غنیا علی اعتبار ماکان قبل حدوث الحاجة وهو ان یکون غنیا ثم تحدث له الحاجة بان کان له دار یسکنها ومتاع یمتهنه وثیاب یلبسها وله مع ذلک فضل مائتی درهم حتی لا تحل له الصدقة ثم یعزم علی الخروج فی سفر غزو فیحتاج الی آلات سفره وسلاح یستعمله فی غزوه ومرکب یغزو علیه وخادم یستعین بخدمته علی مالم یکن محتاجاً الیه فی حال اقامته فیجوز ان یعطی من الصدقات ما یستعین به فی حاجته التی تحدث له فی سفره. (بدائع الصنائع ۲:۱۵۵ فصل المؤلفة قلوبهم کتاب الزکاة)

﴿۳﴾قال الحصکفی: وهی شرعا تملیک خرج الاباحة.....(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

لهٰذا په دې طریقې سره دزکوة نه ذمه نه فارغیږی په دویم ځلې ادا کول ضروری دی وهوالموفق

## مقروض اوکور جوړونکی فقیرته د نصاب نه د زیات زکوة ورکولو حکم

**سوال:** علمائی دین لاندینو مسئلو باره کښې څه فرمائی چه (۱) فقیرته زیات نه زیات څومره رقم ورکول جائزدی؟ (۲) که یو فقیر د زرو روپو مقروض دې خو آیا هغه ته زر روپې په یو ځائی ورکول جائز دی؟ (۳) دیو سړی آمدنی دومره ده چه په مشکله سره دبال بچ ساتنه کوی هغه سره داوسیدلو کور نشته آیا هغه ته د زکوة دومره رقم ورکول چه هغه پری کور جوړ کړی دا جائز دی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد خورشید دته روډ راولپنډی

**الجواب:** (۱) دومره مقدار زکوة ورکول چه هغه پری شرعی غنی جوړ شی مکروه دی (۱) (۲) جائز دی بلکه ددینه زیات هم ورکول جائز دی خوچه دا زیاتی دمقدار د نصاب نه کم وی (۳) دی سړی ته دمکان دپاره رقم ورکول جائزدی.

والدليل على هذه المسائل ما فى الدر المختار ، وكره اعطاء فقير نصابا او اكثر الا اذا كان المدفوع اليه مديونا او كان صاحب عيال بحيث لو فرقه عليهم لا يخص كلا او لا يفضل بعد دينه نصاب انتهىٰ، فيه لف ونشر غير مرتب (ردالمحتار ۹۳:۲) ﴿۲﴾ وجه الدلالة على السوال الثالث عدم الفرق بين النفقة والسكنى

(بقيه حاشيه) فلو اطعم يتيما ناويا الزكاة لا يجزيه الا اذا دفع اليه المطعوم، قال ابن عابدين: لانه بالدفع اليه بنية الزكاة يملكه فيصير آكلا من ملكه بخلاف ما اذا اطعمه معه الخ.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳ كتاب الزكاة) وقال العلى بن عثمان الاوشى: ويشترط التمليك ولا يجوز التغدية والتعشية. (فتاوىٰ سراجية ۲۸ باب مواضع الصدقات)

﴿۱﴾ وفى الهندية: ويكره ان يدفع الى رجل مائتى درهم فصاعدا وان دفعه جاز. (فتاوىٰ عالمگيريه ۱:۱۸۸ الباب السابع فى المصارف)

﴿۲﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۷۴ باب المصرف)



فى الوجوب والحاجة نعم الاحتياط فى الاعطاء بعد البناء ﴿۱﴾ وهوالموفق

## فقیر په زکوٰة سره غنی جوړول مکروه دی

**سوال:** علمای دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دزکوة صحیح مصرف کوم دې؟ دغه شان په نزدې رشته دارانو کښې چه کوم فقیر وی هغه ته څومره رقم ورکولې شی؟ دبعضې علماؤ نه مواوریدلې دی چه ډیر رقم په زکوة کښې نه دی ورکول په کار؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالغفار چیف کیمسټ منګوره سوات...۱۴ شعبان ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** دزکوة صحیح مصرف فقیر او محتاج دې خصوصاً چه کله عالم یا متعلم (طالب العلم) او یا مجاهد وی ﴿۲﴾ البته یو محتاج غنی جوړول مکروه دی مثلاً په کوم فقیر چه دپنځه کسانو خرچه واجب وی او مقروض نه وی نو هغه ته $52\frac{1}{2}$ توله چاندئ په حساب سره دشپږو کسانو یعنی ۳۱۵ تولې چاندی ($\frac{2}{5}\times 6 = 315$) ورکول مکروه دی او ددی نه کم جائز دی ﴿۳﴾ (ماخوذ از هندیه).وهوالموفق

﴿۱﴾ وجه الدلالة فيه ان السكنىٰ من الحوائج الاصلية كما يدل عليه ما فى الهندية ۱:۱۸۹ والشرط ان يكون فاضلا عن حاجته الاصلية وهى مسكنه واثاث مسكنه الخ، وقال بعد اسطر، رجل له دار يسكنها يحل له الصدقة وان لم يسكن الكل هو الصحيح كذا فى الزاهدى وقال ابن عابدين: فارغ عن حاجته قال فى البدائع قدر الحاجة هو ما ذكره الكرخى فى مختصره فقال لابأس ان يعطى من الزكاة من له مسكن وما يتأثث به فى منزله وخادم وفرس وسلاح وثياب البدن وكتب العلم ان كان من اهله فان كان له فضل عن ذلك تبلغ قيمته مائتى درهم حرم عليه اخذ الصدقة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۷۰ مطلب فى الحوائج الاصلية)......(ازمرتب)

﴿۲﴾ وفى الهندية: التصدق على الفقير العالم افضل من التصدق على الجاهل. (فتاوىٰ عالمگيريه ۱:۱۸۷ الباب السابع فى المصارف)

﴿۳﴾ وفى الهندية: ويكره ان يدفع الى رجل مائتى درهم ......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## په زکوٰة سره د کتاب طباعت کول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړی ددینی کتاب دچاپ کولو اراده اوکړه لیکن هغه غریب دې دخلقو نه زکوة اخلی په دې طریقې سره داکتاب چاپ کول څنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: صاحب زاده باجوړعنایت کلې..۱۹۸۵ء۱۳۱۱۲

**الجواب:** که دا سړی دزکوة مصرف وی یائی دزکوة ورکونکو په اجازت سره دچاپ کولو نه پس دا کتابونه دتملیك په طور سره مصارفوته ورکوی نو دیکښې څۀ خبره نشته.﴿۱﴾ وهوالموفق

## د ۲۵ غواګانو یا ۳۵ بیزو مالك زکوٰة اخستلې شی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دیو سړی سره پنځویشت (۲۵) غواګانې دی یا پنځه دیرش (۳۵) بیزې دی نو آیا دا سړی دنورو خلقو نه زکوة اخستلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی نامعلوم......۱۹۸۵ء۱۳۱۱۰

**الجواب:** که نور اجناس ورسره نه وی نو دا سړی زکوة اخستلې شی (رد المحتار ۲/۸۹)﴿۲﴾ وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه)فصاعداً وان دفعه جاز. کذا فی الهدایة: هذا اذا لم یکن الفقیر مدیونا فان کان مدیونا فدفع الیه مقدار ما لو قضی به دینه لا یبقی له شیئ او یبقی دون الما ئتین لا بأس به وکذا لو کان معیلا جاز ان یعطی له مقدار مالو وزع علی عیاله یصیب کل واحد منهم دون المائتین کذا فی فتاویٰ قاضی خان.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۸۸ الباب السابع فی المصارف)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: یشترط ان یکون الصرف تملیکا لا اباحة لا یصرف الی بناء مسجد والی کفن میت وقضاء دینه. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۸ باب المصرف)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله جزم به فی البحر)...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د حاجت اصلیه څیزونو نه لرلو والا صاحب نصاب د پاره زکوة اخستل حرام دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو مسافر په یو جمات کښې مقیم وی اودهغه خپل داو سیدلو کور نه وی او واده وغیره اودکور نور ضروریات ئی هم نه وی او دنقد په حساب سره صاحب نصاب وی او بیا دا مذکوره سړی په دې نیت سره چه دحج بیت الله شریف دپاره پیسې جمع کوم نو دهغه دپاره زکوة اخستل جائز دی یانه؟ دغه شان چه دنصاب رقم ئی په څه مزدورئ سره ګټلې وی او څۀ خلقو په صدقاتو او خیراتونو کښې ورکړی وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګل شیر جمرود خیبر ایجنسی

**الجواب:** دی سړی دپاره زکوة اخستل حرام دی﴿۱﴾ البته که دا سړی دحولان حول نه مخکښې دا سې جنس واخلی چه دحاجات اصلیه نه وی مثلاً کور وسله، غله نو په دې سړې باندې به دغنی احکامات نه جاری کیږی

یدل علیه ما فی ردالمحتار ۲:۸ ان الزکاة تجب فی النقد کیفما امسکه للنماء او للنفقة وکذا فی البدائع فی بحث النماء التقدیری﴿۲﴾ قلت وصرح العلامة العینی: وهو فاضل عن حوائجه الاصلیة کالدین فی النقود﴿۳﴾ فقط، فافهم وهو الصواب

---

(بقیه حاشیه) حیث قال ودخل تحت النصاب النامی الخمس من الابل فان ملکها او نصابا من السوائم من ای مال کان لا یجوز دفع الزکاة له سواء کان یساوی مائتی درهم او لا وقد صرح به شراح الهدایة عند قوله من ای مال کان.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۷ مطلب فی الحوائج الاصلیة)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولا یجوز دفع الزکاة الی من یملک نصابا ای مال کان دنا نیر او دراهم او سوائم او عروضا للتجارة او لغیر التجارة فاضلا عن حاجته فی جمیع السنة.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۸۹ باب فی المصارف)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۱ کتاب الزکاة)

﴿۳﴾ (العنایة علی هامش فتح القدیر ۲:۲۱۵ باب من یجوز دفع الصدقة الیه ومن لا یجوز)

## د حج د پاره پیسې جمع کونکی غنی ته زکوة ورکول جائز نه دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څۀ فرمائی چه زما دوه دماما لونړه دی ما به هغوی ته زکوة ورکولو لیکن اوس هغوی وائی چه مونږ مالدار یو اوس پکښې یوې اوویل چه ماته زکوة راکوه چه زه ئی دحج دپاره جمع کړم داجائز دی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: بیګم علی حسن پشاور روډ پنډی... ۱۹۸۱ء| ۳| ۲۴

**الجواب:** چه کله داخوئندې داقرار مطابق مالدارې دی نوهغوی ته زکوة ورکول که دحج دپاره وی اوکه دبل مقصد دپاره وی جائز نه دی﴿۱﴾ وهوالموفق

## بال بچه دار او مقروض فقیرته دمقدار نصاب هومره زکوة ورکول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د زکوة زر(۱۰۰۰) روپئ یو مستحق ته ورکول جائز دی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګل افضل بن مرسلین ډاك اسماعیل خیل نوشهره

**الجواب:** بال بچه دار او مقروض ته هغه بال بچه دار چه هغه با لفرض دا زر روپئ په خپل ځان او بچو باندې تقسیم کړی اود هر یو حصه دنصاب نه کمه وی او هغه مقروض چه کله هغه مقدار د قرض لری کړی نو باقی مقدار دنصاب نه کم پاتې کیږی ورکول بغیر دکراهت نه جائز دی او غیر مقروض غیر عیالدار ته جائز مع الکراهت دی.

وفی الهندیة: ویکره ان یدفع الی رجل مائتی درهم فصاعداً وان دفعه جاز كذا فی الهدایة هذا اذا لم یکن الفقیر مدیونا فان کان مدیونا فدفع الیه مقدار مالو

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولا یجوز دفع الزكاة الی من یملک نصابا ای مال کان دنانیر او دراهم او سوائم او عروضا للتجارة فاضلا عن حاجته فی جمیع السنة.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۸۹ الباب السابع فی المصارف)



قضی به دینه لا یبقی له شیئ او یبقی دون المائتین لا بأس به وكذا لو کان معیلا جاز ان یعطی له مقدار ما لو وزع علی عیاله یصیب کل واحد منهم دون المائتین كذا فی فتاویٰ قاضی خان (هندیه ۱:۲۰۰)﴿۱﴾. وهوالموفق

## د سودی کاروبار کونکی زکوٰة په غریبانانو طالبانو باندې خرچ کول

**سوال:** علمائی دین دې باره څۀ فرمائی چه دې ورځو کښې داکثرو مدرسو سفیران یا دهغوی خطونه د زکوة اخستلو دپاره راځی فرض کړه که یو سړی د سود کاروبار کوی او هغه زکوة هم ادا کوی ددی څۀ مسئله ده ځکه چه زما خواته چه کوم خطونه راغلې دی په هغې کښې ددی قسم څه وضاحت نشته؟ بینوا توجروا

المستفتی: اقبال منیر فیصل آباد

**الجواب:** سودی مال په غریبانانو طالبانانو باندې خرچ کیدیشی﴿۲﴾ اکثر اهل مدارس دعطیاتو په لفظ سره دیته هم اشاره کوی وهوالموفق

## د سودی کاروبار کونکی نه دزکوة رقم اخستل جائز دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه سودی کاروبار کولو والا سړې وی او دهغه دګټې دحلالو حرامو پته نه لګی نو داسی کس نه زکوة اخستل جائز دی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حامد انور اکوړه خټك... ۱۹۸۵ء| ۱۲| ۳۱

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۸۸ الباب السابع فی المصارف)

﴿۲﴾ قال ابن البزاز الکردری: ولو بلغ المال الخبیث نصابا لا یجب فیه الزكاة لان الكل واجب التصدق والعبرة لنیة الدافع لا لعلم المدفوع الیه.

(فتاویٰ بزازیة علی هامش الهندیة ۴:۸۶ الثانی فی المصرف)

زکوة او خیرات اخستلې شي

**الجواب:** د زکوٰة مصرف سړې دسود خورنه زکوة او خیرات اخستلې شي (حموی) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## نا بالغه ته د زکوٰة ورکولو حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی (۱) داسی نابالغه ته چه والدین ئې غریبانان وی هغه ته زکوة ورکول جائز دی؟ (۲) که پلار مالدار وی او خوئ یا لور ئې بالغ وی او دپلار په کفالت کښې وی نو آیا دوی ته زکوة ورکول جائز دی؟ چه دابالغ ځوی پخپله مالدارنه وی؟ (۳) که دزیر کفالت بچی پلار غریب وی او مورئې مالداره وی نو هغه ته زکوة ورکول جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل عظیم نوشهره..... ۱۹۷۸ء | ۷ | ۲۷

**الجواب:** (۱) دکوم نابالغه چه والدین غریبانان وی اودا نابالغه پخپله هم غریب وی نو هغه ته زکوة ورکول جائز دی (هندیه)

(۲) بالغ چه مالدار نه وی نو هغه ته زکوة ورکول صحیح دی اګر که په والدینو کښې صرف پلار یا صرف مور په اغنیاؤ کښې وی ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وفی حاشیة الحموی عن الذخیرة سئل الفقیه ابوجعفر عمن اکتسب ماله من امراء السلطان وجمع المال من اخذا لغرامات المحرمات وغیر ذلک هل یحل لمن عرف ذلک ان یاکل من طعامه قال احب الی ان لا یاکل منه ویسعه حکما ان یاکله ان کان ذلک الطعام لم یکن فی یدالمطعم غصباً او رشوة الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۸ مطلب التصدق من المال الحرام) وقال ابن البزاز الکردری: وقوله ارفق بالناس لان مالاً مالا یخلو عن مغصوب لکنه قبل اداء البدل خبیث واجب التصدق فلا یأخذه لا من یجوز له اخذ الصدقة والاخذ والاعطاء اولیٰ اذا کان لا یشوبه العجب. (فتاویٰ بزازیة علی هامش الهندیة ۴:۸۸ الباب الثانی فی المصرف کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ولا یجوز دفعها الی ولدالغنی الصغیر ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



(۳) آو جائز دی ﴿۱﴾ هوالموفق

## عاقل او مراهق نا بالغه ته زکوٰة ورکول جائز دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه نابالغه بچی ته زکوة ورکول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمٰن لکی مروت... ۱۹۷۷ء | ۷ | ۳۰

**الجواب:** چه کله صبی مراهق وی یا عاقل نو هغه ته زکوة ورکول کافی دی. **کما فی الهندیة ۱:۲۰۲ ولو قبض الصغیر وهو مراهق جاز لو کان یعقل القبض بان کان لا یریٰ ولا یخدع عنه ﴿۲﴾.** وهوالموفق

## د مالدار سړی غریب بالغ ځوی دزکوة مصرف دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زه دایف اې سی طالب العلم یم دیو زمیندار پلار ځوی یم دامدنئ یوه ذریعه صرف زمکه دی زما به نوم هیڅ جائیداد نشته په دی وجه والدصاحب می زمکه خرځوی او زما د تعلیم اخراجات پوره کوی په دغه زمکه کښې زما دنور رورو خوئیندو هم حصه ده کوم چه زه خرچه کوم په دی صورت کښې زه دزکوة نه نه د وظیفې اخستلو

---

(بقیه حاشیه) ولو کان کبیرا فقیرا جاز ویدفع الی امرأة غنی اذا کانت فقیرة وکذا الی البنت الکبیرة اذا کان ابوها غنیا لان قدر النفقة لا یغنیها وبغنی الاب والزوج لا تعد غنیة کذا فی الکافی ویجوز صرفها الی الاب المعسر وان کان ابنه موسرا. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۸۹ باب المصارف)

﴿۱﴾ قال الحصکفی: ولا الی طفله بخلاف ولده الکبیر وابیه وامرأته الفقراء وطفل الغنیة فیجوز لانتفاء المانع. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۷۲ باب المصرف)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۹۰ باب المصرف)

دپاره درخواست اوکړم آیا زما دپاره دازکوة اخستل جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: میراکبرخان اسلامیه کالج پشاور.... ۱۵ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** ته دزکوة مصرف ئی دزکوة فنډ نه زکوة حاصلولې شی دمالدار سړی غریب بالغ ځوی غنی نه وی (۱) البته داوظیفه په خلاف شریعت کارونو یعنی نشو تماشو کښې خرچ کول قابل اعتراض دی وهوالموفق

## د پلار او ځوی مشترکه زکوة نه وی نو انګور ته ورکول جائز دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه انګور ته زکوة ورکول جائز دی یانه؟ حال داچه هغه ښځه ددې سړی سره او سیړی البته دچائی او جامو انتظام پخپله کوی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبیدالله خان زنګی خیل بنوں.... ۱۹۷۴ء | ۷ | ۶

**الجواب:** انګور ته عشر او زکوة ورکول جائز دی چه کله مالداره نه وی او پلار اود خاوند مشترکه زکوة نه وی (۲) وهوالموفق

## دوکیل خپلې ښځې ته زکوة ورکولو او زوم ته دزکوة ورکولو حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څۀ فرمائی چه یو سړې صاحب نصاب دې مګر

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: ان الطفل یعد غنیا بغنی ابیه بخلاف الکبیر فانه لا یعد غنیا بغنی ابیه ولا الاب بغنی ابنه ولا الزوجة بغنی زوجها ولا الطفل بغنی امه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۷۲ باب المصرف)

(۲) قال العلامة الحصکفی: ولا الی من بینهما ولاد، قال ابن عابدین: وقید بالولاد لجوازه لبقیة الاقارب کالاخوة والاعمام والاخوال الفقراء بل هم اولی لانه صلة وصدقة وفی الظهیریة ویبدأ فی الصدقات بالاقارب ثم المولی ثم الجیران...... ویجوز دفعها لزوجة ابیه وابنه وزوج ابنته تاترخانیة. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۶۹ باب المصرف)



دهغه ښځه غریبه ده نو که خاوند دیو مؤکل زکوة خپلې ښځې ته ورکړی آیا داجائز دی؟ د دغه شان زوم ته دزکوة ورکولو څه چه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: اکرام الحق راوالپنډی.... ۱۹۷۶ء | ۳ | ۲۴

**الجواب:** داوړه صورتونو کښې دزکوة اخستل او ورکول جائز دی. لعدم التهمة فی الاولیٰ (۱) ولعدم المانع فی الثانیة (۲). وهوالموفق

## غریب مورپلار، خور، ورور ته زکوة ورکول مسئله

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مور، پلار، خور یا رور چه مسکینان فقیران وی هغه ته زکوة ورکول جائز دی یانه؟

بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.... ۱۲ شعبان ۱۳۹۴ھ

**الجواب:** په رونړو خوئیندو باندی زکوة خرچ کیدلې شی چه کله مسکینان وی (۳)

---

(۱) وقال ابن البزاز الکردری: الوکیل باداء الزکاة اذا صرفه الی ولده الکبیر او الصغیر او امرائته وهم محاویج جاز ولا یمسک لنفسه شیأ.

(البزازیة علی هامش الهندیة ۴: ۸۶ الثانی فی المصرف)

(۲) قال العلامة ابن نجیم: قید باصله وفرعه لان من سواهم من القرابة یجوز الدفع لهم وهو اولیٰ لما فیه من الصلة مع الصدقة کالاخوة والاخوات والاعمام والعمات والاخوال والخالات الفقراء ولهذا قال فی الفتاویٰ الظهیریة ویبدأ فی الصدقات بالاقارب.

(البحر الرائق ۲: ۲۴۳ باب المصرف)

وقال العلامة ابن عابدین: ویجوز دفعها لزوجة ابیه وابنه وزوج ابنته تاترخانیة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۶۹ باب المصرف)

(۳) وفی الهندیه: والافضل فی الزکاة والفطر والنذر ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

البته په مور پلار باندې زکوة نشي صرف کیدلې. ﴿۱﴾

والمسئلة من الواضحات فلاحاجة الی نقل العبارات. وهوالموفق

## انګوریانو ته زکوٰة ورکول جائزدی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه دلته یو سړی په خپلو انګوریانو باندې زکوة تقسیم کړې دی دغه زنانو کښې دغه لونړه هم شاملې دی آیا دا زکوة په صحیح طریقې باندې ورکړې شوی دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: توکل خان پاره چنارکرم ایجنسی کوهاټ ۱۹۷۴ء |۸| ۲۷

**الجواب:** که دا انګوریانې مالدارې نه وی او دا زکوة خالص دخپل مال وی د زامنودشرکت نه خالی وی نوددې زکوة په صحیح والی کښې هیڅ شك نشته بخلاف الاصول والفروع، کما لایخفی علی من راجع الی باب المصارف فی کتب الفتاویٰ ﴿۲﴾. وهوالموفق

## عزیز یا رشته دار ته څومره رقم پوری زکوة ورکولې شي؟

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څۀ فرمائی چه عزیز یا رشته دار ته دزکوة

---

(بقیه حاشیه)الصرف اولا الی الاخوة والاخوات ثم الی اولادهم ثم الی الاعمام والعمات ثم الی اولادهم ثم الی الاخوال والخالات ثم الی اولادهم ثم الی ذوی الارحام ثم الی الجیران ثم الی حرفته ثم الی اهل مصره او قریته کذا فی السراج الوهاج.

(فتاویٰ عالمګیریه ۱:۱۹۰ الباب السابع فی المصارف

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولا یدفع الی اصله وان علا وفرعه وان سفل کذا فی الکافی.

(فتاویٰ عالمګیریه ۱:۱۸۸ الباب السابع فی المصارف

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: ویجوز دفعها لزوجة ابیه وابنه وزوج ابنته تاتر خانیة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۹ باب المصرف



ورکولو څومره رقم پوری اجازت دی چه دهغه خپل مکان هم نه وی او واده ئی هم نه دې کړی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی نظیر بادشاه کوهاټ.... ۱۲ صفر۱۳۹۲ھ

**الجواب:** بالفرض که ستا داعزیز ددری زره (۳۰۰۰) روپو کور جوړکړی او دری زره (۳۰۰۰) په واده خرج کړی او داټولې ئی قرض اخستلې وی نو ده ته شپږ زرو (۶۰۰۰) روپئ بلکه دهغې نه زیات ورکولې شی ﴿۱﴾ وهوالموفق

## که پلار مالك نه وی صرف تصرف کوی نو ځامن خور ته زکوة ورکولې شی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یو سړی ځوی سعودئ عرب ته لاړو او مزدوری ئې او کړه مال ئی او ګټلو پلار او ځوی په ټول مال کښې شریك دی او تصرف ئی دځامنو دی یو ځوئی څۀ زکوة خپلې خور ته ورکړو آیا داصحیح دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد شفیق دادصده بازارکرم ایجنسی..۲۴| رمضان ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** که دی ځامنو خپل پلار ددې مال مالك جوړکړی وی نو دازکوة صحیح نه شو (شامی، بحر) ﴿۲﴾ او که ځامن ځانته دمال مالکان وائی او پلار ته صرف دتصرف اختیار دی نو دې صورت کښې خور ته زکوة ورکول صحیح دی ﴿۳﴾ ځکه چه د رونړو دمال داپلار عُرفی مالك دی شرعی مالك نه دی وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وکره اعطاء فقیر نصابا او اکثر الا اذا کان المدفوع الیه مدیونا او کان صاحب عیال بحیث لو فرقه علیهم لا یخص کلا او لا یفضل بعد دینه نصاب فلا یکره. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۷۴ باب المصرف

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: لا یجوز الدفع الی ابیه وجده وان علا ولا الی ولده وولد ولده وان سفل. (البحر الرائق ۲:۲۴۳ باب المصرف

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: ولا الی من بینهما ولاد الخ وقال ابن عابدین: وقید بالولاد لجوازه لبقیة الاقارب کالاخوة والاعمام والاخوال الفقراء...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## لور او نوسا نوسی د زکوة مصرف نه دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څۀ فرمائی چه زما یوه جینئ واده کړې ده چه دهغې څلور بچی دی او خاوند ئی مړشوی دی او اوس ما سره اوسیږی دهغوئ دامدنئ ذریعه هیڅ نشته آیا زه هغې ته زکوة ورکولې شم؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدامین غله ډهیر مردان... ۲۱|۶|۱۳۹۶ھ

**الجواب:** په خپلې لور او نوسو باندې عشر او زکوة نه شی خرچ کیدې ﴿۱﴾ والمسئلة من الواضحات فلاحاجة الی نقل العبارات. وهوالموفق

## د عاقل نابالغه بچی خپل ځان د پاره او نابالغو رونړو د پاره زکوٰة اخستل جائز دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څۀ فرمائی چه یو یتیم هلك چه دهغه عمر دولس (۱۲) دیارلس (۱۳) کاله دې اودهغه دری څلور واړه رونړه هم دی هغه ته زکوة ورکول څنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: میرآدم خان وانا کیمپ ساوتھ وزیرستان... ۱۹۷۷ء|۹|۳۰

**الجواب:** کوم نابالغ چه مال پیژنی نه ئی غور زوی او نه ورته ځوك دهوکه ورکولې شی (مثلاً چه دا څه بې کاره څیز دی اوغور زوه) نو هغه ته زکوة ورکول جائز دی خپل ځان دپاره ئی هم اخستلې شی او غیر عاقل رونړو دپاره هم قبض کولې شی. کمافی ردالمختار ۲: ۳ قوله بشرط ان یعقل القبض قید فی

---

(بقیه حاشیه) بل هم اولی لانه صلة وصدقة.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۶۹ باب المصرف)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ولا الی من بینهما ولاد، قال ابن عابدین: ای اصله وان علا کابویه واجداده وجداته من قبلهما وفرعه وان سفل...... کاولاد الاولاد.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۶۹ باب المصرف)



الدفع الکسوة کلیهما وفسره فی الفتح وغیره بالذی لا یرمی به ولا یخدع عنه فان لم یکن عاقلا فقبض عنه ابوه او وصیه او من یعوله قریبا او اجنبیا او ملتقطه صح﴿۱﴾ وفی الهندیة ۱:۲۰۲ ولو قبض الصغیر وهو مراهق جاز ﴿۲﴾. وهوالموفق

## مور او غیرشرعی نکاح کښې دښځې خاوند پښان ژوند تیرونکو ته زکوة ورکول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه زما مور صاحبه سخته بیماره ده اودمالی امداد سخت حاجت لری او زما په ګاونډ کښې داسې کسان او سیږی چه ډیر په غربت کښې دی هغه یوی ښځې خپل شرعی خاوند پریښودو اودغیر شرعی خاوند سره ازدواجی ژوند تیروی اوددغې خاوند نه ئی ناجائزه بچی هم پیدا شوی دی آیا زه دوی ته دزکوة رقم چه ورکړم نو بری الذمه کیدلې شم؟ بینوا توجروا

المستفتی: ماسټر همت علی شاه جمال ګړهی مردان

**الجواب:** مورته زکوة ورکول صحیح نه دی ﴿۳﴾ باقی دغې نوروته زکوة وغیره ورکول صحیح دی ځکه چه دافقیران او مسلمانان دی په کفر کښې نه دی داخل شوی ﴿۴﴾ وهوالموفق .

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳ کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۹۰ الباب السابع فی المصارف)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: ولا الی من بینهما ولاد، قال ابن عابدین: والولاد بالکسر مصدر ولدت المرأة ولادة ولاد مغرب ای اصله وان علا کابویه واجداده وجداته من قبلهما وفرعه وان سفل. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۹ باب المصرف)

﴿۴﴾ قال الملا علی قاری: ولا نکفر مسلماً بذنب من الذنوب ای بارتکاب معصیة وان کانت کبیرة ای کما یکفر الخوارج مرتکب الکبیرة اذا لم یستحلها ای لکن اذا لم یکن یعتقد حلها...... ولا نزیل عنه اسم الایمان.

(شرح فقه الاکبر للقاری ۷۱ الکبیرة لا تخرج المؤمن عن الایمان)

## میرنئ مورته زکوٰة ورکول جائز دی

**سوال:** علمائی دین ئی مسئلې باره کښې څهٔ فرمائی چه زید خپلې میرنئ مور ته دزکوٰة مال ورکولې شی یا نه؟ که پلارئی ژوندې وی یا نه؟بینوا توجروا

المستفتی: محمد مسکین موزه ساز تهته شهر پنډی گیپ

**الجواب:** میرنئ مورته هر حالت کښې زکوة ورکول جائز دی.

فی ردالمحتار ۲: ۶۵ ویجوز دفعها لزوجة ابیه وابنه وزوج ابنته (تاتارخانیة) ﴿۱﴾. وهوالموفق

## دصاحب نصاب خاوند غریبی ښځې دپاره دزکوٰة اخستلو اوپه غیر معجل مهر سره دمالدارې نه جوړیدلو مسئله

**سوال:** علمائی دین دی مسئلې باره څه فرمائی (۱) دکومی ښځی خاوند چه صاحب نصاب وی او غنی وی لیکن دهغه ښځه فقیره او مسکینه وی آیا هغه دچانه زکوة اخستلې شی؟ (۲) مؤجل مهر تراوسه ښځه ته نه دی ادا کړې شوی او دخاوند سره دی آیا په دی مهر سره دا ښځه مالداره اوصاحب نصاب جوړیدلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا فخرالدین ابن شیخ الحدیث واستاد العلماء مولانا غورغشتوی ؒ

**الجواب:** (۱) دغنی ښځه (غیر غنیه) زکوٰة اخستلې شی.

کما فی شرح التنویر ولا الی طفله بخلاف ولده الکبیر وابیه وامرأته الفقراء وطفل الغنیة (۲: ۹۰) ﴿۲﴾.

(۲) ښځه په غیر معجل مهر سره مالداره نشی جوړیدلې البته په مهر معجل سره به مالداره شی که خاوند ئی غنی وی.

کما فی ردالمحتار ۵: ۲۷۲ والمرأة مؤسرة بالمعجل لوالزوج ملیا وبالمؤجل لا﴿۳﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۶۹ باب المصرف)
﴿۲﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۷۲ باب المصرف)
﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۵: ۲۱۹ کتاب الاضحیة)



## بال بچه دار عالم او طالب علم به په خپلوانو مخکښې کولې شی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په مدرسو کښې علماء اوغریبانانو طالبانو ته زکوة ورکولو کښې ډیر ثواب دې او که په رشته دارانو کښې تقسیمولو سره ډیر ثواب دی؟ دغه شان په بعضی مدرسو کښې دطالبانو دطرفنه قبض نه متحقق کیږی. بلکه دطالبانو په خرچو باندې ئی مهتمم او مدرسو والا خرچ کوی آیا په دې سره زکوة ادا کیږی؟ دغه شان دنه ادا کیدلو په صورت کښې به صاحب نصاب لره په دویم ځل زکوة ورکول وی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عبدالغفار چیف کیمسټ مین بازار منگوره سوات ۱۴ شعبان ۱۳۹۶ھ

**الجواب:** بال بچه دار عالم او طالب علمان به په رشته دارانو باندې مخکښې کولې شی (هندیه) ﴿۱﴾ په کومو مدرسو کښې چه طالبانو ته روټی، صابن وغیره ورکولې شی نو دهغوی مهتممینو ته دتوکیل په طور سره (په استبدال او تملیک کښې) ورکول جائز او کافی دی ددینه علاوه واجب الاعاده دی. (جمیع الفتاوٰی) ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د مدرسی د پاره عشر او زکوٰة بطور صله اخستل جائز دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څهٔ فرمائی چه زما ورځ او شپه ماشومانو ته په قرآن کریم ناظره سبق خودلو کښې تیریږی څما دخپل معاشی ضروریاتو دکفالت دپاره بل وخت نشته خلقو زما لپاره دټول عشر نه

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: التصدق علی الفقیر العالم افضل من التصدق علی الجاهل.
(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۱۸۷ الباب السابع فی المصارف)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: یصرف المزکی الی کلهم او الی بعضهم...... ویشترط ان یکون الصرف تملیکا لا اباحة کما مر.
(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۸ باب المصرف)

نیمه حصه او دټولي فطراني راکولو بندوبست کړي دی آیا ما دپاره داخیزونه اخستل حلال دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: حبیب الرحمن مانسهره..... ۱۹۷۹ء|۱۱|۱۵

**الجواب:** که ته مسکین ئی نو عشر او زکوٰة دصلي په طور سره اخستلې شی.

**قال الله تعالیٰ: هل جزاء الاحسان الا الاحسان (الآیة)** ﴿۱﴾

او داجرت او معاوضی په طور ئی نشي اخستلې

**لفوات الشرط وهو کونها لله تعالیٰ** ﴿۲﴾ **والمعتبر نیة الدافع دون الآخذ کما صرح به فی التکملة ۱: ۳۵۹** ﴿۳﴾. **وهو الموفق**

## فقیر امام مسجد ته زکوٰة بطور ترحم او صله جائز دی

**سوال:** علمائی دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه کوم سړي امام وی او فقیر هم وی هغه ته دزکوٰة پیسي ورکول څنګه دی؟ او که هغه سړي امامت نه کوی نو بیا خلق هغه ته څۀ نه ورکوی نو آیا په دي صورت کښي داقضیه نه ثابتیږي چه (المعروف بالعرف کالمشروط بالشرط الخ)؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوی ګل منان امداد العلوم درویش مسجد پشاور ۱۹۸۵ء|۱۰|۳۰

---

﴿۱﴾ (سورة الرحمن پاره: ۲۷ رکوع: ۱۳ آیت: ۶۰)

﴿۲﴾ قال الحصکفی: هی تملیک جزء مال عینه الشارع من مسلم فقیر غیر هاشمی ولا مولاه مع قطع المنفعة عن المملک من کل وجه لله تعالیٰ قال ابن عابدین: متعلق بتملیک ای لاجل امتثال امره تعالیٰ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ۲: ۳،۴ کتاب الزکاة)

﴿۳﴾ قال العلامة علاء الدین افندی: القول للدافع لانه اعلم بجهة الدفع. (تکملة ردالمحتار ۱: ۳۹۱ مطلب واقعة الفتویٰ)...... وفی ردالمحتار: وفی التعبیر ثم اشارة الی انه لو امره اولا لا یجزی لانه یکون وکیلا عنه فی ذلک وفیه نظر لان المعتبر نیة الدافع الخ. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۶۹ باب المصرف)...... وقال ابن البزاز الکردری: والعبرة لنیة الدافع لا لعلم المدفوع الیه. (فتاویٰ بزازیة علی هامش الهندیة ۴: ۸۶ باب المصرف)



**الجواب:** دجمات امام چه کله فقیر وی هغه ته زکوٰة ورکول جائز دی ﴿۱﴾ خود أجرت او معاوضي په صورت کښي جائز نه دی.

**وهذا نادر جداً. والمتعارف هو الاعطاء له علی وجه الترحم او الصلة ولذا ینوی المعطون الثواب والتقرب الی الله والاجیر لا یکون کذلک وبالجملة ان منع الاعطاء مطلقا خراب نظام اکثر المساجد. وهو الموفق**

## د جماتونو امامانو ته زکوٰة او صدقات ورکول

**سوال:** علمائی دین دي مسئلي باره کښي څۀ فرمائی چه زمونږ په ملک کښي د پخوا زماني نه دا رواج راروان دي چه دجماتونو امامانو ته زکوٰة، عشر، فطرانه او صدقات امامت یا بغیر اجرت نه تصور کړي دخلقو دیني احکام مثلاً جماعت کول جنازي کول، درس وتدریس کول وغیره کارونه سرته رسوی او سه پوري هیڅ مسئله نه وه لیکن اوس اعتراض شوی دی که واجب صدقات د امامت داجرت دپاره ورکړي نو دامام مسجد دپاره صحیح نه دی او د اداکونکو ذمه هم فارغه نه ده او بعضي علماؤ فتوی ورکړي ده چه کله د جماتونو امامان دبیت المال دوظیفونه هم محروم دی او پخپله په دیني کارونو کښي مشغوله دی نو ددوی دپاره واجب صدقات اخستل حلال او طیب دی برابره خبره ده په اجرت ئي ګڼړی اوکه غیر اجرت په باندو کښي خونه دتللو راتللو ذرائع وی او نه تجارتی کارو بار نشته ټول دار ومدار په غله

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وفی المعراج التصدق علی العالم الفقیر افضل قال ابن عابدین: قوله افضل ای من الجاهل الفقیر. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ۲: ۷۵ باب المصرف)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ولو نوی الزکاة بما یدفع المعلم الی الخلیفة ولم یستاجره وان کان الخلیفة بحال لو لم یدفعه یعلم الصبیان ایضا اجزأه والا فلا. (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۱۹۰ الباب السابع فی المصارف)

باندې دي. کلې والا امام ته ديوې روپئ ورکولو نه هم عاجزدي او بعضې علماء داټول هر څۀ حرام ګرځوي دقران اوسنت نه چه کومه خبره هم صحیح وي او ليکئ او مونږ ته ارسال کړئ چه دحق اظهار اوشي؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوی فضل الرحمٰن امام مسجد غل ايبټ آباد هزاره ۱۹۶۹ء|۲|۲

**الجواب:** کوم د جماتونو امامان چه مالداران وي نوهغوی دپاره دصدقات واجبه اخستل او ورکول حرام دي او کوم چه مالداران نه وي هغوی ته که دا واجب صدقات دامامت په عوض کښې ورکړې شي نو دورکونکو ذمه فارغه نه شوه او که دامامت په خاطر اوصله کښې ئې ورکوی نوبغيرشك اوشبهې نه جائزدی.

قال الله تعالىٰ: انما الصدقات للفقراء (الآية)﴿۱﴾ وقال رسول الله ﷺ تؤخذ من اغنيائهم فترد على فقراءهم ﴿۲﴾ وفى الهندية ۱: ۱۸۱ اما تفسيرها فهى تمليك المال من فقير مسلم غير هاشمى ولا مولاه بشرط قطع المنفعة عن المملک من كل وجه لله تعالىٰ ﴿۳﴾ وعن انس رضى الله عنه ان رجلاً من كلاب سأل النبى ﷺ عن عسب الفحل فنهاه فقال يا رسول الله انا نطرق الفحل فنكرم فرخص له فى الكرامة﴿۴﴾. وهو الموفق

## د زکوة او عشر مصارف فقراء او مساکين دی هغه که ائمة المساجد وی او که علماء وی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه دپاکستان په بانډو کښې عشر او زکوة دجماتونو امامانوته ورکولې شی ددینه علاوه داعام طور سره علمائی کراموته ورکولې شی دهغوی دقول مطابق چه داد دین اسلام دخدمت کونکو حق دی آیا داحکم لګول صحيح دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: ممتازحسين شاه ايبټ آباد مانسهره.... ۱۹۶۹ء | ۹| ۳۰

**الجواب:** دعشر اوزکوة مصارف فقيران اومسکينان وغيره دی هغه که دجماتونو

﴿۱﴾ (سورة التوبة پاره: ۱۰ رکوع: ۱۴ آيت: ۶۰)
﴿۲﴾ متفق عليه. (مشكواة المصابيح ۱: ۱۵۵ الفصل الاول كتاب الزكاة)
﴿۳﴾ (فتاوىٰ عالمگيريه ۱: ۱۷۰ الباب الاول كتاب الزكاة)
﴿۴﴾ (جامع الترمذی ۱: ۱۵۳ باب ماجاء فى كراهية عسب الفحل)



امامان وی او که نور علماء وی یا بل څوك وی بې شکه فقهائی کرامو دا ليکلې دی بال بچه دار علماء چه کله صاحب نصاب نه وی نو خدمت دين ته دفارغ کيدلو په ارادې سره هغوی ته ورکول موجب د ډير اجردې ﴿۱﴾

## د روافضو په علاقه کښې داهل سنت داقليت په بنياد باندې زکوة او عشر سره ددينی مدرسې قيام

**سوال:** علمائی دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ څائی کښې يوه داسې علاقه ده چه هلته روافض اسماعليان او اثنا عشريه په مقابله کښې اهل سنت والجماعت پنځه فی صده دی اوهغه هم ددينی شعور د معدوميت او ددينی علومونه دناواقفيت په وجې سره اودهغوې سره ميل جول ساتلو او ژوند تيرولو په وجې سره دهغوې دينی حالت انتهائی کمزورې او مړشوی دی اوپه ټولو سرکاری او تعليمی ادارو کښې د روافضو استاذانو عملاً قبضه ده چرته چه ددينی تعليم هيڅ انتظام نشته اونه په دغه سکولونو کښې داهل سنت علماؤ ددينيات معلم په حيثيت سره مقررتيا کيدلې شی اوپه داسی علاقه کښې څۀ علم والا ملګرې د تنظيم اهل سنت بنياد کيږدی او ټول مسلمانان په يو پليټ فارم جمع کړی اوپه هر کلې کښې باقاعده امير مقرر کړی اود ټولې علاقی دپاره يو مرکزی امير مقرر کړې شی اودټولو جهګړو وغيره فيصلې ددغې تنظيم لاندې کيږی په دې حيثيت سره که دا تنظيم دعلم دين اشاعت اود قوم ماشومان دالله تعالىٰ احکاماتو نه خبرول اود رافضيت او شيعه توب دحفاظت کولو دپاره ديوې دينې مدرسې بنياد کيښودلو کوشش اوکړې او دهغې دپاره دعشر غلې جمع کولو انتظام اوکړی په دې طريقې سره چه په هرکلی کښې تنظيم دخپل طرفنه دوه دری کسان عاملان مقرر کړی او هغه عشر او زکوة جمع کړی او دمدرسی بيت المال ته ئی راوړی نو دا طريقه شرعاً جائز ده يانه؟ اودا جمع

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى: وفى المعراج التصدق على العالم الفقير افضل، قال ابن عابدين: (قوله افضل) اى من الجاهل الفقير.
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۷۵ باب المصرف)

شوی غله یا دهغې قیمت په مدرسه کښې کومو کومو مصارفو باندی خرچ کیدیشی اوپه دې سره مدرسی دپاره کتابونه اخستل اوپه تعمیر کښې لګول جائز دی یانه؟ او دغه شان داسلامی حکومت نه کیدلو په وجې سره په یوه علاقه کښې چه مسلمانان منظم شی بیت المال جوړکړی نو دزکوة اوعشر دجمع کولو او تقسیم کولو اختیار لرلې شی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید عبدالجلیل پهکوره ګلګت بلتستان

**الجواب:** واضحه دی وی چه عشر او زکوة که هغې لره مالکان پخپله ادا کوی یا په وساطت دیو مسلمان حاکم، دهغوی مصارف هغه دی کوم چه په قران مجید کښې منصوص دی. (انما الصدقات للفقراء... الآیة،﴿۱﴾ اوپه دی ټولو کښې تملیك حقیقی شرط دی. کما صرح به صاحب البدائع ۲: ۳۹ ﴿۲﴾ وسائر الفقهاء فلیراجع، دغه شان دا خبره هم ده چه عامل هر زکوة وصول کونکی ته نشی وئیلې بلکه عامل هغه محصل زکوة ته وئیلې شی چه هغه باقاعده حکومت مقرر کړی وی. کما فی الهندیة ۱: ۱۹۹ ﴿۳﴾ وهٰکذا فی غیر واحد من الکتب، پس ددې تفصیل په بناء تاسو دزکوة او عشر په مدّ سره تعمیر نشئ کولې اونه پرې کتابونه اخستلې شئ او نه ددې مدّ نه تنخواه ورکولې شئ اونه ستاسو سفیر عامل شرعی کیدلې شی. ﴿٤﴾

**نعم جاز اعطاء الرزق للمدرس الفقیر قدر مایکفی له ولعیاله اکلاً وشربا ولبساً من غیر تعین الاجرة وجاز ان یعطی ذلک العشر والزکاة للطلبة المساکین الذین وضع علیهم الاجرة**

﴿۱﴾ (سورة التوبة پاره: ۱۰ رکوع: ۱۴ آیت: ٦۰)

﴿۲﴾ قال العلامة الکاسانی: وتسلیم ذلک الیه یقطع المالک یده عنه بتملیکه من الفقیر وتسلیمه الیه. (بدائع الصنائع ۲: ۱٤۲ فصل واما رکن الزکاة کتاب الزکاة)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: ومنها العامل وهو من نصبه الامام لاستیفاء الصدقات والعشور کذا فی الکافی. (فتاوٰی عالمګیریه ۱: ۱۸۸ الباب السابع فی المصارف)

﴿٤﴾ قال العلامة الحصکفی: یصرف المزکی الی کلهم او الی بعضهم تملیکا لا اباحة لا یصرف الی بناء نحو مسجد وفی هامشه کبناء القناطر والسقایات واصلاح الطرقات ...... وکل مالا تملیک فیه. (الدر المختار مع هامش ردالمحتار ۲: ٦۸ باب المصرف)



**المخصوصة للمعلم ثم یعطونها علی وجه الاجرة وایضا جازت الحیلة عند الضرورة الشرعیة ولا بد من التملیک جداً دون الهزل مثلا اذا اعطی القیم الی الطالب المسکین مأة علی وجه القرض ای من ملک القیم فیعطیها الطالب الی القیم علی وجه العطیة یشتری بها الکتب ثم یعطیه القیم مأة من الزکاة والعشر فیعطیه الطالب الی القیم لاداء القرض فافهم ولا تعجل فی العمل ﴿۱﴾. وهو الموفق**

## دینی مدرسو ته د زکوٰة وغیره ورکولو حکم

**سوال:** علمائی دین دی مسئلې باره څۀ فرمائی چه ددینی مدارسو دضروریاتو پوره کولو دپاره دعوام الناس نه زکوة، نذر، فطرانه او دقربانۍ څرمنی وصول کولې شی بیا دا پیسی طالبانو یا استاذانو ته تملیکاً ورکړی په دویم ځل ئی خپلې مرضئ سره مهتمم یا ناظم ته داداری چلولو دپاره ورکوی روستو دغه رقومات دمدرسینو په تنخواګانو تعمیر او کتابونو وغیره کښې خرچ کولې شی آیا دا طریقه جائز ده؟ اوآیا په دې طریقې سره ددی خلقو زکوة ادا کیدلې شی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی الله داد...... ۱۹۷۸ء|۹|۱

**الجواب:** که دمالکانو غریب طالبانو ته ذاتی طور سره ملکیت باندې ورکول مسلم او محقق وی نو په دغه طریقی سره به دمالکانو ذمی دزکوة وغیره نه فارغه شی. ﴿۲﴾ لیکن په عرف باندې نظر کولو سره معلومیږی چه طلب او ادا کول دواړه دمدرسی په نوم باندې کیږی وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ان الحیلة ان یتصدق علی الفقیر ثم یامره بفعل هذه الاشیاء وهل له ان یخالف امره لم اره والظاهر نعم، قال ابن عابدین: قوله ثم یأمره ویکون له ثواب الزکاة وللفقیر ثواب هذه القرب. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ٦۹ باب المصرف)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ویشترط ان یکون الصرف تملیکا لا اباحة. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ٦۸ باب المصرف)

## که یو فقیر مسکین ته د زکوٰة مال ملاؤشو نو استاذانو ته ئې په اجرت کښې ورکولې شي

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څۀ فرمائی چه یو فقیر مسکین ته دزکوة مال ملاؤ شو هغه دمدرسې دمعلمینو دتنخواګانو چنده ددغې مال د زکوة نه ورکړه آیا دا جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدعتیق الرحمٰن سیالکوټ.... ۱۲ ربیع الثانی ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** که دافقیر او مسکین دزړه په خوشحالئ سره داټول یا بعضې مال د زکوٰة لره دمعلمینو په اجرت کښې ورکړی نو دیکښې هیڅ حرج نشته.

وهذا هو المراد من التملیک حقیقةً عند الحیلة لتبدل الملک ﴿۱﴾ یدل علیه حدیث بریرة رضی الله عنها هو لها صدقة ولنا هدیة﴿۲﴾ وکذا وقعت الاشارة الیه فی حدیث رواه مالک وابوداؤد، لا تحل الصدقة لغنی الا لخمسة لغاز فی سبیل الله او العامل علیها او الغارم او لرجل اشتراها بما له او لرجل کان له جار مسکین فتصدق علی المسکین فاهدی المسکین للغنی ﴿۳﴾. وهو الموفق

## تملیک بالذات یا دمهتمم په واسطې سره مدرسو ته زکوة ورکول جائز دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څۀ فرمائی چه مدرسو ته عشر او زکوة

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: ویجب الاحتراز من ان یلاحظ الوصی عند دفع الصرة للفقیر الهزل اوالحیلة بل یجب ان یدفعها عازما علی تملیکها منه حقیقة لا تحیلا ملاحظا ان الفقیر اذا ابی عن هبتها الی الوصی کان له ذلک ولا یجبر علی الهبة.

(رسائل ابن عابدین ۱:۲۲۵ منة الجلیل لبیان اسقاط ما علی الذمة الخ)

﴿۲﴾ (سنن ابی داؤد ۱:۲۴۱ باب الفقیر یهدی للغنی من الصدقة کتاب الزکوٰة)

﴿۳﴾ رواه ابوداؤد ۱:۲۳۸ باب من یجوز له اخذ الصدقة وهو غنی، واحمد ۳:۵۶ وابن ماجة۱۸۳۹ والحاکم ۱:۴۰۷،۴۰۸ وقال هذا حدیث صحیح علی شرط الشیخین ولم یخرجاه لارسال مالک بن انس ایاه عن زید بن اسلم.



ورکول جائز دی یانه؟ که جائز وی نو طریقه ئې څۀ ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالله مقام نادان شهید پشاور...... ۱۹۷۴ء|۷|۷

**الجواب:** دینی مدرسو ته عشر او زکوة په دې طریقې جائز دی چه بالذات یا بواسطه مهتمم ددې رقم بعینه یا داجناسو په صورت کښې تملیك اوکړې شی﴿۱﴾ مختصر داچه په مهتمم باندې دی اعتماد اوکړی شی وردې کړې وهوالموفق

## د حکومتی زکوة کمیټئ نه دینی مدرسو دپاره دزکوة اخستلو حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څۀ فرمائی چه دحکومتی زکوة کمیټئ دطرفنه چه کوم امداد دینی مدرسو ته ورکولې کیږی دا امداد اخستل صحیح دی یانه؟ یعنی یونیم سل روپئ او سیدونکی (مقیم) طالب علم ته ورکولې شی او پنځه اویا روپئ غیر رهائشی طالبانو ته ورکولې کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاری محمدعمر مدرسه تعلیم القرآن بیرون ګنج ګیټ پشاور

**الجواب:** طالب علم دپاره دا امداد اخستل جائز دی البته مهتمم دپاره اخستلو نه پس مصرف ته نه رسول جائز نه دی ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: (قوله هی تملیک المال من فقیر مسلم...... بشرط قطع المنفعة عن المملک من کل وجه لله تعالیٰ) لقوله تعالیٰ واتوا الزکاة والایتاء هو التملیک ومراده تملیک جزء من ماله وهو ربع العشر او ما یقوم مقامه...... لان الزکاة یجب فیها تملیک المال.

(بحر الرائق ۲:۲۰۱ کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: والواجب علی الائمة ان یوصلوا الحقوق الی اربابها ولا یحبسونها عنهم ولا یحل للامام واعوانه من هذه الاموال الا ما یکفیهم وعائلتهم ولا یجعلونها کنوزا...... فان قصر الائمة فی ذلک فوباله علیهم.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۹۱ فصل ما یوضع فی بیت المال اربعة انواع)

## د مدرسې د پاره د زکوٰة په مد کښې د باقاعده حیلې صورت

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دمدرسې په فنډ کښې زکوٰة، فطرانه اودقربانی دڅرمنو وغیره رقم وی په تنخواګانو کښې ددې زکوٰة رقم ادا کول شرعاً صحیح نه دی لیکن د نورو مدآتو نه داخرچ نه پوره کیږی نو ددې دپاره څه طریقه اختیار کړیشی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عبدالرشید مسجدبازارایبټ آباد...۱۹۹۰ء|۱۰|۲۳

**الجواب:** دعندالضرورت باقاعده حیله کول جائزدی یعنی اول دی چرته عاقل، بالغ اودعلم دین خیرخوا مسکین پوهه کړی شی چه زمونږ دطرفنه چه کوم دزکوٰة رقم تاته در کړیشی نو ته به دهغې بلاخوف وخطرمالك ئی ته به په خپل ذات خرچ کولو او مدرسې ته واپس کولو کښې مجاز ئې که ته دا رقم مدرسی ته واپس کړې نو داټول ثواب به ستاوی (۱) ددینه پس به هغه ته لږ رقم ورکړې شی او د واپسئ په صورت کښې به بیا لږلږ رقم ورکړې شی.وهوالموفق

## په حیله زکوٰة کښې تملیك حقیقی ضروری دی ټوقو سره نه کیږی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې علمائی داخبره کوی چه په زکوٰة کښې دمعلیمنو او استاذانو دپاره باقاعده حیله جائزده او بعضې خلق دانه منی نو شرعاً دا جائز ده یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدعتیق الرحمٰن کچهری روډ سیالکوټ...۱۹۶۹ء|۵|۲۰

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی الحیلة ان یتصدق علی الفقیر ثم یامره بفعل هذه الاشیاء وهل له ان یخالف امره لم اره، قال ابن عابدین: (قوله ثم یأمره) ویکون له ثواب الزکاة وللفقیر ثواب هذه القرب.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۹ باب المصرف)



**الجواب:** چه کله دا حیله باقاعده وی یعنی دتملیك حقیقی په طریقې سره یو متوسط سړی ته ورکړې شوی وی او دټوقو په طریقې سره نه وی نوبې د شك شبهې نه جائز ده.

صرح به الفقهاء مثل العلامة الشامی فی ردالمحتار ۲:۸۶ ﴿۱﴾ وصاحب البحر فی ۳:۲۴۳ ﴿۲﴾ وذکرت فی الهندیه ۶:۳۹۲ ﴿۳﴾ وغیرهم واما عدم صحة الهزل فصرح به العلامة التهانوی فی امداد الفتاویٰ ﴿۴﴾ والعلامة الشامی فی رسائل ابن عابدین فی مسئلة حیلة الاسقاط ﴿۵﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: الحیلة ان یتصدق علی الفقیر ثم یامره بفعل هذه الاشیاء وهل له ان یخالف امره لم اره والظاهر نعم، قال ابن عابدین: (قوله ثم یأمره) ویکون له ثواب الزکاة وللفقیر ثواب هذه القرب. (الدرالمختار علی هامش ردالمتار ۲:۶۹ باب المصرف)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: ان یتصدق بمقدار زکاته علی فقیر ثم یامره بعد ذلک بالصرف الی هذه الوجوه فیکون لصاحب المال ثواب الزکاة وللفقیر ثواب هذه القرب. (البحر الرائق ۲:۲۴۳ باب المصرف)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: والحیلة له ان یتصدق بمقدار زکاته علی فقیر ثم یامره بعد ذلک بالصرف الی هذه الوجوه فیکون للمتصدق ثواب الصدقه ولذلک الفقیر ثواب بناء المسجد والقنطرة. (فتاویٰ عالمگیریه ۶:۳۹۲ کتاب الحیل الفصل الثالث)

﴿۴﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: دتقوی نه قطع نظر زما په نزد دقاعده فقهیه په رڼا کښې هم دا زکوٰة نه ادا کیږی ځکه چه تملیك دزکوٰة رکن دی او په تملیك کښې چه کله عاقدین ټوقو والاوی نو تملیك نه کیږی او په دې متعارف صورت کښې دواړه په مضبوطو قرینو سره ددی معترف دی چه تملیك مقصود نه دی.
(امداد الفتاویٰ ۲:۱۳ کتاب الزکاة والصدقات مسئلة:۲۷)

﴿۵﴾ قال العلامة ابن عابدین: ویجب الاحتراز من ان یلاحظ الوصی عند دفع الصرة للفقیر الهزل او الحیلة بل یجب ان یدفعها عازما علی تملیکها منه حقیقة لا تحیلا.
(رسائل ابن عابدین ۱:۲۲۵ منة الجلیل لبیان اسقاط ما علی الذمة من کثیر وقلیل)

## د حکومت نه مدرسو د پاره په حیله رقم اخستل جائز دي

**سوال:** دحکومت پاکستان زکوة کمیټۍ چه اسلامي مدرسو ته کوم رقم لیږي هغه داوسیدونکو طالبانو دپاره وي او دخرچ شپږ میاشتۍ ګوشوار (ریکارډ) هم غواړي په بعضې مدرسو کښې بهرني طالبان نه اوسیږي مقامي طالبان په ډیر تعداد کښې راځي او سبق وائي بیا کور ته ځي دمدرسې خرچونه ډیر وي تنخواګانې. تعمیرات وغیره پس که زکوة کمیټۍ ته رشتیا خبره اولیکلې شي نو هغوئ پیسې نه رالیږي او که نه د اوسیدونکو طالبانو لسټ جوړ کړی شي او اوسیدونکی ئې فرض کړی نو دادروغ دی او دمدرسې دامدنئی بله ذریعه نشته چه په هغې سره خرچې پوره شي او که د محمود مقصود دپاره دروغو سهاره واخستلې شي نو شائد چه په دې باندې نیول نه وي لکه چه په روح البیان کښې سورة الصافات د آیت: فنظر نظرة فی النجوم فقال انی سقیم، د لاندې دعزالدین بن سلام قول منقول دی:

**قال عز الدين بن سلام الكلام وسيلة الى المقاصد فكل مقصود محمود يمكن التوصل اليه بالصدق والكذب جميعا فالكذب فيه حرام فان امكن التوصل اليه بالكذب دون الصدق فالكذب فيه مباح ان كان تحصيل ذلک المقصود مباحاً وواجب ان كان ذلک المقصود واجباً فهذاه ضابطة انتهى.**

ستاسو صاحبانو دې باره کښې څه رائی ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالجلیل هنډوه ضلع کرك.... ۱۹۷۰ء | ۷ | ۲۸

**الجواب:** په حکومت باندې ددنیوی اودین دواړو علومو انتظام واجب دی نو څنګه چه حکومت ددنیاوی علومو دپاره دتعمیر او متعلقه استاذانو ته دتنخواګانو انتظام خپل منصبی فرض ګڼړی نو هم دغسې ددینی علومو دپاره هم د تعمیر او مشاهراتو انتظام دده منصبی فرض دی نو که ددې حقوقو دحصول دپاره څۀ حیله او کړیشی نو ناجائز به نه وي وهو الموفق





## په زکوة کښې د باقاعده حیلې نه بغیر د ذمې فراغت نه کیږي

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه یو سړی ته چالس زره (۱۰۰۰۰) روپئ ورکړی چه دا په غریبانانو تقسیم کړه او هغه پخپله غني دی لیکن فقیر ته وائی تاته به پنځوس روپئ دزکوة درکړم ته ئې قبولې کړه او ماته ئې واپس کړه آیا داحیله صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ محمد نګین مدرسه نصیریه غورغشتی

۲۷ ا جمادی الاولی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** داحیله باقاعده حیله نه ده لهذا په دې سره دذمې نه فراغت نه حاصلیږي. **يجب ان يدفعها الى الفقير عازما على تمليكها منه حقيقة لا تحيلا كما في رسائل ابن عابدين﴿۱﴾.** وهو الموفق

## د مدرسې په مطبخ کښې د زکوٰة خرچ کولو او تنخواه کښې د زکوٰة د پاره عجیبه حیله

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه یو حاجی صاحب مدرسه جوړه کړه او په طالبانو کښې ئې یو وکیل جوړ کړو او چه کله وړه وغیره راځی نو وکیل ته دقبض کولو دپاره وئیلې شي. اوکله کله ئې دحاجی نوکراوړی او مطبخ کښې ئې غورزوی په هغې کښې صرف اخذ تعاطی کیږي او باقاعده ایجاب او قبول نه وي او کله نقدر قم څما لاسونو ته رسوی زه وکیل راوغواړم نو هغه وکیل ئې واخلی اوس په دې کښې دحاجی صاحب دطرفه حالاً او قالاً تقاضی ده چه دا رقم او وړه د میاشتی پوره کیدلو پوری خلاص نه شی که دمیاشت نه مخکښې ختم شی نو شکایت کوی نو حاجی صاحب دا رویه د عدم تملیك حقیقی نخښه ده آیا په دې طریقې سره ذمه فارغه ګرځی؟ (۲) زه په دی مدرسه کښې مدرس یم دتنخواه دپاره ئې داحیله جوړه کړه چه زه به تنخواه او وظیفه نه اخلم بس فی سبیل الله به درس کوم په دی نفی سره چونکه اجاره

---

﴿۱﴾ (رسائل ابن عابدين ۱: ۲۲۵ منة الجليل لبيان اسقاط ما على الذمة من كثير وقليل)

منتفی شوه نو آیا په دی صورت کښې دحاجی صاحب دزکوة ذمه فارغیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبیدالله.... ۱۹۷۵ء|۷|۲۶

**الجواب:** واضحه دی وی چه کوم طالبان دزکوة مصرف دی نو هغه یو کس وکیل مقرر کولې شی او ته دحاجی صاحب دطرفنه وکیل شوی تملیك کوه په دی طریقې سره دزکوة دضائع کیدلو هیڅ خطره نشته او دحاجی صاحب شکایت به انتظام باندې محمول کولې شی په عدم دتملیك باندې نۀ. او ستاسو دتصریح باوجود به ستاسو معامله د اجارې وی.

**لان الدلالة لا تعارض بالعبارة والاشارة، والمعروف من قبيل الدلالة صرح به فی کتب الاصول. وهوالموفق**

## د بیت المال او د زکوة د حیلې حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلو باره څه فرمائی (۱) زمونږ په کلی کښې دبیت المال په نوم سره زکوة صدقه فطر او عشر وغیره په دې غرض سره جمع کولې شی چه په دې رقم سره دامام مسجد د تنخواه کمې پوره کړیشی ددې بیت المال شرعی حکم څۀ دی؟ (۲) که څوك اعتراض او کړی چه حقدارانو ته دهغوی حق ددینه په وخت باندې ملاویدل گران دی اودغه شان امام ته تنخواه ورکول ددې مال نه جائز نه دی نوآیا دحیلې نه پس به هم داحکم وی؟ (۳) که دحیلې په وخت کښې بیا بیا یو سړی ته دا رقم ورکړی شی نو آیا هم په یو سړی باندی دا حیله کول جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد تاج بازارگې اوگی مانسهره

**الجواب:** (۱) دا بیت المال بذات خودنه مطلوب شرعی دی اونه ممنوع شرعی دی لیکن عوام نه دزکوة مصارف پیژنی او نه ئې دخرچ کولو په طریقه پوهیږی لهٰذا دا بیت المال به خطراتو نه خالی نه وی (۲) اگر چه حیله عند الضرورت

﴿۱﴾ قال الدکتور وهبة الزحیلی: العاملون وهم السعاة لجبایة الصدقة ویشترط فیهم العدالة والمعرفة بفقه الزکوٰة. (الفقه الاسلامی وادلته ۳:۱۹۵۳ مبحث مصارف الزکاة)



جائز ده لیکن حیله کول دهر سړی کارنه دی په حیله کښې دا ضروری دی چه متوسط سړی حقیقی مالك جوړ کړی توقی او تش دژبې تملیك کافی نه دی دباقاعده حیله کولونه پس هم یو سړی ته رقم ورکول او حیله بیابیا په یو سړی سره کول جائز دی البته دی حقیقی تملیك نه بغیر داحیله حیله نه ده بلکه دهوکه ورکول دی ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د مالدار عالم او متعلم دپاره دزکوة اخستلو حکم

**سوال:** علمائی دې دی مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په دینی مدرسو کښې بعضې طالبان صاحب نصاب او مالداران وی او خلق ورته دزکوة رقم هم ورکوی اووائی چه عالم او متعلم که مالدار وی او که فقیر وی دهغوی دپاره زکوة اخستل جائز دی ددې متعلق وضاحت او کړی چه آیا دامسئله صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد شریف اشرف خیل وانا ډی آئی خان.. ۱۹۸۸ء|۶|۷

**الجواب:** بعضې فقهاء فرمائی چۀ کوم عالم او متعلم خپل عمر دتعلیم او تعلم دپاره وقف کړی نو دحاجتونو د زیاتوالی په وجه دزکوة مصرف دی لیکن فقهاؤ په دی باندې اعتماد نه دی ظاهر کړی.

فلیراجع الی ردالمحتار ۲: ۸۱ باب المصرف ﴿۲﴾. وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: ویجب الاحتراز من ان یلاحظ الوصی عند دفع الصرة للفقیر الهزل او الحیلة بل یجب ان یدفعها عازما علی تملیکها منه حقیقة لا تحیلا ملاحظا ان الفقیر اذا ابی عن هبتها الی الوصی کان له ذلک ولایجبر علی الهبة.

(رسائل ابن عابدین ۱:۲۲۵ منة الجلیل لبیان اسقاط ماعلی الذمة من کثیر وقلیل)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ان طالب العلم یجوز له اخذ الزکاة ولو غنیا اذا فرغ نفسه لافادة العلم واستفادته لعجزه عن الکسب والحاجة داعیة الی مالابد منه، قال ابن عابدین: وهذا الفرع مخالف لاطلاقهم الحرمة فی الغنی ولم یعتمده احد.

(الدر المختار مع ردالمحتار ۲:۶۵ باب المصرف)

## د مدرسو استاذان وغیره په (والعاملین علیها) کښې داخل نه دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه دزکوة مصرفونه الله تعالی انه (۸) ښودلي دی آیا دمدرسو استاذان په (والعاملین علیها) کښې داخل دی؟ یو عالم دین فرمائیلي دی چه دعربۍ دطالبانو استاذان په دیکښې داخل دی اوهغوی ته دزکوة دمد نه تنخواګانې ورکولې شی اوس زما دپاره داشکال باعث شو چه مولانا مفتی کفایت الله مرحوم دهلوی په تعلیم الاسلام جلد څلورم کښې فرمائی: څومره زکوة واجب چه.....دیو خدمت یایو کار په اجرت کښې زکوة ورکول جائز نه دی لیکن دزکوة عامل ته دهغوی تنخواه دمال زکوة نه ورکول جائز دی او طالب علمانو ته د زکوة مال ورکول جائزدی او مهتممینو ته په دې وجه چه هغوی ئې په طالبانو خرچه کړی نو جائز دی څۀ خبره پکښې نشته. اوس سوال دادی که مهتمم ئې په طالبانو خرچ کړی نو جائز دی لیکن که په استاذانو ئې خرچ کړی چه ددغې طالبانو استاذان دی نو جائز به وی یا نه؟ زمونږ په جمات کښې یو قاری دپاره چنده ناکافی کیږی نو بیا دزکوة دمد نه تنخواه پوره کولې شی بعضې کسانو اووئیل چه زکوة په تنخواه کښې ورکول جائز نه دی بهر حال مونږ ته تفصیلي مسئله اولیکۍ مهربانی به وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدابو الخیر امام مسجدمدنی نظام آباد گوجرانواله ۱۹۶۹ء|۴|۲۸

**الجواب:** (الف) علمائی کرام په (والعاملین علیها) کښې داخل نه دی په دیکښې صرف عامل اودهغوی تعاون کونکی داخل دی صرح به فی الهدایة ﴿۱﴾ او علماء نه کوشش کونکی دی اونه عاشر دی اونه حاشراونه کاتبان دی لهذا هغوی ته دعمل په حیثیت سره ورکول قابل اعتماد نه دی (ب) په اجرت کښې

﴿۱﴾ قال العلامة برهان الدین: والعامل یدفع الامام الیه ان عمل بقدر عمله فیعطیه ما یسعه واعوانه غیر مقدر بالثمن.

(هدایة ۱:۱۸۷ باب من یجوز دفع الصدقات الیه ومن لایجوز کتاب الزکوٰة)



زکوٰة ورکولو سره ذمه نه فارغیږی ځکه چه دیکښې للهیت نشته ﴿۱﴾ (ج) پس استاذانو ته په اجرت اوتنخواه کښې د زکوٰة مال ورکول غیرصحیح او ناکافی دی. ﴿۲﴾ (د) دضروت په وخت کښې حیلې کولوسره اجرت او تنخواه کښې زکوٰة ورکولو سره محتاط علماؤ جائز کړی دی خو چه باقاعده وی که دزکوة نه علاوه چنده نه کافی کیږی نو حیله دی اوکړی شی ﴿۳﴾ وهوالموفق

## د زکوٰة رقم د مدرسی په استاذانو او طالبانو خرچ کول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه دمدرسی بنیاد کیښودلې شو اوس حاصل شوی دزکوة رقم په استاذانو او طالبانو باندې خرچ کول څنګه دی؟ اوپه مدرسه کښې فقیر اوامیر طالب علمانوباندې د زکوٰة رقم څنګه خرچ کړې شی؟ دغه شان مثلاً داستاذ تنخواه دفنډ نه ورکولې شی نو آیا دا استاذ دطالبانو سره زکوة فنډنه خوراك کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عجب نور وانا کیمپ وزیرستان....۱۹۸۵ء|۷|۱۰

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: (قوله: بشرط قطع المنفعة عن المملک من کل وجه لله تعالیٰ) بیان لشرط آخر وهو النیة وهی شرط بالاجماع فی العبادات کلها المقاصد.

(بحرالرائق ۲:۲۰۲ کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ قال العلامة سید احمد الطحطاوی: (قوله لشخص مخصوص) هو ان یکون فقیراً، ونحوه من بقیة المصارف غیر هاشمی ولا مولاه بشرط قطع المنفعة عن المملک من کل وجه لله تعالیٰ. (الطحطاوی علی مراقی الفلاح ۷۱۴ کتاب الزکاة)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: الحیلة ان یتصدق علی الفقیر ثم یأمره بفعل هذه الاشیاء وهل له ان یخالف امره لم آره والظاهر نعم،قال ابن عابدین: (قوله ثم یأمره) ویکون له ثواب الزکاة وللفقیر ثواب هذه القرب.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۹ باب المصرف)

**الجواب:** دزکوة دفنډ نه بغیر دباقاعده حیلي نه داحاجات پوره کول مشکل دی ﴿۱﴾ دباقاعده حیلي نه دا مراد دی چه یو فقیر طالب علم داول نه ښه پوهه کړی چه زه تاته پنځه سوه روپۍ زکوة درکوم اوته به ئې مالك شی او مختار به ئې ځان له ئې اخلې او که دارالعلوم ته ئې واپس کوی او دا ورکونکې دی دا اراده او کړی که دا طالب علم دغه پیسې واخلی نو زه به څۀ اثر نه اخلم البته بل قسط به ورته نه ورکوم ﴿۲﴾ وهوالموفق

## صاحب نصاب طالب علم کله کله دزکوة مصرف جوړیدلې شي

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو طالب علم صاحب نصاب دی لیکن دهغه ضروریات هم ډیر دی هغه دخپلو خرچو دپاره دا نصاب محفوظ ساتلې دی ګڼې نو هغه ته خو دکتابونو اخستلو ضرورت دی آیا دا سړی دزکوة مال اخستلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ریاض احمد وزیرستانی..... ۱۹۹۰ء|۵|۹

---

﴿۱﴾ وفی الهندیه: مذهب علمائنا رحمهم الله تعالیٰ ان کل حیلة یحتال بها الرجل لا بطال حق الغیر او لادخال شبهة فیه اولتمویه باطل فهی مکروهة و کل حیلة یحتال بها الرجل لیتخلص بها عن حرام اولیتوصل بها الی حلال فهی حسنة والاصل فی جواز هذا النوع من الحیل قول الله تعالیٰ وخذ بیدک ضغثا فاضرب به ولا تحنث، وهذا تعلیم المخرج لا یوب علیه وعلی نبینا الصلاة والسلام عن یمینه التی حلف لیضربن امرأته مائة عود وعامة المشائخ علی ان حکمها لیس بمنسوخ وهو الصحیح من المذهب کذا فی الذخیرة.

(فتاویٰ عالمگیریه ۶: ۳۹۰ کتاب الحیل الفصل الاول)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ان الحیلة ان یتصدق علی الفقیر ثم یأمره بفعل هذه الاشیاء وهل له ان یخالف امره لم اره، قال ابن عابدین: (قوله ان الحیلة) ای فی الدفع الی هذه الاشیاء مع صحة الزکاة (قوله ثم یأمره) ویکون له ثواب الزکاة وللفقیر ثواب هذه القرب.

(الدرالمختار مع هامش ردالمحتار ۲: ۶۹ باب المصرف)



**الجواب:** چه کله مالدارکس دطلب علم یا جهاد اراده او کړی نو دهغه ضروریات ډیریږی او ډیر کرته دا مالدار سړی هم دزکوة مصرف جوړیږی (اشار الیه الکاسانی) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د طالب علم او احوج د پاره بل ښار ته زکوة لیږل

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه بل ښارکښې یو مستحق یا اداری ته زکوة لیږل جائز دی یانه؟ حالانکه حدیث کښې (الحق للقریب ثم للبعید)؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالودود قصه خوانی پشاور..... ۱۹۷۴ء|۸|۲۷

**الجواب:** دطالب علم اوزیات حاجتمند دپاره بل ښارته دزکوة لیږل جائزدی ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: واما استثناء الغازی فمحمول علی حال حدوث الحاجة وسماه غنیا علی اعتبار ماکان قبل حدوث الحاجة، وهو ان یکون غنیا ثم تحدث له الحاجة بان کان له دار یسکنها ومتاع یمتهنه وثیاب یلبسها وله مع ذلک فضل مائتی درهم حتی لا تحل له الصدقة ثم یعزم علی الخروج فی سفر غزو فیحتاج الی آلات سفره وسلاح یستعمله فی غزوه ومرکب یغزو علیه وخادم یستعین بخدمته علی ما لم یکن محتاجا الیه فی حال اقامته فیجوز ان یعطی من الصدقات ما یستعین به فی حاجته التی تحدث له فی سفره.

(بدائع الصنائع ۲: ۱۵۵ فصل المؤلفة قلوبهم کتاب الزکاة) قال الدکتور وهبة الزحیلی: الصنف السابع فی سبیل الله وهم الغزاة المجاهدون الذین لاحق لهم فی دیوان الجند لان السبیل عند الاطلاق هو الغزو...... فیدفع الیهم لا نجاز مهمتهم وعونهم ولوکانوا عند الجمهور اغنیاء لانه مصلحة عامة، واما من له شیئ مقدر فی الدیوان فلا یعطی لان من له رزق راتب یکفیه فهو مستغن به. (الفقه الاسلامی وادلته ۳: ۱۹۵۷ مبحث مصارف الزکاة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وکره نقلها الا الی قرابة بل فی الظهیریة لا تقبل صدقة الرجل وقرابته محاویج حتی یبدأ بهم فیسد حاجتهم او احوج او اصلح او اورع او انفع للمسلمین.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۷۵ باب المصرف)

او ،،الحق للقریب..الخ حدیث نه دی البته معنی ئی صحیح ده ﴿۱﴾ وهو الموفق

## مالدار معلم او متعلم ته زکوٰة ورکول او د علامه شامی قول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو معلم مالداره دی نو دعلامه شامی د جزئې په حوالی سره چه که معلم او مدرس مالدار هم وی هغوی دپاره زکوة اخستل جائز دی یا هغه ته دکتابونو ضرورت وی نو خلق هغوی لره کتابونه هم دزکوة په نیت سره واخلې او ورکوی اوس دا مسئله صحیح ده یانه؟ او دده دپاره زکوٰة اخستل او هغه ته ورکول صحیح دی یا نه؟بینوا توجروا

المستفتی: گل فراز...... یکم فروری ۱۹۷۵ء

**الجواب:** مالدار معلم او متعلم ته زکوة ورکول صحیح نه دی.

کما صرحوا به واما مانسب الی الواقعات فروی الشامی عن الطحطاوی انه لم یعتمد علیه احد وما قیل انهم من العاملین فممنوع لان الامام لم ینصبهم﴿۲﴾ ولان المصرف هو العامل علیها لا مطلق العامل﴿۳﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ وفی الهندیة: والافضل فی الزکاة والفطر والنذور الصرف اولا الی الاخوة والاخوات ثم الی اولادهم ثم الی الاعمام والعمات ثم الی اولادهم ثم الی الاخوال والخالات ثم الی اولادهم ثم الی ذوی الارحام ثم الی الجیران ثم الی اهل حرفته ثم الی اهل مصره او قریته، کذافی السراج الوهاج. (فتاویٰ عالمگیریه ۱ : ۱۹۰ باب المصارف)

﴿۲﴾ قال الحصکفی: العاشر هو حر مسلم غیر هاشمی قادر علی الحمایة نصبه الامام علی الطریق. (الدرالمختار ۲ : ۴۲ باب العاشر)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: وهذا الفرع مخالف لا طلاقهم الحرمة فی الغنی ولم یعتمده احد، قلت وهو کذلک والاوجه تقییده بالفقیر...... ثم قال الاتفاق علی ان الاصناف کلهم [illegible] العامل یعطون بشرط الفقر. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲ : ۶۵ باب المصرف)



## د زکوٰة په رقم سره دطالبانو ضروریات پوره کول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ دحفظ او ناظرې یوه دینی مدرسه جوړه کړې ده دمدرسې په چنده کښې مو دوه فنډونه قائم کړی دی (۱) دعطیاتو (۲) د زکوة او عطیاتونه مونږ قاری ته تنخواه ورکوو اوصدقاتو واجباؤ زکوة نه دطالبانو اخراجات پوره کوو مثلاً جامې چپړې وغیره ځکه چه دبعضې طالبانو مور پلار ډیرغریبانان وی که مونږ غریب نانو طالبانو ته جامې وغیره دزکوة نه ورکوو نو آیا د مالدارانو بچو ته ورکولې شو چه یو شان شی یعنی مساوات قائم شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمداسلم پی اوایف واه کینټ...۱۷ ربیع الاول ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دعطیاتو مصرف وسیع دی البته نقد یا دکپړو په شکل کښې زکوة غریب طالب علم ته ورکولې شی ﴿۱﴾ چه مسکین او بالغ وی یا دمسکین ځوئ اونابالغه وی ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د کالج مسکین طالب علم دزکوة نه وظیفه اخستلې شی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زه یو کالجی سټوډنټ (متعلم) یم دحکومت دطرفنه چه طالبانو ته کوم سکالر شپ مقرر شوی وی هغه دعشر او زکوة وغیره نه ورکولې شی زه صاحب نصاب نه یم صرف دیو کنال زمکې مالك یم زما دپاره ددې وظیفې اخستل څنګه وی؟ که زه دا وظیفه نه اخلم نو دفترکلرك وغیره ئی پخپله را اوباسی او ځان له ئی اخلې

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: قال فی التاترخانیة عن المحیط اذا کان یعول یتیما ویجعل مایکسوه ویطعمه من زکاة ماله ففی الکسوة لاشک فی الجواز لوجود الرکن وهو التملیک. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲ : ۳ کتاب الزکوٰة)

﴿۲﴾ ولا یجوز دفعها الی ولد الغنی الصغیر ولو کان کبیراً فقیرا جاز الخ. (فتاویٰ عالمگیریه ۱ : ۱۸۹ الباب السابع فی المصارف)

اوس که زه دا چرته غریب ته ورکړم یا په دې سره خپل فیس ادا کړم نو داځنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ محمد عمران ډیره اسماعیل خان.... ۷/۲۱/۱۹۷۴ء

**الجواب:** ته ظاهری طورسره مسکین ئې. ته د مد زکوة نه وظیفه اخستلې شې او په خپلو حاجتونو کښې ئې خرچ کولې شې(۱) وهو الموفق

## ساداتو ته د زکوة ورکولو حکم

**سوال:** ساداتو ته د زکوة ورکولو څۀ حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا رحیم الله باچا اضاخیل نوشهره.... ۱۲۳ ذی قعده ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** ساداتو ته هدیه او تحفی ورکولې شي او عشر نه البته که په موجوده زمانه کښې زکوة او عشر ورکړیشي نو اخستل او ورکول قابل اعتراض نه دی(۲) وهو الموفق

---

(۱) وفي الهندية: ويجوز دفعها الى من يملك اقل من النصاب.
(فتاوىٰ عالمگیریه ۱:۱۸۹ الباب السابع فی المصارف)

(۲) د ظاهر روایت مطابق بنو هاشم او ساداتو ته زکوة یا نور صدقات واجبه ورکول جائز نه دی البته په ظاهر الروایت کښې د جواز قول هم منقول دی خمس الخمس چه بنو هاشم ته به د زکوة او صدقات واجبه په عوض کښې ملاویده او د پېغمبر علیه السلام او خلفاء راشدین نه پس بند شو او په تحفو کښې ورته هم خلق خیال نه کوی نو امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله د جواز قول او فرمائیلو چه نادر الروایت دی.
والفتوىٰ بنادر الرواية عند الضرورة لم يكن بعيداً عن الاصول لان اخذ الزكاة اهون من ذل السوال،
او ددې ضرورت او حاجت په وجه امام الطحاوی او نورو احنافو فقهاؤ دی نادر الروایت ته ترجیح ورکړې ده او بعضې شوافعو حنابله او مالکیه فقهاؤ هم د حالاتو او ضرورت په وجه د جواز فتوی ورکړې زمونږ شیخ دامت برکاتهم په (منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۳/۱۲۹) کښې فرمائي:
علم ان ما مر من حرمة الصدقة الواجبة على بن هاشم هذا ظاهر الرواية......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## سادات او بنو هاشم ته د زکوة ورکولو شرعی حیثیت

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړی دی دهاشمی خاندان سره تعلق لری او په جمات کښې اتیا روپۍ میاشت باندی دامامت فرائض سرته رسوی دجائیداد خاوند هم دی آیا مذکوره سید هاشمی امام ته زکوة او فطرانه ورکول جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: راجه سلطان محمد اینډ کمپنی ګندم راولپنډی ۱۹۶۹ء/۱۰/۲۲

---

(بقیه حاشیه) وروی ابو عصمة عن ابی حنیفة انه یجوز فی هذا الزمان وان کان ممتنعا فی ذلک الزمان لان عوضها وهو خمس الخمس لم یصل الیهم لاهمال الناس امر الغنائم وایصالها مستحقیها، واذا لم یصل الیهم العوض عادوا الی المعوض کما فی البحر، قالوا والمعمول به هو ظاهر الروایة ورد ابن الهمام علی روایة ابی عصمة بما ملخصه ان حدیث عوضکم منها خمس الخمس لم یثبت وان سلمنا علی التنزل حمل الکلام علی ان ذلک حکمة لا علة فان العلة هی کون الزکوة من اوساخ الناس، وان سلمنا علی التنزل کونه علة ایضا لا یثبت المطلوب فانها علة لاصل التشریع لالبقاء ه کما فی الرمل، فزوال العوض لا یستلزم عود المعوض انتهیٰ قلت لو اضطروا الی السوال لکان ذل اخذ الزکوة اهون من ذل السوال علی ان الاوساخ لیست بانجاس فلو افتی المفتی بنادر الروایة عند الضرورة لم یکن بعیداً عن الاصول.

علامه انورشاه کشمیری رحمه الله په (فیض الباری شرح صحیح البخاری ۳/۵۲) کښې فرمائي:

ونقل الطحاوی عن امالی ابی یوسف انه جاز دفع الزکوة الی آل النبی صلی الله علیه وسلم عند فقد ان الخمس فان فی الخمس حقهم فاذا لم یوجد صح صرفها الیهم وفی البحر عن محمد بن شجاع الثلجی عن ابی حنیفة ایضا جوازه وفی عقد الجید ان الرازی ایضا افتی بجوازه قلت واخذ الزکوٰة عندی اسهل من السوال فافتی به ایضا.

علامه وهبة الزحیلی (الفقه الاسلامی وادلته ۳:۱۹۲۸) کی فرمائی: هذا وقد نقل عن ابی حنیفة وعن المالکیة وبعض الشافعیة جواز اعطاء الهاشمین من الزکوة......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

**الجواب:** ددی جائیداد او تنخواه باوجود که داسړی صاحب دنصاب نه وی هغه ته زکوٰة ورکول او دهغه اخستل جائز نه دی دظاهر الروایت دی او په بعضې غیر ظاهر الروایت کښې دجواز فتوی هم منقول ده لهذا احتیاط په نه ورکولو او نه اخستلو کښې دی.

لما فی الدرالمختار: ولا الی بن هاشم ثم ظاهر المذهب اطلاق المنع، وفی ردالمحتار ۲: ۹۱ وروی ابوعصمة عن الامام انه یجوز الدفع الی بنی هاشم فی زمانه لان عوضها وهو خمس الخمس لم یصل الیهم لاهمال الناس امر الغنائم وایصالها الی مستحقیها واذا لم یصل الیهم العوض عادوا الی المعوض کذا فی البحر﴿۱﴾ انتهیٰ ما فی ردالمحتار، قلت والحرمة معللة بوجهین الاول ما مر والثانی کونها اوساخ الناس ومزیلها کما فی الحدیث الصحیح ﴿۲﴾ وهو باق کما کان فالراجح هو المنع والضرورة تبیح المحظورات ﴿۳﴾. فافهم. وهوالموفق

(بقیه حاشیه) لانهم حرموا من بیت المال سهم ذوی القربیٰ منعاً لتضییعهم ولحاجتهم......واعطاء هم کما قال الدسوقی المالکی حینئذ افضل من اعطاء غیرهم.

امام طحاوی فرمائی:
وقد اختلف عن ابی حنیفة فی ذلک فروی عنه انه قال لا بأس بالصدقات کلها علی بنی هاشم. (طحاوی ۱: ۳۵۲ کتاب الزکاة)

لیکن ددې صفحې په آخر کښې دوی داهم فرمائیلی دی:
قال ابو جعفر فهذه الآثار کلها قد جاء ت بتحریم الصدقة علی بنی هاشم ولا نعلم شیئاً نسخها ولا عارضها.

او علامه سید احمد الحموی فرمائی:
وفی شرح الاثار عن ابی حنیفة: ان الصدقات کلها جائزة علی بنی هاشم والحرمة کانت فی عهد رسول الله ﷺ لوصول خمس الخمس الیهم فلما سقط ذلک بموته ﷺ حلت لهم الصدقة قال الطحاوی رحمه الله وبالجواز نأخذ. (حموی علی الاشباه والنظائر ۲: ۵۳ کتاب الزکاة)

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۷۲ مطلب فی جهاز المرأة هل تصیر به غنیة باب المصرف)
﴿۲﴾ عن عبد المطلب بن ربیعة قال قال رسول الله ﷺ ان هذه الصدقات انما هی اوساخ الناس وانها لا تحل لمحمد ولا لآل محمد رواه مسلم.
(مشکواة المصابیح ۱: ۱۶۷ باب من لا تحل له الصدقة الفصل الاول)
﴿۳﴾ قال العلامة الاتاسی: الضرورات تبیح المحظورات......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## ساداتو ته د زکوٰة ورکولو او اخستلو حکم

**سوال:** ساداتو ته زکوٰة ورکول څنګه دی (۲) د ساداتو زکوٰة ساداتو دپاره څنګه دی (۳) دساداتو فدیه. اسقاط. صدقة الفطر او دقربانو دڅرمنو پیسې اخستل څنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: فیض الله بند روډ کوئټه... ۱۳ شوال ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** محترم مولوی فیض الله صاحب! اتاه الله فی الدارین حسنة. السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته. اما بعد! واضحه دی وی د ظاهر الروایت په بنا ساداتو ته زکوٰة ورکول ممنوع دی البته په دې زمانه کښې چه نه هغوی ته تحفې ورکولې کیږی او نه ورته خمس الخمس ورکولې کیږی نو ددې په ځای چه هغوې دسوال په ذلت کښې مبتلا کړیشی دا سان دی چه دابو عصمة په روایت عمل او کړیشی.

کما فی ردالمحتار ۱: ۹۱ وروی ابوعصمة عن الامام انه یجوز الدفع الی بنی هاشم فی زمانه الخ﴿۱﴾ قلت وکونها من (مزیل) اوساخ الناس یقتضی الخباثة کالماء المستعمل دون الحرمة فافهم،

نو چه کله دزکوٰة خرچ کول په هغوی جائز شو نو دنورو واجباتو خرچ په طریقه اولی جائز دی وهوالموفق

## د بنوهاشم نه علاوه نورو قریشیانو باندی زکوٰة لګولو کښې اختلاف نشته

**سوال:** علمایې دین دې مسئلې باره څۀ فرمائی چه قریشی قوم باندې زکوٰة خرچ کول جائز دی یا نه؟ او دجواز دپاره بعضې خلق دادلیل پیش کوی چه قریش او نضر بن کنانه اولاد دی چه دنبی ﷺ نه ډیر مخکښې وو لهذا دا عام دی او زکوٰة صرف دبنی هاشم په اولاد ممنوع دی چه روستو جوړشوی دی لهذا هر

(بقیه حاشیه) هذه قاعدة اصولیة مأخوذة من النص وهو قوله تعالیٰ: الا ما اضطررتم الیه، والاضطرار الحاجة الشدیدة والمحظور المنهی عن فعله یعنی ان الممنوع شرعا یباح عند الضرورة. (شرح المجلة ۱: ۵۵ المادة: ۲۱)
﴿۱﴾ (ردالمحتار ۲: ۷۲ مطلب فی جهاز المرأة هل تصیر به غنیة باب المصرف)

کافی نه دی البته صدقة الفطر، نذر خیرات وغیره په کافرانو هم خرچ کیدیشی (هدایه ﴿۱﴾ شرح التنویر ﴿۲﴾) ایرانی شیعه ګان اکثری طور سره دضروریات دین نه منکر دی په دې بنا هغوی د اسلام نه خارج دی ﴿۳﴾ پس د دی قول په بنا ته دزکوة مال شیعه ګانو یا دهغوی امام ته نشی ورکولې وهو الموفق

## ظالم بادشاه ته زکوة ورکولو سره د ذمې فارغیدل او ددې مالونو په ټهیکه اخستلو حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په کوم ملك کښې ظالم بادشاه دخلقو نه دځناورو زکوة اودپیداوار عشر اخلې اوپه شرعی مصرفونو کښې ئی نه خرچ کوی او دغه شان بعضې سرمایه داران زکوة عشر د ظالم بادشاه نه په ټهیکه اخلی او خپل ځان د پاره ئی جمع کوی او بادشاه ته هغه محصوص رقم ورکوی په کوم چه ورسره خبره شوی وی نو دې صورتونو کښې دمالك ذمه فارغیږی یانه؟ افتونا بالتفصیل مع حوالة الکتب.. بینوا توجروا

المستفتی: مولانا (شیخ الحدیث) رحیم الله

محکمه قضا ریاست سوات ۱۹٦۹ء | ۱۲ | ۱۰

---

﴿۱﴾ قال المرغینانی: ولا یجوز ان یدفع الزکاة الی ذمی لقوله علیه الصلاة والسلام لمعاذ رضی الله عنه خذها من اغنیائهم وردها فی فقرائهم قال ویدفع ماسوی ذلک من الصدقة. (هدایة علی صدر فتح القدیر ۲:۲۰۷ باب من یجوز دفع الصدقة الیه ومن لا یجوز)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ولا تدفع الی ذمی لحدیث معاذ وجاز دفع غیرها وغیر العشر والخراج الیه ای الذمی ولو واجبا کنذر وکفارة وفطرة خلافاً للثانی. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۷۳ باب المصرف)

﴿۳﴾ قال ابن عابدین: نعم لا شک فی تکفیر من قذف السیدة عائشة رضی الله عنها او انکر صحبة الصدیق او اعتقد الالوهیة فی علی او ان جبریل غلط فی الوحی او نحو ذلک من الکفر الصریح المخالف للقرآن. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۳۲۱ مطلب فی حکم سب الشیخین)



**الجواب:** د رنړا اورڅ پشان دا خبره معلومه ده چه په ریاستونو کښې زکوة او عشر مصارفو ته نه رسولې کیږی بلکه د ریاست د ملازمینو په تنخواه ګانو کښې خرچ کیږی لهذا دمالك ذمه بالکل نه فارغه کیږی.

الا فی صورة واحدة وهی ما اذا نوی الصدقة علیهم عند الدفع، (فی الدرالمختار علی هامش ردالمختار ۲:۲۵) اخذ البغاة والسلاطین الجائرة زکوة الاموال الظاهرة کالسوائم والعشر والخراج لا اعادة علی اربابها ان صرف الماخوذ فی محله الآتی ذکره والایصرف فیه فعلیهم فیما بینهم وبین الله اعادة غیر الخراج انتهی﴿۱﴾.

او د بعضې فقهاؤ په نزد چه کله په دوی باندې د خیرات نیت او کړی نو ذمه فارغیږی او دبعضې علماؤ په نزد مطلقاً فارغیږی:

فی ردالمحتار ۲:۲۵ قال فی التجنیس والولوالجیة السلطان الجائر اذا اخذ الصدقات قیل ان نوی بادائها الیه الصدقة علیه لا یومر بالاداء ثانیا لانه فقیر حقیقة...... واذا لم ینو منهم من قال یؤمر بالاداء ثانیا وقال ابو جعفر لا یکون له سلطان له ولایة الاخذ فیسقط عن ارباب الصدقة فان لم یضعها موضعها لا یبطل اخذه وبه یفتی وهذا فی صدقات الاموال الظاهرة﴿۲﴾.

(۲) دا ټهیکه حرامه ده ځکه په دا په حقیقت کښې (شراء الصدقات) او (مبادلة المال بالصدقات) ده او غالباً داسی ده چه ټهیکدار روستو د ټهیکې رقم حکومت ته ورکوی نو په دې کښې دعدم وصول الی المصارف نه علاوه بیع الکالی بالکالی موجود ده چه ناجائز ده... وهو الموفق

## په عُشر او زکوٰة کښې ټهیکداری نظام او مشاهرات په ملازمینو کښې د ورکولو حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی (۱) په ریاست سوات کښې

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲٦ باب زکاة الغنم)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲٦ باب زکاة الغنم)

پولیس په تنخواګانو کښې حکومت عشر او زکوة اخلی او دفوجیانو او پولیس په تنخواګانو کښې خرچ کوی یا ریاست ته دا ولایت حاصل دی او که نه دا ظلم دی؟ (۲) دعشر اوزکوة د وصولئ طریقه داده چه یوسړی دحکومت ټهیکداروی. نفع اونقصان دهغه په ذمه باندې وی حکومت صرف مقرر کړی شوی رقم ټهیکدارنه اخلی آیا په دې سره زمه فارغیدلې شی یانه؟ رد المحتار ۲/۴۲) په دی مسئله کښې اوګورئ (۳) دی باره کښې حکومت دعلماؤ نه فتوی طلب کړی چه حکومت شرعاً ددی حق لری یانه؟ او دفتوی صحیح کیدلو نه پس حکومت په قوم باندې زور کولې شی یانه؟ که زور (جبر) ثابت نه وی نو حکومت ته دقوم په د ذمې په فراغت باندې فتوی ورکول جائز دی یانه؟

بینوا توجروا

المستفتی: مولاناعبدالحلیم صاحب موضع پټن کوهستان سوات ۱۹۶۹ء|۱۲|۲۰

**الجواب:** (۱) حقیقت دادې چه په ریاستونو کښې عشر او زکوة خپل شرعی مصرفونو ته نه رسئ بلکه په تنخواګانو وغیره کښې خرچ کولې شی لهذا په مالکانو باندې د احتیاط په باب کښې ضروری دی چه عشر او زکوة دوباره ادا کړی اودحکومت دپاره ضروری دی چه یا دې عشر او زکوة اخلی نه او یا دی په مصارف شرعیه کښې خرچ کوی ﴿۱﴾ واضحه دی وی چه په عشر او زکوة کښې دمالك فعل او ادا ضروری ده لهذا بغیر دمالکانو درضا او اجازت نه حکومت ته داخستلو حق نشته (۲) ټهیکدار په حقیقت کښې اجاره دارنه دې بلکه مشتری دی یعنی داعشر او زکوة دحکومت نه اخلی او غالباً د وصولئ نه پس حکومت ته دټهیکې پیسې رسوی لهذا ټهیکدار عاشرنه دی.

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: زکاة السوائم والعشور وما اخذه العاشر من تجار المسلمین الذین یمرون علیه ومحله ما ذکرنا من المصارف...... والواجب علی الائمة ان یوصلوا الحقوق الی اربابها ولا یحبسونها عنهم...... فان قصر الائمة فی ذلک فوباله علیهم.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۹۰، ۱۹۱ فصل ما یوضع فی بیت المال)



بلکه مشتری دی نوده ته زکوة وغیره ورکولو سره ذمه نه فارغه کیږی او دا بیع هم فاسد ده ځکه چه دجهالت نه علاوه مبیعه او ثمن دواړه مؤجل دی. صرح بهذه المسائل ردالمحتار والهدایة. وهوالموفق

## د سیلاب زپلو د پاره چنده کښې زکوة ورکول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه دموجوده حکومت افسران دسیلاب زپلو دپاره چنده جمع کوی آیا په دې کښې مونږ خلق دزکوة رقم ورکولې شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی نظیر بادشاه... ۱۹۷۷ء|۹|۱

**الجواب:** دصحت زکوة دپاره تملیك شرط دی ﴿۱﴾ لهذا که تاسو ته په ظن غالب یا جزوی طور سره معلومه وی چه چنده حاصلونکی دا رقم باقاعده مصارفو پورې تملیکاً رسوی. نوتاسو په دې چنده کښې د زکوة رقم ورکولې شئ، او که دا اُمید نه وی نو زکوة او واجب صدقاتو نه علاوه په نورو مالونو سره امداد اوکړئ وهوالموفق

## د زکوة مال به په دفاعی آلاتو او وسلو باندې نه شی خرچ کولې

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څهٔ فرمائی چه داستاذانو دټریننګ پرچه کښې زمونږ نه یو سوال او کړې شو چه دزکوة مصارف اولیکئ اودا هم اووایئ چه آیا په موصول شوی زکوة سره دفاعی آلات او وسلې اخستلې کیدیشې؟ کافی حضراتو په (انماصدقات) کښې دفی سبیل الله لفظ سره دا جواز دلیل لیکلې دې لیکن مونږ څو ملګرو عدم جواز لیکلې دی دلائل مو ورسره لیکلې دی لیکن او دنورو دلیلو ضرورت دې لهذا ددې مسئلې وضاحت سره دحوالو او لیکئ او ارسال ئې کړئ مهربانې به وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی اشرف الدین فاضل حقانیه اکوړه خټك... ۱۳۹۰ھ

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ویشترط ان یکون الصرف تملیکاً لا اباحة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۸ باب المصرف)

**الجواب:** په زکوة کښې قبض او تمليك شرط دی لهذا په دې مال سره دفاعی آلات نشي اخستلې کيدې هم داد احنافو مذهب دې او من حيث الدلائل مضبوط دی.

قال صاحب الهداية وفى سبيل الله منقطع الغزاة عند ابى يوسف لانه المتفاهم عند الاطلاق وعند محمد منقطع الحاج لماروى ان رجلا جعل بعيراً له فى سبيل الله فامره رسول الله ﷺ ان يحمل عليه الحاج ﴿١﴾ (رواه ابو داؤد والنسائى وغيرهما بهذا المعنى) ﴿٢﴾ ولايبنى بها مسجد ولا يكفن بها ميت لانعدام التمليک وهو الركن ﴿٣﴾. وفى الاموال لابى عبيد ٦٠٨ عن ابراهيم قال لا يعطى من الزكوٰة دين ميت ولا فى كفنه وفيه ايضاً ص ٦١٠ فاما قضاء الدين عن الميت والعطية فى كفنه وبنيان المساجد واحتفار الانهار وما اشبه ذلک من انواع البرفان سفيان واهل العراق وغيرهم من العلماء مجمعون على ان ذلک لا يجزى من الزكوٰة لانه ليس من الاصناف الثمانية انتهى.

وقال ابن حزم فى المحلى ٥:٢٤٧ قلنا نعم وكل فعل خير فهو من سبيل الله تعالىٰ الا انه لا خلاف فى انه تعالىٰ لم يرد كل وجهه من وجوه البر فى قسمة الصدقات فلم يجز ان توضع الا حيث بين النص وهو الذى ذكرنا (يعنى الجهاد والخمسة والحج) فافهم. وفى العينى شرح الهداية ١:١٢٦٦ وكذا لا تبنى بها القناطر والسقايات ولايحفر بها الآبار ولا تصرف فى اصلاح الطرق وسد الثغور والحج والجهاد مما لا يملک فيه فان قلت روى عن انس والحسن ما اعطيت من الجسور

﴿١﴾ (هداية ١:١٨٧ باب من يجوز دفع الصدقات اليه ومن لا يجوز كتاب الزكوٰة)

﴿٢﴾ (نصب الراية لاحاديث الهداية ٢:٣٩٥،٣٩٦ باب من يجوز دفع الصدقات)

﴿٣﴾ (هداية ١:١٨٨ باب من يجوز دفع الصدقات اليه ومن لا يجوز كتاب الزكوٰة)



والطريق صدقة ماضية، قلت هذا وهم عليهما وليس مرادهما عمارة الجسور والطريق بلا معناه اعطاء الزكوٰة لمن يبنى الجسور والطريق الخ، وما فى القرطبى ٨:١٨٦ وقال محمد بن عبد الحكيم ويعطى من الصدقة فى الكراع والسلاح وما يحتاج اليه من الآلات لحرب وكف العدو عن الحوزة فليس المراد به وقف هذه الاشياء لعدم مساعدة اللفظ لغة وعرفا بل المراد اعطاء الصدقة للغازى يشترى بها الآلات اوالمراد شراء هذه الآلات بالصدقة ثم صرفها الى الغزاة كما لا يخفى على من راجع الى اللفظ وتعامل هذا القرن. وكذا يحمل ما رواه البيضاوى وغيره على ماذكرنا، وكذا فى البدائع ٢:٤٥ واما قوله تعالىٰ وفى سبيل الله عبارة عن جميع القرب فيدخل فيه كل من سعىٰ فى طاعة الله وسبيل الخيرات اذا كان محتاجاً ظاهر فى التمليک ﴿١﴾ وقد صرح به قبل ٢:٣٩ واما ركن الزكوٰة فركن الزكوٰة هو اخراج جزء من النصاب الى الله تعالىٰ وتسليم ذلک اليه يقطع المالک يده عنه بتمليكه من الفقير وتسليمه اليه او الى يد من هو نائب عنه وهو المصدق الى ان قال بعد اسطر وعلى هذا يخرج صرف الزكوٰة الى وجوه البر من بناء المساجد والرباطات والسقايات واصلاح القناطير وتكفين الموتى ودفنهم انه لا يجوز لانه لم يوجد التمليک اصلا ﴿٢﴾ انتهى باختصار يسير. وهو الموفق

## د زکوة په رقم سره فری هسپتال چلول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دزکوة په رقم سره فری

﴿١﴾ (بدائع الصنائع ٢:١٥٤ فصل المؤلفة قلوبهم)

﴿٢﴾ (بدائع الصنائع ٢:١٤٢ فصل واما ركن الزكاة)

هسپتال چلول یا په هغې کښې زکوٰة جمع کول جائز دي یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم...... ۱۹۷۸ء|۸|۲۳

**الجواب:** په دي هسپتالونو کښې عشر او زکوٰة ورکول اضاعت د عُشراو زکوٰة دي ځکه چه دیکښې دعشر اوزکوٰة شرطونه نه پوره کیږی ﴿۱﴾ وهوالموفق

## زکوٰة فنډ او د تعلیم فنډ په تعمیر مسجد کښې لګول

**سوال:** علمائی دین دي مسئلي باره کښې څه فرمائی چه یوه درسګاه په جامع مسجد کښې قائم کړی شوه په تعلیمی فنډ کښې د زکوٰة مال جمع کړې شو. کم نه کم لس زره روپۍ جمع شوی کار شروع شو مګر طالبانو باندې صرف ۲۵ روپۍ خرچ شوی او دمدرسی نظام درهم برهم کړی شو او زکوٰة فنډ باندې دجمات

---

(۱) په قران مجید کښې مخصوص مصارف په صراحت سره موجود دي اوزکوٰة صرف په دغه مخصوص مصارفو باندې خرچ کیدې شی اود تجربې نه ثابت دی چه موجوده خیراتی ادارو او هسپتالونو کښې ددی مصارفو څه رعایت نه کیږی بلکه دنورو عطیاتو پشان زکوٰة هم خرچ کولې شی ځکه چه داخلق نه د احکام زکوٰة نه واقف وی اونه ئی مصارف پیژنی

**قال الدکتور وهبة الزحیلی: ولا یبعث الامام الاساعیا حراً عدلاً ثقة لان هذا ولایة وامانة والعبد والفاسق لیسا من اهل الامانة والولایة ولا یبعث الا فقیهاً لانه یحتاج الی معرفة ما یؤخذ وما لایؤخذ ویحتاج الی الاجتهاد فیما یعرض له من مسائل الزکاة واحکامها. (الفقه الاسلامی وادلته ۳:۱۹۷۲)**

حال داچه په زکوٰة کښې داضروری ده چه مصرف ته دی تملیکاً ورکړیشی دهسپتال په بلډنګ یا دعملې په تنخوا ګانو او بجلۍ بل وغیره کښې نشی خرچ کیدلې

**وفی الهندیة ولا یجوز ان یبنی بالزکاة المسجد وکذا القناطیر والسقایات واصلاح الطرقات وکری الانهار والحج والجهاد وکل مالاتملیک فیه. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۹۷)**

او که دهسپتال عمله دزکوٰة داحکامو پوره رعایت کوی اود زکوٰة په فنډ باقاعده دوائی اخلی او فقیرانو ته ئې تملیکا ورکوی نودې کښې هیڅ خبره نشته. وهذا نادر جداً........ (ازمرتب)



توسیع شروع شوه اوپه تعلیمی فنډ سره هم آیا دادواړه فنډونه په جمات کښې لګول صحیح دی

المستفتي: خطیب جامع مسجد مین بازار جند پنډی ګهیپ

**الجواب:** واضحه دی وی چه د زکوٰة په مال سره دجمات جوړول صحیح نه دی. **کما فی البدائع ۲:۳۹ وعلیٰ هذا یخرج صرف الزکوٰة الی وجوه البر من بناء المساجد والرباطات والسقایات واصلاح القناطر وتکفین الموتی ودفنهم انه لا یجوز لانه لم یوجد التملیک ﴿۱﴾**

اوپه تعلمی فنډ سره دچندې ورکونکو په اجازت سره دجمات تعمیرصحیح دی. **لبقاء ملکهم الآن کما کان فلا بد من اذنهم صریحاً او دلالةً ﴿۲﴾ فافهم. وهوالموفق**

## د هائی سکول جوړولو د پاره په قومی چنده کښې عشر او زکوٰة ورکول صحیح نه دی

**سوال:** علمائی دین مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ دکلي مډل سکول ته دهائی درجه ورکړې شوی ده دسکول دتعمیر دپاره خلق خپل تعاون سره جوړولو دپاره چنده جمع کوی نو آیا په دي قومی چنده کښې دزکوٰة عشر صدقه او خیرات رقم ورکول جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبدالحنان دکاندار

---

﴿۱﴾ (بدائع الصنائع ۲:۱۴۲ فصل واما رکن الزکاة کتاب الزکاة)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: الوقف فی الشرع عند ابی حنیفة حبس العین علی ملک الواقف والتصدق بالمنفعة علی الفقراء ...... فلایکون لازما وله ان یرجع ویبیع ولا یلزم الا بطریقین احدهما قضاء القاضی بلزومه والثانی ان یخرج مخرج الوصیة...... وقال محمد لا یزول حتی یجعل للوقف ولیا ویسلم الیه وعلیه الفتویٰ کذا فی السراجیة وبقول محمد یفتی کذا فی الخلاصة، وفی الصفحة ۳۶۲ واما وقف ما لاینتفع به الابا لاتلاف کالذهب والفضة والماکول والمشروب فغیر جائز فی قول عامة الفقهاء والمراد بالذهب والفضة الدراهم والدنانیر ومالیس بحلی کذا فی فتح القدیر الخ. (فتاویٰ عالمگیریه ۲:۳۵۰،۳۶۲ کتاب الوقف)

**الجواب:** محترم المقام دام عزکم السلام علیکم نه پس داخبره دی واضحه وی چه عشر زکوة اوفطرانه په دی مدکښې مه خرج کوئ ﴿۱﴾ اوخیرات وغیره په کښې خرج کولې شی په هغې کښې تملیك شرط نه دی (بخلاف الاول) وهوالموفق

## د زکوة په رقم سره ټرسټ جوړول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه آیا دزکوة په رقم سره ټرسټ قائمولې شی؟ او ددې ټرسټ حیثیت او نوعیت څه پکار دی؟ او آیا د ټرسټ په اخراجاتو کښې دزکوة رقم خرج کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ارشد صدیقی راولپنډی.... ۱۹۸۶ء|۷|۱

**الجواب:** بغیر دعلم او تقوی نه دا ټرسټ او اداری قائمول داضاعت زکوة مترادف دی دعلم دین او تقوی نه بغیر نه حقیقةً تملیك کیدلې شی اونه حیله﴿۲﴾ ، وهو الموفق

## زکوة فنډ لره د بینک په سودی یا غیرسودی کهاته کښې دکینبودلو حکم

**سوال:** علمائی دین دی مسئلې باره څه فرمائی چه دیوې کمیټی سره دزکوة رقم جمع دی چه کالوسر په مصارفو کښې دیو طریقه کار مطابق خرج کیږی اوس ظاهره ده چه دا رقم به په بینك کښې پروت وی اودهغې څلور شکلونه دی (۱) سیونګ اکاونټ چه په هغې پسې سود هم ورکولې شی (۲) سیونګ اکاونټ

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولا یجوز ان ینی بالزکاة المسجد وکذا القناطر والسقایات واصلاح الطرقات وکری الانهار والحج والجهاد وکل مالا تملیک فیه.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۸۸ باب المصارف)

﴿۲﴾ ځکه چه جاهلان خلق نه د زکوة مصرف پیژنی او نه ئی شرائط او غیرمتقی نه دمصرف لحاظ او اعتبار کوی نه د شرائطو، لهذا په داسې ټرسټونو کښې د واجب صدقاتو ورکولو نه ځان ساتل پکار دی کوم چه جاهلان یاغیرمتقیان خلق چلوی (سیف الله حقانی)



چه په هغې کښې بینك ته اولیکلې شی چه دې باندې دې سود جمع نکړې شی (۳) کرنټ اکاونټ په کوم چه سود نه ورکولې کیږی (۴) پې ایل ایس نفع نقصان دی دواړو احتمالاتو سره ئی په کاروبارکښې جمع کړی.

اوس دویم اودریم شکل ظاهری طوربې ضرره دې مګر بینك ئی یقینی طور سره په سودی کاروباره کښې استعمالوی او په څلورم شکل کښې دنقصان احتمال دی اګر چه احتمال برائې نام دی که ددې برائې نام احتمال ختمولو دپاره یو دریم ګړی یا پخپله حکومت دا ذمه داری واخلې چه دنقصان په صورت کښې به تلافی اوکړیشی نو آیا دا صورت جائز کیدیشی؟ خواهش دې که ددې څلورم صورت دجواز څۀ شکل وی نو دنورو مستحقینو به هم مدد او شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عبدالقدوس کاکاخیل
پلوسی روډ پشاور...۱۴۰۱|۲|۷ھ

**الجواب:** په څلورم صورت کښې که دامعامله دشرکت وی نو دنفع دشرح دعدم تعین په صورت کښې دې معامله کښې څۀ خبره نشته دغه شان دحکومت وغیره دطرفنه دتلافی ذمه اخستل هم موجب د حرج نه دی چه داشتراط په طور سره نه وی

کما فی شرح المجلة ۷۱۳ ماده:۱۳۳۷ لیشترط ان تکون حصص الربح التی تنقسم بین الشرکاء جزءً شائعا کالنصف والثلث والربع فاذا اتفق الشرکاء علی اعطاء احدهم قدراً معینا کانت الشرکة باطلة انتهی، وقال بعد سطر وعلة الفساد ماذکر من قطع الشرکة﴿۱﴾ فافهم، وفیه ۷۲۴ ماده:۱۳۶۹ الضرر والخسارة الواقع بلا تعد ولاتقصیر ینقسم فی کل حال علی قدر رأس المال واذا شرط علی وجه آخر فلا یعتبر الشرط انتهی﴿۲﴾، قلت فالمفسد هو الاشتراط دون التبرع. وهوالموفق

﴿۱﴾(شرح المجلة لسلیم رستم باز ۷۱۳ قبیل الفصل الثالث فی شرائط المختصة بشرکة الاموال)

﴿۲﴾ (شرح المجلة لرستم باز ۷۲۴ الفصل السادس فی شرکة العنان البحث الاول)

## د زکوٰة په رقم سره د دینی کتابونو اجرت کتابت اود کاغذ اخستلوحکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه مصارف د صدقات عند الشرع واضح دی په دې کښې دینی مدرسې او ادارې هم شامل دی چه داعلائی کلمة الحق دپاره مفت رسالې تقسیموی آیا دزکوٰة. صدقاتو. قربانی څرمنو. نذر. عقیقه وغیره رقم سره دکاتبانو اجرت دکاغذ قیمت او دچاپ خرچې وغیره ادا کولې شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمداسلم ایمپائرانډسټری کراچی ۳....۲۸/۶/۱۴۰۱ھ

**الجواب:** په واجب صدقاتو. زکوٰة.نذر او صدقة الفطر کښې تملیك شرط دی(۱) (تملیك بلا معاوضه) اوپه صورت مسئوله کښې یا تملیك موجود نه دی. کما عند الایتاء لاهل الادارة، اویا تملیك بلا معاوضه موجود نه دی. کماعندالایتاء الی الکاتب وبائع الکاغذ وغیرهما، لهذا داسې اداروته زکوٰة ورکول د ذمې دفراغت دپاره کافی نه دی. وهوالموفق

## د زکوٰة دوایانې حاصلونکو مریضانونه ددوه (۲) روپۍ پرچې په ځائی پنځه روپۍ اخستل

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه په سول هسپتال کښې ډاکټر کیدلو په وجه دزکوٰة په رقم دهسپتال دمریضانو علاج کول غواړم ددې دپاره دا طریقه خپلوم چه په ګورنمنټ هسپتال کښې دهر مریض نه دوه روپۍ معائنه فیس وصول کیږی لیکن داسې مریض چه دزکوٰة دوایانې حاصلول غواړی دهغه دپرچې فیس پنځه روپۍ کول غواړم په دې کښې بعضې خلق انتهائی غریبانان وی مستثنی کیدې شی داپنځه روپۍ فیس یا خود زکوٰة

(۱) قال العلامة الحصکفی: ویشترط ان یکون الصرف تملیکاً لا اباحة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۸ باب المصرف)



دوایانې ورکونکی سړی په تنخواه کښې استعمالیږی یا دهسپتال په نوروآخراجاتو کښې مثلاً په وارډونو کښې صابون. تولیه. کاغذ وغیره کښې استعمالیږی اوددې ډېر فیس یوه وجه داهم ده چه فیشن دپاره چیك کونکی مریضان بندشی اوغیر مستحق مریضان دزکوٰة دوایانو اخستلو نه لرې پاتې شی آیا دا طریقه اختیارول جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ډاکټرمحمدنعیم چلډرن سپیشلسټ

سول هسپتال هری پور ۱۹۹۰ء/۱۱/۲۰

**الجواب:** ته د زکوٰة په رقم دوایانې اخله او مریضانو ته ئې ورکوه (۱) چه هغوی ئې باقاعده استعمالوی (۲) یا دزکوٰة په رقم سره دوایانې واخله په هغوئ ئې استعمال کړه اودپرچې والافیس کمې زیاتې یا ملازم ته ورکول اونه ورکول ستا په صوابدید باندې موقوف دی دا زکوٰة ته نقصان نه ورکوی. وهوالموفق

## د مړی وارثانو او مصیبت زده خلقو دپاره دزکوٰة وغیره فنډ حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه یوې محلې والا یا نهه لس خاندانو نه ملاؤشی دیو بل په مصیبت او مړی باندې مشترکه رقم خرچ کوی هغه رقم دزکوٰة. صدقاتو. خیرات. نذر او منختو او عام امدادی فنډ وی په دې مداتو کښې دکوم کوم مد رقم په دغه طریقه کار کښې استعمالیدلې شی او نګران او خزانچی دپاره دکومو کومو خبرو خیال ساتل پکار دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم....... ۱۹۶۹ء/۵/۶

(۱) قال العلامة الحصکفی: وجاز دفع القیمة فی زکاة وعشر وخراج وفطرة ونذر وکفارة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۴ باب زکاة الغنم)

(۲) قال العلامة الحصکفی: ویشترط ان یکون الصرف تملیکا لا اباحة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۸ باب المصرف)

**الجواب**: دمیت وارثان پا مصیبت زپلي کسان که مسکینان او فقیران وی نو ددي ټولو مداتونه دهغوئ امداد کول جائز دی که نقدوی او که جنس وی چه بطور تملیك وی﴿۱﴾ او که داخلق مسکینان نه وی نو ددوی په زکوة، نذر او نور واجب مداتو سره امداد نشي کیدلي ﴿۲﴾ نور مدات مثلاً امدادی فنډ وغیره ورکول جائز دی په داسې کمیټو کښې دیو عالم دین دمشوری نه پس څۀ عمل او اقدام کول انتهائی ضروري دی وهوالموفق

## د زکوة مال بل ځائی ته انتقال او په مال د زکوة سره دوایانې اخستل اود ورکولو حکم

**سوال**: علمائی دین دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائی چه آیا مال د زکوة یو ځائې نه بل ځائی ته انتقال جائز دې یانه؟ او په مال د زکوة سره دوایانې اخستل او ورکول جائز دی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم...... ۱۹۷۶ء|۱|۲۱

**الجواب**: ﴿۱﴾ بهتره داده چه کوم ځائی مال وی دهغې زکوة دی هلته خرچ کړېشي (کما فی الهندیة ۱: ۲۰۲) ﴿۳﴾ ﴿۲﴾ په زکوة کښې قیمت ورکول جائز دی کما صرحوا به ﴿۴﴾

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: مصرف الزکاة والعشر واما خمس المعدن فمصرفه کالغنائم هو فقیر وهو من له ادنی شیئ ای دون نصاب او قدر نصاب غیر نام مستغرق فی الحاجة...... ویشترط ان یکون الصرف تملیکا لااباحة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۴: ۶۸ باب المصرف)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ولا الی غنی یملک قدر نصاب فارغ عن حاجته الاصلية.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۷۰ باب المصرف)

﴿۳﴾ وفی الهندية: ثم المعتبر فی الزکاة مکان المال حتی لو کان هو فی بلد وماله فی بلد آخر یفرق فی موضع المال. (فتاوی عالمگیریه ۱: ۱۹۰ الباب السابع فی المصارف)

﴿۴﴾ قال العلامة الحصکفی: وجاز دفع القیمة فی...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



نو لهذا په زکوة کښې دوائی بطور تملیك ورکول جائز دی ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د جمات په تعمیر کښې زکوة ورکولو سره ذمه نه فارغیږی

**سوال**: علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دجمات په تعمیر باندې زکوة خرچ کول جائز دی یانه؟ ځکه چه قوم غریب دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی نصرالله جان شریف آبادګړهی کپوره مردان ۱۹۷۹ء|۱۱|۱۶

**الجواب**: دجمات په تعمیر باندې زکوة خرچ کولو سره دزکوة والا (مزکی) ذمه نه فارغیږی لعدم التملیك والتملك ﴿۲﴾ او خلاف سنت حیله کولو نه موافق سنت خاکی (خاورین کچه) جمات جوړول په دوارو جهانو کښې افضل دې. وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) زکاة وعشر وخراج وفطرة ونذر وکفارة غیر الاعتاق.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۴ باب زکاة الغنم)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ویشترط ان یکون الصرف تملیکاً لا اباحة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۸ باب المصرف)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ویشترط ان یکون الصرف تملیکاً لااباحة کما مر لا یصرف الی بناء نحو مسجد ولاالی کفن میت وقضاء دینه.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۸ باب المصرف)

# مسائل شتی

ددې عنوان لاندې هغه مسائل راجمع کړې شوی دی کوم چه به حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم لیکل او په سه ماهی الفرید کښې به شاملیدلې،د سه ماهی الفرید جلد: ۲ شماره: ۱ نه جلد: ۲ شماره: ۴ پورې مسائل راجمع کړې شو او د مسائل شتی عنوان سره دې فتاوٰی کښې شامل کړې شوې.(ازمرتب)

## د مسافر په مقیم امام پسې د مونځ د فساد په وجه د رکعاتو د اعادې مسئله

**سوال:** که مقیم امام پسې مسافرمقتدی اقتداء اوکړی او د مونځ په دوران کښې مونځ فاسدشی نو دا مسافربه څومره رکعته اعاده کوی؟

**الجواب:** دا مسافربه د اقتداء د فساد په وجه دوه رکعته اعاده کوی،

**کما فی الشرح الکبیر ص: ۵۴۲ اما لو افسد صلاته بعد ما اقتدیٰ بالمقیم فی الوقت فانه یصلی رکعتین لزوال الاقتداء﴿۱﴾.**

## صدقة الفطر په دوه مسکینانو باندې تقسیمول جائز دی

**سوال:** آیا صدقة الفطر دوه مسکینانو باندې تقسیمول جائزدی؟

**الجواب:** جائزدی.

**کما فی شرح التنویر علی ردالمحتار ص: ۳۶۷ جاز دفع**

---

﴿۱﴾(غنیة المستملی المعروف بالکبیری ۵۰۰ فصل فی صلاة المسافر)



**کل شخص فطرته الی مسکین او مسکینین﴿۱﴾ وکذا فی البحر ص: ۲۵۲ ﴿۲﴾.**

## د موجوده کرنسۍ په اعتبار سره د مهر فاطمی مقدار

**سوال:** د مهر فاطمی مقدار څومره دې ؟

**الجواب:** مهر د بی بی فاطمې دولس نیم اوقیه دې.(ابوداؤد) ﴿۳﴾ چه دا یوسل یودیرش توله او درې ماشې سپین زردی.﴿۴﴾ او شپږشلې روپۍ فی توله حساب سره پنځلس زره اووه سوه او پنځوس روپۍ تقریباً جوړیږی.

---

﴿۱﴾(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۸۵ باب صدقة الفطر)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: قال فی الفتاویٰ الظهیریة ولا یکره التأخیر ولم یتعرض فی الکتاب لجواز تفریق صدقة شخص علی مساکین وظاهر مافی التبیین وفتح القدیر ان المذهب المنع وان القائل بالجواز انما هو الکرخی وصرح الولوالجی وقاضی خان وصاحب المحیط والبدائع بالجواز من غیر ذکر خلاف فکان هو المذهب کجواز تفریق الزکاة واما الحدیث المأمور فیه بالاغنیاء فیفید الاولویة وقد نقل فی التبیین الجواز من غیر ذکر خلاف. (البحر الرائق ۲: ۲۵۶ قبیل کتاب الصوم)

﴿۳﴾ عن ابی سلمة قال سألت عائشة عن صداق رسول الله ﷺ فقالت ثنتا عشرة اوقیة ونش فقلت وما نش قالت نصف اوقیة. (سنن ابی داؤد ۱: ۲۹۴ باب الصداق) وعن ابی سلمة بن عبد الرحمن رضی الله عنه انه قال سألت عائشة رضی الله عنها: کم کان صداق رسول الله ﷺ؟ قالت کان صداقه لا زواجه ثنتی عشرة اوقیة ونشأ، قالت: اتدری ما النش؟ قال: قلت: لا، قالت: نصف اوقیة، فتلک خمس مأة درهم، فهذا صداق رسول الله ﷺ لازواجه. (الصحیح لمسلم ۱: ۴۵۸ باب الصداق کتاب النکاح)

﴿۴﴾ حضور ﷺ خپلې لور سیدة النساء فاطمة الزهرا رضی الله عنها له کوم مهر مقرر کړې وو هغې ته مهرفاطمی وائی د عهدرسالت د اوزانو مطابق دا دولس نیم اوقیه سپین زرو باندې شوې وو.....

[بقیه حاشیه په راروانه صفحه]

## په شريكينو كښې يوته ميراث يا هديه او هبې سره ملاؤ شوى رقم كښې به دويم كس شريک نه وى

**سوال:** زيد اوعمرو دواړه شريك وو. اچانك زيد ته په ميراث كښې څه مال ملاؤ شو يا سلطانى جائزه يا هبه يا هديه سره څه مالونه ملاؤشو. اوس به دا مالونه صرف د زيد وى ياپه دې كښې به عمروهم شريك وى؟

**الجواب:** دا مالونه به صرف د زيدوى په دې كښې به دواړه شريك نه وى.

**كما فى المبسوط ص: ۱۸۹ جلد ۱۱ ﴿۱﴾ ولا يشارک احدهما صاحبه فيما يرث من ميراث ولا جائزة يجيزها السلطان له او هبة او هدية ﴿۲﴾.**

---

[بقيه حاشيه]...اويو اوقيه د څلوېښتو درهمو برابروى دغسې دولس نيم اوقيه پنځه سوه درهم شو، يو اوقيه ۵، ۱۰ توله وى نو دولس نيم اوقيه د ۲۵، ۱۳۱ تولو برابرشو، يعنى يوسل يوديرش تولې او درې ماشه. اوس پنجابى توله ۶۶۴، ۱۱ گرام وى، نوپه دې حساب سره مهرفاطمى تقريباً ۵۳۱ گرام سپين زرجوړېږى، او زمونږ سرحدى توله چه دا ۱۵، ۱۲ گرام وى، په دې حساب سره تقريباً ۵۹۵ گرام سپين زر جوړېږى اودا احوط دى. ددې نه علاوه په مهرفاطمى كښې نوراقوال هم شته، دمولانا مفتى محمودحسن صاحب گنگوهى د تحقيق مطابق مهرفاطمى ۴۰۰ مثقال چه دا يونيم سل توله سپينو زرو برابردى. (ماهنامه نظام جولائى ۱۹۲۵ء) داقول د مولانا سيداحمد رضا بجنورى هم دې. (انوارالبارى شرح بخارى ۴: ۲۱) اود بعضې محققينو په نزد د (۱۴۰) توله سپينو زرو برابردې. (نظام الفتاوىٰ ۲: ۲۰۸) اود ۱۳۱ توله درې ماشې قول دحضرت مفتى عزيزالرحمٰن ديوبندى رحمه الله اود مولانا مفتى محمدشفيع رحمه الله دې اوهم دا زمونږ په نزد ماخوذ به دې پس دومره سپين زرچه زمونږ په زمانه كښې په څومره كاغذى روپو كښې ملاوېږى دغومره روپۍ به په مهرفاطمى كښې وركولې شى.....(ازمرتب)

﴿۱﴾(المبسوط للسرخسى ۱۱: ۱۸۹ باب خصومة المفاوضين فيما بينهما)

﴿۲﴾وفى الهندية: ولا يشاركه فيما يرث من ميراث ولا جائزة يجيزها السلطان ولا الهبة ولا الصدقة كذا فى فتاوىٰ قاضى خان ولا الهدية هكذا فى المبسوط.
(فتاوىٰ عالمگيرية ۲: ۳۰۹ الفصل الثانى فى احكام المفاوضة)



## په قرض مؤجل باندې مصالحت كولوسره د معجل په صورت كښې دكم رقم اخستلو مسئله

**سوال:** دزيد په عمر باندې زر روپۍ قرض مؤجل وې. زيد په دې باندې مصالحت اوكړو چه عمرو دې ماته پنځه سوه روپۍ فى الحال راكړى نوعمرو به برى شى، آيا دا مصالحت جائزدې؟

**الجواب:** دا مصالحت دامام ابويوسف رحمه الله د قول مطابق جائزدې.

**كما فى تكملة ردالمحتار ص ۱۷۹ جلد ۲ ذكر فى شرح الكافى للاسبيجابى جواز هذا الصلح مطلقا على قياس قول ابى يوسف لانه احسان من المديون فى القضاء بالتعجيل واحسان من صاحب الدين فى الاقتضاء بحط بعض حقه ﴿۱﴾.**

## د تعليقى طلاق يو صورت او د هغې نه د خلاصى طريقه

**سوال:** كه ځوې خپل پلار ته اووائى چه كه زه ستا كورته راغلم نوپه ما به خپله ښځه په درې طلاقو طلاقه وى، نودې نه به د خلاصى لارڅه وى؟

**الجواب:** كه پلار دا كورخرڅ كړى نوځوې دې كورته داخليدې شى.

**كما فى الهندية ص ۱۷ جلد ۲ لو حلف لا يدخل دار فلان هذه فباع فلان الدار فدخل الحالف لا يحنث عند ابى حنيفة وابى يوسف ﴿۲﴾.**

---

﴿۱﴾(تكملة ردالمحتار ۲: ۱۹۹ فصل فى دعوى الدين)

﴿۲﴾(فتاوىٰ عالمگيرية ۲: ۱۷ الباب الثالث فى اليمين على الدخول)

قال ابن عابدين: وفى الخانية حلف لا يدخل دار زيد ثم حلف لا يدخل دار عمر وفباعها زيد من عمرو وسلمها اليه فدخلها الحالف حنث فى اليمين الثانية عنده لان عنده المستحدث بعد اليمين يدخل فيها لو مات مالک الدار فدخل لا يحنث لانتقالها للورثة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۹۱ مطلب لا يدخل دار فلان كتاب الايمان)

## طلاق، طلاق، طلاق، د مور خور، وئیلو حکم

**سوال:** که یو سړي خپلې ښځې ته اووائی: طلاق طلاق طلاق مورې خورې، ، په دې سره طلاق واقع کیږي او که نه؟

**الجواب:** په طلاق، طلاق، طلاق، کښې حکم (دې) یا (نه دې) نه دې ذکر شوې. په دې وجه دې سره طلاق واقع کیدل بې قاعدې امردې او که په عرف کښې حکم (دې) مرادوی نودا معلومه نه ده چه د تکرار نه تاکید مرادې او که استیناف او تکثیر. نود تکرار په تقدیر باندې به یو طلاق رجعی واقع کیږي او د تکثیر په تقدیر باندې درې طلاقه واقع کیږي. او ښځې ته مور یا خور وئیلو سره طلاق نه واقع کیږي.

**کما فی ردالمحتار ۳: ۴۷۰ او حذف الکاف لغابان قال انت امی ﴿۱﴾.**

## ښځه خپل خاوند ته یا خپل ځان ته د طلاق ورکولو مسئله

**سوال:** ښځه خپل خاوند ته طلاق ورکولې شی او که نه؟ او خپل ځان ته طلاق ورکولې شی یا نه؟

**الجواب:** د طلاق اختیارمند صرف خاوند دې.

**لحدیث ابن ماجة والدارقطنی، الطلاق لمن اخذ بالساق ﴿۲﴾**

البته که خاوند ښځې ته د طلاق ورکولو اختیار ورکړی نو خپل ځان ته طلاق ورکولې شی. ﴿۳﴾

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: قوله: او حذف الکاف لغا: بان قل انت امی ومن بعض الظن جعله من باب زید اسد درمنتقی عن القهستانی قلت ویدل علیه ماذکره عن الفتح من انه لا بد من التصریح بالاداة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۶۲۶ باب الظهار)

﴿۲﴾ عن ابن عباس قال اتی النبی ﷺ رجل فقال یا رسول الله سیدی زوجنی امته وهو یرید ان یفرق بینی وبینها قال فصعد رسول الله ﷺ المنبر فقال یا ایها الناس ما بال احدکم یزوج عبده امته ثم یرید ان یفرق بینهما انما الطلاق لمن اخذ بالساق.
(سنن ابن ماجة ۱: ۱۵۲ باب طلاق العبد)

﴿۳﴾ قال الحصکفی: قال لها اختاری او امرک بیدک ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د طلاق په نیت سره ښځې ته مور، خور یا ترور وئیل

**سوال:** که خاوند ښځې ته د طلاق په ارادې سره مور، خور، یا ترور اووائی نو دا طلاق واقع کیږي یا نه؟

**الجواب:** دا الفاظ ښځې ته وئیل مکروه دی لیکن طلاق پرې نه واقع کیږي.

**وفی ردالمحتار ۳: ۴۷۰ وینبغی ان یکون مکروها ﴿۱﴾.**

## ښځې سره لواطت د حرمت مصاهرت موجب نه دې

**سوال:** ښځې سره لواطت د حرمت مصاهرت موجب دې یا نه؟

**الجواب:** دا د حرمت مصاهرت موجب نه دې.

**وکذا لو وطی فی دبرها لا تثبت به الحرمة کذا فی التبیین، هندیه ۱: ۲۷۵ ﴿۲﴾.**

---

(بقیه حاشیه) ینوی تفویض الطلاق او طلقی نفسک فلها ان تطلق، قال ابن عابدین: قوله او طلقی نفسک، هذا تفویض بالصریح ولا یحتاج الی نیة والواقع به رجعی وتصح فیه نیة الثلاث. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۵۱۵ باب تفویض الطلاق)

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: (قوله یکره) جزم بالکراهة تبعا للبحر والنهر والذی فی الفتح وفی انت امی لا یکون مظاهراً وینبغی ان یکون مکروها فقد صرحوا بان قوله لزوجته یا اخیة مکروه وفیه حدیث رواه ابو داؤد ان رسول الله ﷺ سمع رجلا یقول لامرأته یا اخیة فکره ذلک ونهی عنه ومعنی النهی قربه من لفظ التشبیه ولو لا هذا الحدیث لامکن ان یقال هو ظهار لان التشبیه فی انت امی اقویٰ منه مع ذکر الاداة ولفظ یا اخیة استعارة بلا شک وهی مبنیة علی التشبیه لکن الحدیث افاد کونه لیس ظهاراً حیث لم یبین فیه حکما سوی الکراهة والنهی فعلم انه لا بد فی کونه ظهارا من التصریح باداة التشبیه شرعا ومثله ان یقول لها یا بنتی او یا اختی ونحوه. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۶۲۶ باب الظهار)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۲۷۵ الباب الثالث القسم الثانی المحرمات بالصهریة)

دپاره د بازار نه طعام او خوراك راوړلو او په تبليغي باندې ئې اوخوړلو. آيا تبليغي دپاره دا خوراك جائز دې؟

**الجواب:** فقهائې كرامو د امام كرخي په قول باندې د جواز فتوىٰ وركړې ده:

كما فى ردالمحتار (۵:۲۳۵) قوله اكتسب حراماً، توضيح المسئلة ما فى التتارخانية حيث قال رجل اكتسب مالاً من حرام ثم اشترىٰ فهذا على خمسة اوجه اما ان دفع تلك الدراهم الى البائع اولاً ثم اشترى منه بها او اشترى قبل الدفع بها ودفعها، او اشترىٰ قبل الدفع بها ودفع غيرها او اشترى مطلقاً ودفع تلك الدراهم او اشترى بدراهم آخر ودفع تلك الدراهم وقال الكرخي فى الوجه الاول والثانى لا يطيب وفى الثلاث الاخيرة يطيب وقال ابوبكر لا يطيب فى الكل لكن الفتوىٰ الآن على قول الكرخي دفعاً للحرج على الناس وههنا تحقق الشق الرابع ﴿۱﴾.

## د فصل نه د عشر جداكيدو نه بغير دهغې د خوړلو حكم

**مسئله:** د كومې غلې او فصل نه چه عُشر نه وى وركړې شوې دهغې نه به خوراك نه خوړلې كيږى او كله چه عُشر د غلې نه جدا كړې شى نو د باقى غلې نه خوراك كولې شى. (عالمگيرى وغيره) ﴿۲﴾

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ٤:۲٤٤ مطلب اذا اكتسب حراما ثم اشترىٰ فهو على خمسة اوجه باب المتفرقات)

﴿۲﴾ وفى الهندية: ولا ياكل شيأ من طعام العشر حتى يؤدى عشره كذافى الظهيرية وان افرز العشر يحل له اكل الباقى وقال ابو حنيفة رحمه الله تعالىٰ ما اكل من الثمرة او اطعم غيره ضمن عشره كذا فى محيط السرخسي فى باب ما يحتسب لصاحب الارض.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۱۸۷ قبيل الباب السابع فى المصارف)



## د پیداوار نه د عشر وركولو په وخت د كرايه مزدورئ څوكيدارئ وغيره د رقم حكم

**مسئله:** عشربه دټول پيداوار نه وركولې شى مزدورى، څوكيدارى، كرايه او تخم وغيره به د عشر نه نشى جدا كولې بلكه د ټولو نه اول به عشر وركولې شى. ﴿۱﴾

## د اجارې په صورت كښې د عشر مسئله

**مسئله:** د اجارې په صورت كښې عشر په مستاجر (زميندار) باندې دې په مؤجر (د زمكې په مالك) باندې نه دې. او دا مفتىٰ به قول دې. (رد المحتار) ﴿۲﴾

﴿۱﴾ وفى الهندية: ولا تحسب اجرة العمال ونفقة البقر وكرى الانهار واجرة الحافظ وغيرذلك فيجب اخراج الواجب من جميع ما اخرجته الارض عشراً. (فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۱۸۷ زكاة الزروع والثمار)...... وقال العلامة ابن عابدين: بلا رفع مؤن اى كلف الزرع وبلا اخراج البذر لتصريحهم بالعشر فى كل خارج.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۵٦ باب العشر)

وقال المرغيناني: وكل شيئ اخرجته الارض مما فيه العشر لا يحتسب فيه اجر العمال ونفقة البقر، قال ابن الهمام: وكرى الانهار واجرة الحارس وغير ذلك يعنى لا يقال بعدم وجوب العشر فى قدر الخارج الذى بمقابلة المؤنة بل يجب العشر فى الكل.

(هداية مع فتح القدير ۲:۱۹٤ باب زكاة الزروع والثمار)

﴿۲﴾ قال الحصكفي: والعشر على الموجر...... وقالا على المستاجر...... وفى الحاوى وبقولهما نأخذ. وقال ابن عابدين: قلت لكن فى زماننا عامة الاوقاف من القرىٰ والمزارع لرضا المستاجر بتحمل غراماتها ومؤنها يستأجرها بدون اجر المثل بحيث لا تفى الاجرة ولا اضعافها بالعشر او خراج المقاسمة فلا ينبغى العدول عن الافتاء بقولهما فى ذلك لانهم فى زماننا يقدرون اجرة المثل بناء على ان الاجرة سالمة لجهة......

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه

## د مزارعت په صورت کښې د عشر مسئله

**مسئله:** د مزارعت په صورت کښې به مالك او مزارع هريو دخپلې خپلې حصې نه عشر اداکوی کله چه تخم د مزارع دطرفه وی.(الدر المختار) ﴿۱﴾

## د عاريت په صورت کښې د عشر مسئله

**مسئله:** مسلمان ته د عاريت په صورت کښې به عشر په مستعير باندې وی.﴿۲﴾

---

(بقيه حاشيه) الوقف ولا شئ عليه من عشر وغيره اما لو اعتبر دفع العشر من جهة الوقف وان المستاجر ليس عليه سوى الاجرة فان اجرة المثل تزيد اضعافا كثيرة كما لا يخفىٰ فان امكن اخذالاجرة كاملة يفتى بقول الامام والافبقولهما يلزم عليه من الضرر الواضح الذى لا يقول به احد. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۰ مطلب هل يجب العشر على الزارعين فى الاراضى السلطانية)

﴿۱﴾ قال الحصكفى: وفى المزارعة ان كان البذر من رب الارض فعليه ولو من العامل فعليهما بالحصة، قال ابن عابدين: ولو دفع الارض العشرية مزارعة ان البذر من قبل العامل فعلى رب الارض فى قياس قوله لفسادها وقالا فى الزرع لصحتها وقد اشتهر ان الفتوىٰ على الصحة وان من قبل رب الارض كان عليه اجماعاً...... وفى البدائع من ان المزارعة جائزة عندهما والعشر يجب فى الخارج والخارج بينهما فيجب العشر عليهما. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۱:۶۱ مطلب هل يجب العشر على المزارعين فى الاراضى السلطانية)

﴿۲﴾ قال الحصكفى: وقالا (العشر) على المستأجر كمستعير مسلم، قال ابن عابدين: واوجبه زفر على المعير لانه لما اقام المستعير مقامه لزمه كالمؤجر قلنا حصل للمؤجر الاجر الذى هو كالخارج معنى بخلاف المعير وقيد بالمسلم لانه لو استعارها ذمى فالعشر على المعير اتفاقا لتفويته حق الفقراء بالاعارة من الكافر كذا فى شرح درر البحار اى لكونه ليس اهلا للعشر لكن فى البدائع لو استعارها كافر فعندهما...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## د فصل د خرڅولو په صورت کښې د عشر مسئله

**مسئله:** که فصل د پوخوالی په صورت کښې خرڅ کړی نوعشر به په بائع باندې وی اوکه د پوخوالی نه مخکښې ئې خرڅ کړی نو عشر به په مشتری باندې وی.(الدر المختار) ﴿۱﴾

## د اهل حرب د پاره معاون او جاسوسی کونکی منافق مسلمانانو حکم

**سوال:** که منافق مسلمان د مال دولت حاصلولو دپاره داهل علم اواهل اسلام په خلاف کافرانو دپاره جاسوسی کوی او اهل اسلام ته ضرر او نقصان رسولو باندې راضی وی نو دهغوی څه حکم دې؟

**الجواب:** دا د اهل حرب په حکم کښې دې اومباح الدم اومباح الاموال دې.(كما فى فتاوٰى الكاملية ۶۵۱ـ ﴿۲﴾

---

(بقيه حاشيه) العشر عليه وعن الامام روايتان فى رواية كذلک وفى رواية على المالک. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۶۰ مطلب هل يجب العشر على الزارعين فى الاراضى الخ)

﴿۱﴾ قال الحصكفى: ولو باع الزرع ان قبل ادراكه فالعشر على المشترى ولو بعده فعلى البائع. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۰ ملطب هل يجب العشر على الزارعين الخ)

﴿۲﴾ قال الشيخ محمد كامل ابن مصطفى: فى فتح الثغر الوهر انى لمادعى الناس سلطان الجزائر الى جهاد الكفار الذين استولوا على ثغر وهران جاؤا اليه من كل فج عميق وكان هذا غير حال القبائل العامرية واما بنو عامر فانهم كانوا فى ذلک على فرق منهم من لجأ لحصون العدو مدافعا عن نفسه ومعيناً للعدو بسيفه وفلسه فكانوا يقاتلون المسلمين مع عدوهم ويدفعون عنه ويغزون على الحجلة المنصورة بالله تعالىٰ حتى انهم كانوا على المسلمين اشد ضرراً من الكافرين وهكذا كان بعض القبائل، والظاهر ان حكم هؤلاء حكم اهل دارالحرب فى قتلهم واخذ مالهم واما اولادهم فلا يقتلون ولا يكونون فيئا وانما ابيح قتل البالغين منهم لكونهم ردأ للعدو الحرب ومعينون له بانفسهم. (الفتاوىٰ الكاملية فى الحوادث الطرابلسية ۲۵۱ كتاب الجنايات)

## جهاد مقدس عبادت او انسداد فساد دي

**سوال:** کفارحکمرانان او ددوی د اثرلاندې حکمرانان جهاد ته دهشت گردی وائی آیا دا صحیح ده؟

**الجواب:** جهاد یو مقدس عبادت دې دا د فساد بندولو دپاره اکسیر (مجرب) دې بخلاف الکفار چه دوی د فساد په خورلوکښې مبتلا دی.(۱)

---

(۱) قال الامام ولی الله الدهلوی: اعلم ان اتم الشرائع واکمل النوامیس هو الشرع الذی یؤمر فیه بالجهاد وذلک لان تکلیف الله عباده بما امر ونهی مثله کمثل رجل مرض عبیده فأمر رجلا من خاصته ان یسقیهم دواءً، فلوانه قهرهم علی شرب الدواء وأوجره فی افواههم لکان حقا لکن الرحمة اقتضت ان یبین لهم فوائد الدواء یشربوه علی رغبة فیه، وان یخلط معه العسل لیتعاضد فیه الرغبة الطبیعیة والعقلیة ثم ان کثیراً من الناس یغلب علیهم الشهوات الدنیة والاخلاق السبعیة ووساوس الشیطان فی حب الریاسات ویلصق بقلوبهم رسوم آبائهم فلا یسمعون تلک الفوائد ولا یذعنون لما یأمربه النبی ﷺ ولا یتاملون فی حسنه فلیست الرحمة فی حق اولئک ان یقتصر علی اثبات الحجة علیهم بل الرحمة فی حقهم ان یقهروا لیدخل الایمان علیهم علی رغم انفهم بمنزلة ایجاد الدواء المر ولا قهر الا بقتل من له منهم نکایة شدیدة وتمنع قوی او تفریق منعتهم وسلب اموالهم حتی یصیروا لا یقدرون علی شیئ...... فالرحمة التامة الکاملة بالنسبة الی البشر ان یهدیهم الله الی الاحسان وان یکبح ظالمهم عن الظلم وان یصلح ارتفاقاتهم وتدبیر منزلهم وسیاسة مدینتهم ، فالمدن الفاسدة التی یغلب علیها نفوس سبعیة ویکون لهم تمنع شدید انما هو بمنزلة الاکلة (هو مرض معروف) فی بدن الانسان لا یصح الانسان الا بقطعه، والذی یتوجه الی اصلاح مزاجه واقامة طبیعته لا بد له من القطع والشر القلیل اذا کان مفضیا الی الخیر الکثیر واجب فعله. (حجة الله البالغة ۲: ۱۷۰ مبحث الجهاد)